د کتاب نوم ____ کلیات عبدالروف زاهد
لیکونکے __________عبدالروف زاهد
پی ډی ایف __________ امتیاز عابد
کال____________________۲۰۲۲

»«»«»«»«»«»«»«»«»«»«»«»«»«»«»«»«

چاپ کتابونه

پرخه __________________۱۹۸۰
قیامتونه دی لمحې __________۱۹۹۲
حادثې____________________۱۹۹۰
اعتبار____________________۲۰۰۴
زېرے ___________________۲۰۱۵

»«»«»«»«»«»«»«»«»«»«»«»«»«»«»«»«

اعزازات.

اباسین ارټس کونسل سپېشل انعام ___۱۹۸۱
رائیټر گلډ اېوارډ _______________۱۹۸۱
چاچا کریم بخش سوات اول انعام ___۱۹۹۲
چاچا کریم بخش سوات اول انعام ___۲۰۰۴
رائیټر گلډ اېوارډ _______________۲۰۰۴
امریکا ادبی اېوارډ _____________۱۹۹۹

# تړون

د عبدالروف زاهد صیب

د پلار اروابناد ____ عبدالحکیم ،
د مور اروابنادې __ سپد مرجان ،
او مشر ورور ______ عبدالطیف

په نومونو.

امتیاز عابد

د اباسین آرټس کونسل او دانش کده
اول او خصوصي انعام یافته کتاب ۱۱




عبدالرؤف زاهد
نورمن خیل هوتي
مردان

# ترون

د پښتو د شهيد شاعر سيد ن ، م باچه (مرحوم)

په

نوم

چه د هغه خلوص ، مينې ، ترقي پسند ذهن
او ملکرتيا ما له ډير څه راکړي دي۔

(زاهد)

# پیژندګلو

په زرپرستو کښې به ستا زاهده څه قدر وي

ته خو شاعر یې اؤ شاعر سره پیسه څو نه وي



انتخاب

فضل قادر مهمند
بشیر زآر

---

(۱)

یره په بانګ حرم کښې اکثر او کله کله شهباز او رسالو کښې د یو شاعر غزلې راوځي خو یره بس ځه به ئې وائې د انسان جذبات خدائیګو چه را لړزوي. څه او وایه کنه څوک دے؟ په عمر د شلو، یو د پښتو کالو ساده پړول هلک دے. ښه ښه نه د هوتي عبدالرؤف زاهد یاد دے. هغه خو د حمزه شنواري صاحب خبره د پښتو جګر مراد آبادي دے.

سید ن.م باچه (مرحوم)
روزنامه بانګ حرم پېښور
۳ ۰ ۲ ۰ ۱۹۶۳ء

(۲)

د عبدالرؤف زاهد او د پښتو غزل تعلق داسې دے لکه د ګل او د بلبل. څوک چه د ګل نوم واخلي نو د سرې تخیل د رنګونو خوشبویو او نزاکتونو په احساس رنګین شي او بیخي د غه

شان چه زه د زاهد نوم داؤرم نو وائیم جوړ چار غزل ساز اوچیړلو. اؤ چه د پښتو د غزل ذکرے ترغوږ و شی نو وائیم چه خوک زما دَ ملګری اؤ ښکلی غزلګو شاعر زاهد بحث کوی.

د هر چا خپل خپل خیال اؤ خپله خپله خوښه. خوکه را خبرۀ دیره سهی نهٔ وی نو غلطه به هم نهٔ وی چه " زاهد دَ نوی کول دَ غزلګو شاعرانو دَ قافلے سالار دے."

فیض الله فیض (مرحوم)
بانګ حرم پبنور
۰۶-۰۲-۱۹۶۳ء

(۳)

عبدالرؤف زاهد ډیرے اوچتے غزلے لیکی، دومره اوچتے چه رحمزه صاحب غوندے اُستاد پام ئے هم ځانته راګرځولے دے

ایوب صابر
بانګ حرم پیښور
۱۱-۰۵-۱۹۶۳ء

(۴)

عبدالرؤف زاهد د غزل په مزکه پیدا شوی با شعوره دهٔ اؤ ما چه ودهٔ د ډیرکوالی غزلے واؤریدے نو هم راته یؤ پخته کار غزلګو شاعر ښکاریدو. ځکه خو ورته د غزل پلار رحمزه شنواری دَ پښتو جګر مراد آبادی اووے. اؤ د حمزه صاحب نه غټ سند د غزل په دُنیا په ننني دور کښے هیڅ خوک کیدے نهٔ شی. پښتنو شاعرو اؤ خاصکر مردان کښے د زاهد غزل یؤ اوچت مقام لری.

پیر گوهر
(شاعر امن)

(۵)

ما یو ځل چرته لیکلی وو چه عبدالرؤف زاهد د پښتو غزل جګر مراد آبادی دے. زه نن هم په دے وینا قایم یم او د دوستانو نه ایله کوم چه د هغه د غزلو هر شعر دِ په غور اولولی نو زما د وینا په صداقت به ئے یقین راشی.

امیر حمزه خان شنواری
د "زاهد غزل" نه اقتباس
۰۱۰۰۲-۱۹۷۱ء

(۶)

تو ډیرے مودے عبدالرؤف زاهد د "غم جانان" نه شاعری ځاروله او ځکه چه د فن لطیف نه بل ځائے نه شو موندے د هغه د شعر خاصه وه. ولے ځکه موده پس چه زاهد ښکاره شو نو په نوی دول، نوی رنګ، د ژوند د تقاضو سره ځنګ په ځنګ او د وخت آواز ته غوږ غوږ. د هغه په نظریه، د هغه په فن، د هغه په مشاهده د هغه په احساس او د هغه په فکر کښے بدلون راغے. اوس د هغه د غزل دروازه یوازے د خوبانو د پاره نه، بلکه د بے شمیره خوارانو، غریبانو مظلومانو، دهقانانو، مزدورانو او زورزیلو د پاره هم پرانستے ده. اوس د هغه شعر د ژوند ترانه ده. د زندګئ آئینه ده، د ظلم داستان دے. د مظلومانو آواز دے. د ضمیر چغه ده. د امید په افق د

خوشحالو سوکلو د رنړاګانو د اباسین غورزنګ دے.

شمس القمر اندیش
د "زاهد سره مابنام" نه اقتباس
۳۰ ـ ۱۱ ـ ۱۹۷۹ء

(۷)

دَ شاعرئ سفر یو جدلیاتی عمل دے او کوم خلق چه جدلیاتی قانون پیژنی دَ هغوئ دپاره د عبدالرؤف زاهد په شاعرئ پوهیدل او د هغه متعلق رائے قائمول ګران نهٔ دی. هغه زما په خیال د پښتو جګر مراد آبادی نا، بلکه د پښتو سردار جعفری، او ساحر لدهیانوی دے.

سلیم راز
د "زاهد سره مابنام" نه اقتباس
۳۰ ـ ۱۱ ـ ۱۹۷۹ء

○

د زاهد دَ شاعرئ ابتدا، دَ هر نوخیزه شاعر، شان د روایتی غزل نه شوې ده. د هغه غزل د زلف او رخسار، ګل او بلبل، شباب او شراب په رنګینو پُر غزل دد اګرکه د غه وخت هم د هغهٔ غزل محض د عشق د مضامینو د اظهار، د عاشق او معشوقې د خصوصیاتو مرقع نه وو. د هغهٔ تشبیهاتو او اشعارو کښې جدت وو او په روایتی غزل کښې هم دا آواز نوے وو. او بیا ډیره موده پس د زاهد غزل د دے جالونو نه د وتو دپاره لاس پښے وهل شروع کړل او نن چه زهٔ دا کرښے لیکم زاهد د روایتی غزل طلسمات کړے دے او د ژوند د لوئے نه لویه خبره د رمزاو اشارو په ژبه په خپل غزل کښې بیانوی او د هغه غزل په نبهٔ شان د مردان د غزل نمائندګی کوی.

رحمت آهی



څه دِ وېنُل را ته دَ تلو، غلي شوے
رقيب محفل ته چه راتلو غلي شوے
ستا د محفل رونق هم پاتې نهٔ شو
چه هنګامے دَ ليونو غلي شوے
دومره خو پوهٔ شوم خفه کېږې په ما
پرون زما په ا سويلو غلي شوے
ځان در ته ښکلے ملامته ښکاري
زما په حال نکه د غلو غلي شوے

سيورے دَ زلفو چه رقيب وُنيوهٔ
زاهده! څنګه په لمبو غلي شوے

# دشهید جنازه

بیا جو ړ سپېړے شو چه ډالۍ دی ځینکو نیولے
څۀ تماشه ده ؟ چه هر چا کوټے په ځلونیولے
ورېځے څۀ کوری چه ښکته دَ آسمانه شولے
وختونه او دریدل په ځائے چاپېر رسونیولے
خدائے خبر څوک راځی چه دومره اهتمام شوید
ډکے جولۍ چه دَ ګلونو فر ښتو نیولے
عالم خاموشه دے فضا هم سا راکښلے نسکاری
د هر چا سترګے یو طرفته تلو سو نیولے
هغه دے غاړو شۀ ، بے اختیاره پیغلو منډے کړے
څوک راپریوځی څوک پاسی ځنګه سلګو نیولے

"هغه ده راغله جنازه" یوه نعره پورته شوه
بیا بیا ت دګلو را شروع شۀ هنګامه پورته شوه

(اباسین کراچی)





هیڅ نه وائی کوره رقیب ماته مخامخ
هر وخت مې خبرې کړې اشناته مخامخ

شل ځله که نه وی څه بندیزونه د دیدن
چرته څوک کتې شی نیغ اشناته مخامخ

هسې نا خبره ئې د زړه راشی په خوله
مځ کوره محفل کښې داسې چاته مخامخ

خنګه مې په اور کښې سوزوی د عنایت
خاندی د رقیب سره یار ماته مخامخ

بیا دې جوړ د زلفو سره مخ کړی رښتینی
شپې دې چې اشنا کړې صبا نه مخامخ

هسې په محفل کښې رقیبان شو ملامته
زه چه شوم اشناته، اشنا ماته مخامخ

وروستو دې زاهده په غزل خاندی یاران
هسې تعریفو نه کوی تا ته مخامخ

نهٔ رسی ساقی زما جامونو ته لاسونه
ډیر که مې اوږده کړل ستا لاسونو ته لاسونه

داسې مې خوړې په تصور شوې ستا زلفې
نیسم بې خودئ کښې ما بنا مونو ته لاسونه

شوو چه لاس په لاس مونږ په نظر د رقیبانو
وې نیول د قهره زړه مخونو ته لاسونه

نن چه ورته بره هم کتې نهٔ شو یارانو!
اوبه رسی د غمه گریوانونو ته لاسونه

هسې به ځان ستړې رقیبان کړي په خبرو
نهٔ رسی د مینې محلونو ته لاسونه

رانغلهٔ په کوټو چه آزغي مې په قسمت وو
ډیر که مې وړو اچول ګلونو ته لاسونه

مات دې په مرونډ کښې شي زاهده یم خوشحاله
سوال له چه اوږد دیږي محلونو ته لاسونه

(٦٦-١-٢)

شي ؟

څه مې په زړه تیر شي د زړه سره څه خبرې؟
لاړې چه شې په بله ستمګره څه خبرې ؟
څه خو به پوښتنه دې د نه راتلو وه کړې
شوې را نه بې ځایه مروره! څه خبرې
ماخپله ځواني کړه ستا په غم کښې آشناخاوړې
ته د خپله ځانه! انا خبره څه خبرې
تا ته به رقیب سره راتله منم چه هیڅ وې
سترګې مې شي تورې ساه په بره څه خبرې
زه به دِ پرې شي که سحر غواړې په شپه کښې
ته له دې وطنه مُسافره! څه خبرې
تا ته به منصوره! وې نیاږده د زلفو یاده
ته د چا د سترګو له نظره څه خبرې

دړ هغه زاهد چه کلیم نه ستا دېیلې
ې د حسینا نو پیغمبره څه خبرې

بانګ حرم پېښور ٦٦٠١٠٧

لاس چه څوک ستا د زلفو تار ته نیسی
ئن سروقده! هغوئی دار ته نیسی

چه د ګریوان، لمن، تمیزئے کړو ورک
خلق به ګوتے خو د بهار ته نیسی

که ستا نه هیر، یم رقیبا نو ته یاد
په لاره ځی، لاس مے مزار ته نیسی

"ګل" چه کړی، "مخ" "نزدے" او خاندی یار
خه په هغوے، "زړه" "انکار" ته نیسی

زما د زړه لاره خو نه شی موند ے
رقیب د نورے لارے یار ته نیسی

اشنا ته ذکر د وفا سبه نه دے
پا به سی غوږ چرته دے تار ته نیسی

زاهده! چا در ته وے میته کوه
خلق خو ګوتے ګنهګار ته نیسی

(٦٦ ۔١۔ ١٩)

Scanned with CamScanner

څوک چه ستا د سترګو په بڼو باندې تیر وُځي
زړه به ځیل زخمي کا په ازغو باندې تیر وُځي
خود به په ازغو باندې سنګې کوي یارانو!
څوک چه د ژوندون په رنګینو باندې تیر وُځي
دا بیله دُنیا ده دا ده د عقل پیغمبره!
دلته هوښیاران په لیونو باندې تیر وُځي
چا چه ستا دَ سترګو شراب لږ هم وي څکلي
بیا کله دَ میو په کاسو باندې تیر وُځي
یوُ ده زمونږ ساه خو رقیبان دي نا خبره
دوئ زمونږ په بیلو بیلو تلو باندې تیر وُځي
څوک چه وي په نبض دَ وخت پوهه آشنایانو
بیا کله سا ده! ښکلو څهرو باندې تیر وُځي

زړه مې تهول سُورې سُورې غمونو کړو زاهده!
اې خلق زما په خندیدو باندې تیر وُځي

(۶۶ - ۷ - ۱۳)

وَخت مې دِ شل ځله لاسونه نیسی
مینه مې یاره ستا یادونه نیسی

خیر دې رقیب زما بده وائی
ډیر خلق نمر ته چراغونه نیسی

لاس چې دَ وخت نهٔ شی نیولے یاران
ځله زما ځُلے ته لاسونه نیسی

ځهٔ! ستا ایمان دے که راځې اوګڼه
څهٔ به څوک هر وخت قرآنونه نیسی

شونډې مې اوچې کړې دَ سترګو ارمان
سا ده ساقی! راته جامونه نیسی

دَ زړهٔ خبره به مې وی په ژبه
سوی دِ ماپورې وختونه نیسی

شا به قیصه دَ ژوندون زر ختمه
زاهده! بیا به دیوے ګلونه نیسی



محفل کښې دَ مودو نه که ساقي، پیژني ما
رَقیب له جام په جام لیسې ورځي پیژني ما
اے حُسنه! خامخا که ے پوښتنه کړے دَمینې
تپوس او کړه له دا ره سرسري پیژني ما
ګلونه دَ چمن دي ټول بے قدره اشنایانو
لمن ے کلکه نیسي چه ازغي پیژني ما
یو ته ئے چه آشنا ځان دِ ناشنا که دَ زړهٔ سرهٔ
کښې ستا دَ کوڅے پردي پردي پیژني ما
چمن کښې ے دَ عقل خلق څله کړي پوښتنه
صحرا کښې دَ ژوندون ټول لیوني پیژني ما
یاري ستا دکاکل شوه راته څومره آشنا کرانه
ژوندون نے ټول بیا ره دے پریشاني پیژني ما

ښوتهٔ به ے دَ ژوند څنګه ګلونه شي ژراهٔ!
سپرلي چه دَ ژوندون په بله ځي پیژني ما

(۶۶ - ۷ - ۲۹)



مونږ ته که تور زلفو رسیدهٔ ګرانه خبره ده
ستا د سترګو تورو ته په څهٔ ګرانه خبره ده
غږ چه رقیبانو ته کوونو ستا له مخه
ګُله! ځایوړل آزغی په زړه ګرانه خبره ده
مینې چه د سترګو کړم ساقي د میخانې اشنا
نهٔ راځی "توبه" زما په خُلهٔ ګرانه خبره ده
"ګرانه ده" اشنا ویئیل چه مړی د ژوندئ شی
ما وے تهٔ را اوګوره "په څهٔ ګرانه خبره ده

څهٔ که در ته نیسی هر سړے لاس د رواج
شعر خو نراهٔ ده! پیژندهٔ ګرانه خبره ده

(۶۶ - ۸ - ۱۲)

وختونه که زړیږي نوي کیږي ستا یادونه
اشنا کله گردش سره چلیږي ستا یادونه
سپوږمۍ ته که ډیوې د ستورو بلې وي په شپه کښې
تاخونو کښې د خیال ما ته بلیږي ستا یادونه
اشنا خاډرې به ساه واخلم د ژوند په شیش محل کښې
بې واره لکه کانړي چې وریږي ستا یادونه
اشنا که اوس تمبو نه ساقي کښې کړي نو کړي دې د
نشو کښې د شرابو چې اوسیږي ستا یادونه
نظر د تصور به مې تر عمره وي پریشانه
اشنا چې لکه ستا هسې شرمیږي ستا یادونه
منم چې تصور به مې ستا خیال ته غاړه وځي
په ذهن زما هم کورې بانړیږي ستا یادونه

هر څو مره که د وخت په تاکړو کښې شي پریشانه
زاهدته به په هر قدم یادیږي ستا یادونه

اباسین کراچی ۴.۹.۶۶

که مې تار هم پاتې نه شو په کریوان ؛ ډوبه لمن کښې
چه ګلونه زما خوښ دي ور ته ناست یمه چمن کښې
ګېنې لرې کړه د ورو ، تش جامونه ډېر داوا خله
ساقي! زار دِ شم له سترګو لاړې وینه تشه بدن کښې
ستا دیاد غوټۍ به ګل شي په شبنم د ژړو او ښکو
مُتازي د بهار نشته د غریبو په چمن کښې!
د ډېرو ستورو په مینځ کښې سپوږمۍ دا ښکلې ښکاري
لکه زړه چه د زړه سره! د یادونو په کفن کښې
زولنې څه وي؟ قید څه وي؟ که په دار شم سرو قده!
ستا د زلفو نوم به اخلم، څو چه ساه وي په تن کښې
چا ته "خیته" وي "شیرینه" چا ته حُسن [illegible] غرکنې
فرق نشته د زړه سره! په ضرډ وراډ کوه کن کښې

هر آشنا را ته رقیب شو هر پښتون خپل را ته پردې شو
په ژوند ون تنګ شوم [illegible]! زړه مې نه لګي وطن کښې

بانګ حرم پېښور

۱۴ . ۹ . ۶۶

دا چې ګُل رانه خفه دے دا زغو پکښې څۀ لاس دے
چا چې مونږ ته کتے نۀ شو د هغو پکښې څۀ لاس دے
زۀ منم چې به شبۀ نۀ وی، رما خپل، د زړۀ ملګری
دا چې ژوندے په سنګو دے، د پردو پکښې څۀ لاس دے
بے قصوره چې په دار شو ستا د زلفو مئین ګُله!
د وریځو څۀ ورانے دے د دے شپو پکښې څۀ لاس دے
ډیوو ونیول ګُلونه، یار د ورنه پیستنه شو
رقیبان خو چرته نۀ وو، د ډیوو پکښې څۀ لاس دے
چې مے لاس رپږي کاسے ته، ژبه ګونګه، ساه نیولے
د محفل سره بلد یم، د توبو پکښې څۀ لاس دے
نۀ خبرے کړے زۀ چپ یم، مرور خفه نۀ شے
رقیبانے مے شوے اوښکے، د سترګو پکښې څۀ لاس دے

چې د ژوند اَزغی اَزغی دے، میخانه کښے هم نۀ راځل!
په بنړو باندے مئین ئے، د بنړو پکښې څۀ لاس دے

بابه

(۶۶ - ۱۰ - ۱۰)



د سپرلي په ورخو شپو کښې د توبو ذکر چیچل کړي
چه په مړا ډ ستړکو کورټ دکا سوز کر چیچل کړي
نو ر په تخه د رته زړه وایم خانه ماته څه یادنه دي
د جونګړو ټیټې نادرې، د ډیوو ذکر چیچل کړي
چه وعدې ے کړے وریا دے، ملامته اشنا اووے
"نخوانے خبرے پریږده، د مودو ذکر چیچل کړي"
"عجیبه حق پسندي ده" د یارانو په محفل کښې!
د سحر ذکر کړے لکي، خو د شپو ذکر چیچل کړي
اشنا! ما سره چه کښینې، د رقیب خبرے مه کړه
ستا د ګل څوانئ نه زار شم، د ازغو ذکر چیچل کړي
سړه ګلونه زمونږ خوښ دي، ستم را دے اشنایانو
چا چه ونې ورله ورکړے، د هغو ذکر چیچل کړي

بس دے غلے شه نزاکت! د بنړو ځنې څه غواړے
زما ز ړه سورے سورے دے، د بنړو ذکر چیچل کړي



کوم چه اشنا زما په ژړه کښې دی
هم هغه خبرې ستا په خوله کښې دی
مخکښې مې ستا مخ وی د ژړه سره تل
هرکه تصویرونه مې لېمه کښې دی
شیخه! له رندانو کښې څه معنی؟
دا خو لیونی دی دوئ په څه کښې دی
لرې لیونو ته کړه پلو د مخ
ډیره موده اوشوه چه تیاره کښې دی
پرېږده چه یاران دی په مغوب مېئین
پوهه اُ ستاد ان په نمرخانه کښې دی
رسی به منزل ته لیونی د عشق
دوئ نه په ګرمئی نه په ساړه کښې دی

نه معاف کوی بیا هم زاهد اُخلق
نه که دچا بدا اُونه په نښه کښې دی

(۲۲ - ۱۱ - ۱۴)

د حقیقت دے حقیقت پسے خبرے کیږی
په هر یو وخت کښې شخصیت پسے خبرے کیږی
هسے نه داغ دِ شی محفل کښې مسیدل په لمن
دلته د بنګلو عنایت پسے خبرے کیږی
رقیبه! خدائے خبر چه ستا ګریوان هم به پاټے شی
نن که زما په محبت پسے خبرے کیږی
آئینه ګر په مجبوری کانړو ته لاس واچوی
اوس چه د نن په نزاکت پسے خبرے کیږی
څه عجیبه ده د جونګړو خلق ستا نی محل
په زردا رانو کښې غربت پسے خبرے کیږی
تږ وله جام چه ورکوے ساقی نو ډک ورکوه
ستا دشومتیا په دے عادت پسے خبرے کیږی

زاهده! هلته اوسیدل دی هسے ځان سپکول
چه په کوم څم اڅکوم محلت پسے خبرے کیږی

بانګ حرم پلینبور،
۲۵ - ۱۲ - ۶۶



پښېږي دوه څلور چې نه زړګونو کښې مخونه
ځانېږي چې یارانو د چاز پرونو کښې مخو نه

هر څو مره که ئې قصد دَ هیرېدو ادکړم آشنا!
یادېږي خاځا راته د پردو لو کښې مخو نه

سکون په میخانه کښې دَ ژوندون شو راته ګران
ساقي چې اوړي راوړي په جامونو کښې مخونه

یاري دَ هغه خلقو به څوک څهٔ کاندِ خوشحاله
راښائي چرته نه چې په عمرونو کښې مخونه

تر عمره به چمن له ورکوي دَ زړګي وینه
یارانو چې څوک وینې په ګلونو کښې مخونه

آشنا! یوازې ستا ستم خونهٔ دے چې ئې یاد
ښکارېږي مې دَ زړهٔ په پرهرونو کښې مخونه

الهٰه! ستا دَ ژوند هغه زیږی لخې پکښې نشته
ـنی دا مې خو پرېږدي بازارونو کښې مخونه

مونږ ه دَ ژوند په هره لار کښې سوَزو
ستا په انکار ستا په اقرار کښې سوزو
څو مره رنګینې د سپرلی ورځې شوې
کوڅه کښې سوزو په بازار کښې سوزو
شپه د هجران په او ښکو نه رنړیږ
لکه د شمع په اعتبار کښې سوزو
خوَلې پرتې ستا په سورمځ دَ غمې
پر خه کښې سوزو په انکار کښې سوزو
ساقي! چه نوی مړاوې ستړګې دیار
شراب دِ داکړوَه بهار کښې سوزو
د خپل چمن ګلو نه نهٔ شو کتې!
نظر مو سوزی په انکار کښې سوزو

راځه زاهده! چرته یل بیله ځو
دَ حاسدانو په دې نیار کښې سوزو

(۲۳- ۱۲- ۶۶)



هر وخت په نظر نظر کښې ښنسو خبرے نهٔ کوو
څو مره مهربان ساقي لرو خبرے نهٔ کوو
نهٔ کړو څوُو ځانته د بلبل هسې دَ ګُل فکر
ځان لکه پتنګ قربانه وو خبرے نهٔ کوو
دا دَ بې نيازئ په کوم مقام کښې آشنايُو روان
خنګ په خنګ يوُبل سره که څو خبرے نهٔ کوو
مخ دِ سرۀ شراب شي چه ناساپه چرته وګورے
دواړه عشق په زړونو کښې لرو خبرے نهٔ کوو
خومرۀ خطرناک دے د زړوند لارے شوے نن پرون
مونږ لکه د غلو په پنجو څو، خبرے نهٔ کوو
هيڅ دمحبت په دستور پوه نهٔ شوم دَ زړۀ سره
کلے د يوُبل سره کوو خبرے نهٔ کوو

لاس به راکوي زاهده د غمه مرور ياران
دا نظام دَ ړوند به بدلوو خبرے نهٔ کوو

بانګحرم پېښور ۳ ۔ ۱۰ ۔ ٦٧

آشنا د ژوند د شپوے اختتام نشته نشته
مینه له دِ د زلفو څخه پیغام نشته نشته
واعظ د ساقی زړۀ جوړ په اوده کړو آشنایانو
ږیوے په میخانه چه د ماښام نشته نشته
یارانو څۀ بے خونده ورځ شپے شوے د ژوندون
دسترګو خوږ ید وچرته ګلفام نشته نشته
ما لاس کړو صراحۍ ته چه وانۀ چوی شراب
ساقی رانه په شا شوے چه جام نشته نشته
آشنا په تورو زلفو دِ تر داره پورے راغلم
لمن مے تکه سپینه بل الزام نشته نشته
خمار ستا د نظر که ترے ساقی شی چرته لرے
شرابو کښے نشه ؟ یا څۀ آرام نشته نشته

زاهده! چه د قام له غمه سترګه نۀ کړے پټه
بے شکه چه دِ قدر د کلام نشته نشته

بانګ حرم پیښور

٨ - ١ - ٦٧

وطن کښې شته سپرلے په هر قدم ګلونه زیږ دی
مېنوله ړالئ کښې د کرم ګلونه زیږ دی

ښکاریږی چه پلوٴ ته د رقیب وه ورپېښ شوے
محفل ته چه راوړی تن صنم ګلونه زیږ دی

هر ښکلے ورته ګوری، هره پېغله ترے ځاریږی
یارانو! په دے څه که د شړشم ګلونه زیږ دی

چمن خوَلے دے چه به بیا راځی بهار
وړو، وړو غوټیو سر ئے د غم ګلونه زیږ دی

صنم چه رنګینی به وی په ژوند کښې پیدا شوے
هر مخ د رنګ ډهلے، دَ هر چم ګلونه زیږ دی

یاران په میخانه کښې نن په کار دے دَ شرابو
ساقی ستا په ډک جام د وی تسم ګلونه زیږ دی

زاهده! تا په ژوند چه خوښول به ګلاب ممی
په قبر د پړا ته نن د ماتم ګلونه زیږ دی

بانګ حرم پېښور ۲۴ - ۴ - ۶۷

بے شکه چه او سیږی ستا یادونه په لمبو کښې
آشنا! خو موږ لوټے کړی دی خپل زړونه په لمبو کښې

کله به دَ ژوندونه بیا ونکړی آشنا یا نو!
خندا کښې که چا ولیدل ګلونه په لمبو کښې

لبے دِ دَ رُخسار چه څومره تیزے شی نو نبے دی
آشنا! چه غلی کیږی ے دردونه په لمبو کښې

کرمی دکائنات به موښته او سیزی یارانو!
موږ ډیره موده کړی دی خوبونو په لمبو کښې

نن ست راته دَ ښبنلو چه محفل کښې کړی په مینه
ساقی جوړے سره کړی دی جامونه په لمبو کښې

کودونه بےګناه به راله خود سیزی د زړونو
یارانو چه لوټے شوی دی وختونه په لمبو کښې

کرمی دِ دَ غزل څکه خوږه ښکی نن راهدهٔ!
او سیږی دِ دَ مینے چه خیالونه په لمبو کښې

(۲۷ - ۷ - ۲۰۲۱)



بیا مے اشنایان د مرګه تیر شو په محفل کښے
ډُمے کړے خبرے چه د یار سره غزل کښے

ګرځی پیمانه پسے تر عمره په تیارۀ کښے
خدائے دِ حصار نۀ کړی څوک ساقی ستا په وربل کښے

محه دَ غمونو دِ خدائے وا کړو ی په یله
او سم، شهزاده یم د یارانو په محل کښے

مادر له زړۀ در کړو چه دِ سوال وکړو په سترګو
تارا ته دړدو نه اَشنا پریښنو دل بدل کښے

ولے خفه کیږی؟ چمن ستا سو شو یارانو!
نۀ تیریږی عمرے دَ زړونو په مقتل کښے

لاس را کړه اشنا یو اځے خدائے خبر چه پاسم
مړ به شم بے مَله دَ ژوندون په دے مزل کښے

خدائے خبر چه راشی زاهد یار ره! تر سحره
زړۀ تر نه ورک شوے دے دَ زلفو په ځنګل کښے

(۱۱ ـ ۸ ـ ۶۷)



خهٔ اُو دهٔ اُو دهٔ کا نهٔ کړی شرابي شرابي سترګے
اُو دهٔ ویښې کړي ویښې اُو دهٔ کړي شرابي شرابي سترګے

نهٔ سم ما ته راګتے شي نهٔ نظر اړو ي بل خوا
هغه کړي چه خوک ئے نهٔ کړي شرابي شرابي سترګے

مړو کتل ئے که ژوندي دے، شوخ نظرئے خو قیامت دے
مړهٔ ژوندي کړي ژوندي مړهٔ کړي شرابي شرابي سترګے

دا دعوے به دِ بیا نهٔ وي، که دِ وُلیدې دے واعظه!
زړهٔ دکانړي هم اوبهٔ کړي، شرابي شرابي سترګے

بیا به تهول عُمر زاهده! قسمونه خورے په مېړو
ښنځ په زړهٔ دِ چه با نړهٔ کړي شرابي شرابي سترګے

(۶۷-۸-۳۰)

Scanned with CamScanner



قیصه که مې زړه دی، د ګلونو په کوڅه کښې
خونونه مې چېرته دی د ګلونو په کوڅه کښې

دا بیا دی لیونی جوړ را خلاص شوی د زندانه
لاړ نشته هنګامه ده د ګلونو په کوڅه کښې

شراب دی د نظر چه را وریږی په مینو
بس سمه میخانه ده د ګلونو په کوڅه کښې

دیوې درنه یارانو چه د زړونو پاڼې نه شی
نظر نه لګی شپه ده د ګلونو په کوڅه کښې

ننندی دی چه بې واره نښکته کیږی په ډرشلو
نښکاریږی چه کعبه ده د ګلونو په کوڅه کښې

سپرلی ته هیڅ حاجت اوس درا تلو نشته یارانو
ځوانی زما پرته ده د ګلونو په کوڅه کښې

زاهد دې چه منت کړی یار ټې نه پریږدی لمن ته
رؤف! تماشه ده د ګلونو په کوڅه کښې

(۶۷-۹-۰۶)

چه د خبرے اشنا را غلے د انکار کوځ له
را معلومیږی چه به راشے د اقرار کوځ له

واعظه! ولے شوے خفه د میخانے به ذکر
نه هم د یار کوځ له ځه زه هم د یار کوځ له

ځه چه زړګیه! د اشنا د زلفو سوری له ځو
یارانو یو ړے ځوانئ چه د بهار کوځ له

دا خوښه ستا ده که د زهر شی پیږ زوکه شراب
ساقی! مقصدے رسیدل دی د خمار کوځ له

هره خبره د رقیب سره که شک زیکوی
مینه ے بیائی د زړه سره د اعتبار کوځ له

تا را نه نشی هیرولے نور غمونه د وخت
ستا د پلو په لار د ځمه د روزګار کوځ له

زاهده! زلفے د اشنا چه در نه خلاصے نشی
ته که منصور پسے ورځے چرته د دار کوځ له

اولس کوټه

١٤-٩-٦٧

خټې چه یارانو میخانې ته څو د خښو موسم دے
ورېځې راغلې د توبو د ماتېدو موسم دے

اشنا شکی شته زړه هم شک کوم په نیت د اشنا
دا سے ښکاریږی چه د زړونو بېلېدو موسم دے

نن خوسائی د تن و تنده په تلو ما ته کړه
کا سے شوے ماتے، زړونه مات په ماتېدو موسم دے

کمڅی د وترو ورېځے زمونږ ساه ړوبه وی
مخ راښکاره کړه لږ شهادا سویلو موسم دے

ګله! یادونو د سپرلی د چه یادونه را وړل
زړه ے راډک شو چه دسترګو وریدو موسم دے

محفل د خورشته چه ډیوو لوګی خوارۀ کړل اشنا
تیارے خوریږی چه جوړ د زلفو خوریدو موسم دے

مه خفه کیږه که د ډیر شو رقیبان نزا هلهٔ!
دا سے ښکاریږی چه دا سنا د څلیدو موسم دے

(۹۷۰۹۰۲۶)

د یارانو په نظر کېنې چه بې "لار" یُو
دا په دے چه ستا د زلفو پرستار یُو

هر سحر د شپے د مرګه پیدا کېږی
شپه مونږ خوشه د سحر په انتظار یُو

ستا په مخ او د زلفو ورک یُو سر ګنده!
څرته سوزو په لمبو څرته په دار یُو

مینه غواړو اشنایانو په عشق مړه یُو
نه د نسکلو په اقرار نه په انکار یُو

ستا د مینے نه بلا مینے پیدا شوے
خو اشنا ستا د لمنے طلبګار یُو

کفاره ستا د غوښتنے ادا نه ده
لا د خلقو په نظر کښې ګنهګار یُو

مونږ د ژوند په معنے پوهه یُو راهده!
سکون نه خوښه وو ځکه ناقرار یُو

(۲۶۷-۱۰-۶۱)



ستا په نوم خو پابندي وه ستا په غم چه پابندي شوه
سادرومند ازغي ازغي شوه په هردم چه پابندي شوه
ستارا تلهٔ محفل ته جرم، ستا پلو ته درتلهٔ قتل
ليونی به دعشق مړه شي، په قدم چه پابندي شوه
مادرومند لارے کړے دګمراه په نوم يا دېرہ م
ډډ ذرهٔ سره! ستا د زلفو په هرخم چه پابندي شوه

ليونی به د اوس کوری د قدم نخښے سجده وله
ستا د رشل چه د رقيب شوه ستا په چم چه پابندي شوه

غزل مهٔ ليکه زاهده! چه ياران دِ خفه کيږی
ز به پرے کړه کوټے پرے کړه په قلم چه پابندي شوه

(٦٧ - ١٠ - ١٨)

رقیبان چه واکدار شول ستا مینو ته غوږ نه کړي
ستا دیدن له به څه درشي ستا رنګین محفل به څه کړي

چه دا ښکلي داسې ګوري، چه دا ښکلي داسې خاندي
بلا زړو نه به ستي کړي بلا زړونه به وراته کړي

ستا لښتې یادونه، ستا نښه نښه خبرې
ما د خوبه که وُیاسي، ما په خوب باندې اُوده کړي

که رڼا دِ د مخ نه وې، که دِ شپه نه وه د زلفو
تورې شپې به خلق وُخوري، سرې لمبې به خلق مړه کړي

تر قیامته به قرار وي، تر ژوندونه وي مدهوشه
ستا نظر چه څوک دا لیونی کړي، ستا نظر چه څوک اُوده کړي

په سور مخ دِ خولې وینم، مجبور یم ته حیرانیږم
اشنا ګوره! یو ځائے څنګه اُور، اُو به هم اوسېده کړي

چه د سترګې شوې رقیب ته، ستا آهد هم شرابي نه
توره خړه باندې تله کړي، نیمه شپه باندې راتله کړي

(٨ - ١١ - ٦٧)



څوک دجفا د لاسه مړی د چا له یار ګیله ده
ژوند سراسر ګیلې ګیلې، په هره لار ګیله ده
ستا د جامونو په احسان بې رقسم وی ساقی!
دَ بې قراره زړهٔ دَ سترګو له خُمار ګیله ده
که ژوند ئې غواړې نو پوښتنې له یواځې ورځه!
په رقیبانو باندې مړی ستا دَ بیمار ګیله ده
"ګل" وینې وینې دَ ازغو په څوکو ژوند تیروی
شبنم په اوښکو کښې ډوبیږی دَ بهار ګیله ده
هره لمحه دِ دَ زړهٔ سره دَ ژوند لارے ساقی
دَ محبت په لاروځه، د انتظار ګیله ده
په رقیبانو چې وریږی د کرم وریځې
زما په زړهٔ کښې، ستا د زلفو نه شم زار ګیله ده

زاهده! څهٔ له اذیت ځان له په بیحه اخلې
دَ زړهٔ تارونه راله مهٔ چیړه هر تار ګیله ده

بانګ حرم. شهباز ۲۶۷۰۱۱۰۱۳

زما په لمن بې دی، هم د آشنا په لمن داغ
یاران لګوی دلته د هرچا په لمن داغ

ستا تور، د محبت دے د اشنا د سترګو تور
دا تور رڼدی پوښان څله زما په لمن داغ

داغونه پټ ساتم ستا د جفا او د ستم
ویریږم هسې نا، چرته شی ستا په لمن داغ

رقیبه! د یار زلفې او مخ مه ستا په محفل کښې
ورکیږی په تیرونه په رنړا د لمن داغ

ژوندون غورزوی او رته هم په دار خیژی اشنا
زغملے چه څوک نشی د وفا په لمن داغ

ستا حسن دے بے کچه، ستا ځوانی که ده بے داغه
دے عشق دے آئینه، نشته زما په لمن داغ

زاهده! هر وخت مه نیسه لمن د "صد اشنا"
یاران دِ چرته کښې نه بې دی هم دا په لمن داغ



سم چه نن په جام باندې ویشتنهٔ کوي
داسې معلومیږي ستَ دَ زړهٔ کوي
غواړي هر نظر کښې هر يې منځ زړهٔ
خدائے خبر چه دوئ په زړونو څهٔ کوي
غل دَ اُوږدو زلفو غلطیږي تار
هر وخت اسویلي اُوږدهٔ اُوږدهٔ کوي
چاته چه ور اوګورے نو خاندهٔ مَه
نڅکوي خندا، دِ چه باڅړه کوي

غواړي د یارانو نه دَ زړهٔ مینه
خلق دي په څهٔ او زاهد څهٔ کوي

۲۶۷ - ۱۱ - ۱۴

په نظر کښې چه د سترګو نه نشي تو يه وي
د زاهد! نو سترګې هم ورته جذبې تو يه وي
څه که په دار شو ستا د زلفو ليونې بې ګناه
بلا ځوانئ دلته صليب د زمانې تو يه وي
ورته لمن چه خپله نيسي ډيادو نو د زار
غم مې له سترګو نه که اوښکې پښتنې تو يه وي
تا چه ساقي وي عادت کړې د نظر په ميټو
څوک ته بيا لاس نيسي جامونو ته کاسې تو يه وي

زړه د ورځې ستا په غم کښې چه اشنا جرم شي
اوس به زاهد لکه شبنم اوښکې د شپې تو يه وي

۲۶۷ - ۱۱ - ۳۱



"ستا" په "نوم" خلق نیسي ستا تکل په ما الزام دے
ستا احساس چه پکښې پاڼې هغه زړه دلته بدنام دے
چه احساس ورسره نه وي د بل زړه او د بل فکر
تنهائي م اشنا شپه ده ستا محفل ته مې سلام دے
هر رقیب ته اوچت گورم، که هر ګل ته کتے نه شم
یو زما د عشق وقار دے، بل د حُسن احترام دے
ستا د مینې نه چه تښتي، د دوران لمن رانیسي
د غه زړه کښې جذب به نشته، د غه فکر اشنا خام دے
د دوختونو نه آزاد یم، په ګردش مې څه بکار نشته
ستا رخسار زما سحر دے، ستا زلفان زما ماښام دے
ستا رنګونه پکښې وینم، ستا خبرے ترینه آورم
چه هر ښکلے زما خوښ دے، چه هر ښکلے ګلفام دے

لږ زلفې دې په شا کړه لږ ورا و ګوره مټین ته
ستا نظر الهدی تیار ډ کښې اوسي ستا نظر الهدی دلته ګمنام دے

جمهور اسلام خنبو دی ۲۶۷۰۱۱۰۲۶

ساقي! زړه د واعظ کيږي سړو جامونو ته چې
وې خنکم دِ جام واخلي، ګناهونو ته چې ګوري

ستا د زلفو په لار رسي لار ورومه د ژوند منزل ته
د سحر په ارمان مړه شي څوک وختونو ته چې ګوري

د ژوند شا ړې به چمن شي په شيبو ستا ديدارونو
زما سترګې دِ ړندې شي بهارونو ته چې ګوري

تاج محل ورته شي مخکښې ستا د مينې په سلګو کښې
زړه مې دلته د زړه سره! محلونو ته چې ګوري

ستا د زلفو د دروند والي نن تر اقله ته احساس وُشه
اې د زړه سره! په پښو کښې زنځيرونو ته چې ګوري

۳۰-۱۱-۶۷ء



ستا دَ خاطره ے په خُله باندے ګیله نۀ راځي
ګني اشنا کومه خبره ده چه شبه نۀ راځي

یوځل چه اوځنبي ځوک اشنا ستا د مخمورو سترګو
بیا په قسم هم ستا له چمه پستنه نۀ راځي

ځو موره هوښیار دي د چا زړه له ځانه نۀ بدَوي
ښکلي وعده کوي یارانو په وعده نۀ راځي

لمن مے اوس ښځه له رانیسي، ساقي! پرېږده چه ځم
ته په سجده وو رکوے جام، ما له سجده نۀ راځي

ستا دَ راتلو په انتظار وُو تر سحره ولاړ
یارانو ډېر اوویل زاهد ته چه "راځه" نۀ راځي

۱۱-۱۲-۲۶۲

زما په ژبه نه یو هیڅ ی ا په کیلو نه رسی
د یار مزاج کښې پښتو نشته په پښتو نه رسی

تاخو وعده د سپرلی وُکړه د وعدے نه ډِزار
ولے شراب زما د صبر تر سپرلو نه رسی

نن چه څوک را نخلهٔ یارا نو! ستما ښتې لـه زما
د یار کوڅے ته جوړ شرنګا د زولنو نه رسی

هره سلګئ کښې ستا د زلفو ا رمانونه کوی
ستا په محفل کښې څوک په ژبه د ډیو نه رسی

تا به واعظه! وو سیزے دَ ژړونا ون په لمبو
نښه ده چه لاس خو دِ دَ عقل ترکمڅونه رسی

ساقی! که خوښه دِ وی راکړه چه په لپو ورکړه
دَ عُمر تږی دی راغلی په کاسو نه رَسی

چه دَ منصور په لاره نهٔ ځې نو پریشانه ګرځه
زاهده! یار ته څوک په تشو اسویلو نهٔ رسی

۲۵ ۰ ۱۲ ۰ ۲۶۷



هر يو کام مے ناکامي ده هر قدم مے زړه چودونه دے
په بخت خومو زور آورئيم زما خومو سبه ژوندونه دے
څه که نه راځے اوس خيردے، د صبا په وعده ګله!
ما ته هر څه کښے ته ښکارے، ما ته هر يو ترن پرون دے
ستا ديا د کانړي ئے اولي، د خيالونو په کوڅو کښے
د محل دنيا ئست شمع، تصورے جوړ مجنون دے
زما ستا نه طمع نه وه، چه جونګړے ته به راشے
دا د وخت يو اتفاق دے، د حالاتو يو سمون دے
د هجران په توره شپه کښے، را ته شمع وي بليږي
ستا ياد و نه زهير مه شه، ګنې ژوند خو مے زبون دے
دو مره ضد را سره مه کړه، اے د حسن ښا پيريه!
ستا به زړه د کانړي جوړ وي، زما زړه هم د پښتون دے

چا ته مه وايه زاهده! چه شاعر يم غزل ليکم
ارسطو پکښے څوک نشته، د لته هر يوا فلاطون دے

# قطعات

همیشه نور وی دَ دیوو مخونه
خو دنړه وی تل د تیَرو مخونه
ژوند چه راکاږی د دوزخ په لوری
خدائے دِ بدل کړی د هغو مخونه

(۲)

ستا د یاد دیوے وخت نهٔ پریږدی رنړا ته
خدائے دِ مَل شی په تیارهٔ دَمسافرو
دَ یار خیاله! لږ شان لاس راکړه پریوځم
زهٔ عادت نهٔ یم د دے لارو کوډرو

(۳)

د وخت یهار ته بد وئیلے نهٔ شم
ځکه چه دا دَ ژوند کلونه سپړی
آشنا! تا دے ته چرته سوچ کړیدے؟
چه دا ورغلی پرهرونه سپړی



مړاوے که نهٔ شو دَ دوران د ستمونو سپرلی
وی به تر عمره د زړهٔ سره! په زخمونو سپرلی
اوس دِ سپرلی دَ ځوانئ نهٔ راځی دیار په کو ځه
دَ زړهٔ په وینو دی راغلی په زړګونو سپرلی
دَ مړاوُ سترګو مړ وکتو ته دِ شراب لوګی شه
چه راولی د ژوند په شاړو، په رُوحونو سپرلی
تا سوته پته دَ ځوانئ د زورتوا و سه نشته
وژنی ځانونه په خندا ستا سو ګُلونو سپرلی
دَ ژوند میره به ے بنیرازه ستا دیاد سپرلی کړی
رنړوی دلته کښے ګلونه د وختونو سپرلی
دغم ګُلونه که دِ خوښ وی نو همدمه! راشه
دَ زړهٔ چمن ته دی راغلی دَ دردونو سپرلی

با ته چه ګورم نو دَ ځنځه ئے ایرے چنړیږی
راهَدَه! څومره شو بے رنګه د ځخونو سپرلی



Scanned with CamScanner

مخ له راشي وار خطا وار خطا مخ اړ وي

د خپلو بد و نه شرمېږي اشنا مخ اړ وي

زړه ئې تر اوسه لا لمن د يارانې را نيسم

داسې ياران ئې دي يارانو له ما مخ اړ وي

هېڅ په دستور اوړي په مزاج د ښکلو پوهه نشوم

نن چه سلام وکړي په مينه صبا مخ اړ وي

که ارادې شي پښتنې او زړه د مينې نه ډک

رقيبان ځکه چه د سالمې دُنيا مخ اړ وي

زما په ستر کو کېږي ډېر ښکلې جوړ ستا مينه وينې

کنې نو ځکه په غصه کېږي له ما مخ اړ وي

دا خو وي خپل نو په خپل زړه کېږه حکم خير ساتي

د پردو ځکه کار دې آخر چه د چا مخ اړ وي

هميش ياري کړه بې قسمه، بې وعدو زاهده!

ورنه چه او خوري قسمونه نو بيا مخ اړ وي



رنګ چه خلوص کښې نۀ جذبې وي نو غزل به بیکی
دَ حُسن و عشق چه لیونے وي نو غزل به بیکی

هر تخیّل او چت پرواز نل د جذبې نه مومي
د چا چه زړۀ کښې ولولې وي نو غزل به بیکی

دَ "دوران غم" نه چه څوک غم ښي دَ اشنا وېلې
دَ عشق چه پلې پرې لمبې وي نو غزل به بیکی

هر یو ورق د ژوند حاشیې ی د غزل لمن کښې
چه په مزاج د غزل پوۀ وي نو غزل به بیکی

یاران که هر څومره یارا نو غزل نۀ خوښوی
زاهدَ چه څو پورې ژوندې وي نو غزل به بیکی

۲۶۸ ۰۱۰۲۴



عُمرکه ے تیرکړلو جانان ستا پہ کوځہ کښے

خپل ے نهٔ شو بیا هم رقیبان ستا پہ کوځہ کښے

وے لیدل تا رونه د ګریوان ستا پہ کوځہ کښے

خوښ شولیونی دَ بیابان ستا پہ کوځہ کښے

صبر د ایوبؑ وی کله او ښکے د یعقوبؑ

عمرے تیریږی څو مره ګران ستا پہ کوځہ کښے

نهٔ د وړی دیوے دَ زړونو بیرته ستا مټین

نهٔ شی چه زغملے شبستان ستا پہ کوځہ کښے

وِینه پُښتنه به ے ستا نوم اَخلی تر عُمره

خیر دے که ے اووژنی یاران ستا پہ کوځہ کښے

زلفے دِ خورے کړه چه زخمونه ئے شی راغونډ

اوسی اور زیلی دَ دوران، ستا پہ کوځہ کښے

کوم چه د پټے مخونه لمن خپله راکاږی

او ے لیدل هغه زاهدان ستا پہ کوځہ کښے

۲۶۸۰۲۰۴



تا ته که زما خبرے گرانے دی
بیا هم په ما ستا خبرے گرانے دی

نشته په قسمت کښے چه خندا زما
تا ته په خندا خبرے گرانے دی

تا ته که دی گرانے، خوګه ستا ندی
ما هم آشنا خبرے گرانے دی

ستا په مخ خبرے د هر چا اورم
خومره په ما ستا خبرے گرانے دی

دا کومه پښتو ده، چه تاهیر کړمه
مر دِ شم، خو دا خبرے گرانے دی

ما ته دی اسانے چه لوستے دی
تا ته د وفا خبرے گرانے دی

گران چه دی زاهد ته د غزل بیکل
تا سره اشنا خبرے گرانے دی

٢٦٨٠-٣-٣١

نه نشه نشه څنګیږه، دَ ځوانئ په ګلستان کښې
زهٔ به ګله! ستا تکل کړم، بې قراره، بیابان کښې
نهٔ ځمهٔ حُسن په مکان کښې، نهٔ ښکلا وینې زمان کښې
چه کړې دې وی دَ حُسن دَ زړګوټې په مکان کښې
په بنګړو دِ چه مړین یم، دَاوږدو زلفو میر منې!
زه لنو کښې یم خوشحاله، تړزوندونه په زندان کښې
که شراب راسره نهٔ وے، ستاد سترګو د یادونو
زهٔ به مړوَم دزړهٔ سره، دَژوندون په ریګستان کښې
په لاس رانغلے ستا زلفے، مخ دِ سپږی نظرو نه
نسیمے اوُ ورځے تیریږی په حسرت اوُ په ارمان کښې
انتقام را نه زوندا خلی شوو ے دغه څوک ملګر
چه نے خیبرے دے په زړهٔ کښې چه نے فرق دے ایمان کښې

تا نه پته دَځان نشته دَزاهد نه خبر نهٔ نے
دَ مردان تغزل ستائی، اشنا خلق په ایران کښې

موږه غمژن به کړو محفل کښې ستا د غم خبرې
پا دِ سي خیر دې که څوک نا وړي دا دَ غم خبرې

لا څو قیصه یې ختمه شوې د غم نه ده چې څ
ما تر سحره اورېدلې ستا دَ غم خبرې

دُ ګلو سترګو کښې دي اوښکې چمن ټیټ دَ وړې
موسم چې اوکړې په راتلو کښې بیا دَ غم خبرې

وې خندل ورته وېډل، وې څم لږ د رقیب محفل ته
هو بیا رهیښې کړې په خندا خندا د غم خبرې

زاهده! اوښکې د اشنا سترګو کښې نه شم لیدې
پام چې اونه کړې ورته بیا زما دَ غم خبرې

۲۶۸ ۰ ۳ ۰ ۴



ستا به څهٔ زړهٔ وی چه په ځان مئین دے
زړهٔ زما وانیه په انسان مئین دے

دَ خیال کو څهٔ چارو کوم په سبزو
چه تصورے په جانان مئین دے

زړهٔ مے ځان وژنی ستا دَ زلفو په تار
په دار مئین دے په زندان مئین دے

تسکین چه نهٔ مومی په نبار کښے دژوند
زما زړگے په بیابان مئین دے

خلق داوائی چه زاهد ته گوری
لیونے نهٔ دے په ایمان مئین دے

۱۱ ۰ ۳ ۰ ۲۶۸



خبرکه یارانو! د یار درته رسید ونکے نهٔ دی
خو ولے ارمانکے ے له سترګو اودرید ونکے نهٔ دی
منم چه ژوند دے بلا سترګے به راځی مخے له
ولے ستا مړا وے مړا وے سترګے هیرید ونکے نهٔ دی
ستا دِ قسم وی ما تو ه هره و عد ه دَرا تلو
زهٔ دِ مئین یَم، حوصلے ما تید ونکے نهٔ دی
هر یؤ محفل، دَ هر یؤ دور به ستا ذکرکوی
ستا دَ ځوانئ خبرے ګُله زریږید ونکے نهٔ دی
اشنا! که شل ځله سیلاب دوخت په جوش راشی کښے
ولے شَملے دَ پښتنو هم تیتهید ونکے نهٔ دی
په هر محفل کښے به ستا ذکر سروِ قد ه کوُو -
مئین د زلفو دِ له داره ویرید ونکے نهٔ دی

شپے به ترکومه روڼره وے نوی آسمان ته آخر
اوچے وریځے دی تراَهَدّه! ورید ونکے نهٔ دی

۲۶۸ ۰ ۳ ۰ ۱۸



مخ له را نغلے وا رخطا وارخطا څۀ چل اوشو
خیر دے رقیب سره که تلے وے بیا څۀ چل اوشو
تا چه به نۀ کتل نو ما به درته هر وخت کتل
اوس چه تۀ گورے، درته نۀ گورم دا څۀ چل اوشو
او دِ خندل، خوبهار ونه دِ په شونډو نۀ وو
چا د نظره کړے؟ دا ستا په خندا څۀ چل اوشو؟
تۀ که غږ نۀ کوے، نو خیر دے ستا فطرت داسے دے
زۀ درنه وے په ترخ ځم، دا په ما څۀ چل اوشو!

سَر دِ ببر، رنګ دِ تنک زیړ، شونډے دِ اوچے سپکا ری
تۀ خو نَراهَدَلا! داسے نۀ وے! په تا څۀ چل اوشو

ځ

دَ زړهٔ سودا دَه په زاړونهٔ کیږی
دَ ښکلو مینه په کتو نهٔ کیږی
ځځ دَ "شیرینې" "ته" "فرهاد" شی کنے
دیدن واعظه! په تسبونهٔ کیږی
ساقی! زاړهٔ میخوار دِ پاتے نهٔ شی
دا لِږ شراب دی دَ پردونهٔ کیږی
دَ همٰا سورے، دَ پے څخو مینه
دَ قِسمت نیک دے، په غوښتونهٔ کیږی

زاهد به ستا ځځ ته کتلی نهٔ وو
اشنا په مینه کینے پښتونهٔ کیږی

۲۶۸ ۰۳۰۰۳۰



زما زړه په کانړو اولی، چه د یار غمونه ژاړی
هر اشنا په ځان مټین شو، د روزګار غمونه ژاړی

حسرتونه مے لمبه شو، ارمانونه مے ستی شو
نن خوراشه د زړه سره! په زار زار غمونه ژاړی

اشنایان مے ولے نیسی، که ځوانی د ښکلو ستایم
چه په ګلو خوک مټین وی، د بهار غمونه ژاړی

ته چه رانه شے ګلفامه! په وعدو، په قسمونو
شپه په ستورګو کښے کړم تیره، انتظار غمونه ژاړی

مستی مه غواړئ یارانو! د تراهڅل د دے غزله
د "بیکس" غمونه ژاړی، د "بیمار" غمونه ژاړی

۳ - ۴ - ۱۹۶۸ء

* لہ لوئے شاعر عبدالغفران بیکس مرحوم .



نشه نشته، خمار نشته، دَ وختونو میخانه کښې
هر څه شته، خو قرار نشته دَ دَورونو میخانه کښې
که یقین دِ په ما نهٔ وی، راشه! وګوره ګُل رنګه
ستا دَ سترګو شراب ویشو، مونږ دَ زړونو میخانه کښې
چه دِ زړهٔ شو مه ترسترګو زر دِ شا کړله رقیب ته
مُخ دِ پټ کړو دَ زړهٔ سره، په لاسونو میخانه کښې
په جام څهٔ کړې؟ په وار څهٔ کړې؟ دَ شرابو منت نکړې
اے ساقی! چه څوک اوسیږی دیادُونو میخانه کښې

که زاهده! قرار غواړے دَ بازار په لوری ورشه
دَ نشو باران وریږی دَ رنګونو میخانه کښې

شپې ورځې مې بې رنګه دي د یار خبرې وکړه

موسمه! نن خورا شه د بهار خبرې وکړه

محفل کښې ګرمي نشته دا نګار خبرې وکړه

مطربه! په هر تار کښې د رخسار خبرې وکړه

نسیمه! که نشه په تصور شي د ګلونو

قفس کښې مې زړګي ته د ګلزار خبرې وکړه

پښتو دې خوئې کښې نشته د وفا نه خبرنه ئې

پښتون شه د زړګي سره خټه دلدار خبرې وکړه

نشې دسترګو والوتې ساقي! ستا د شرابو

د عشق خبرې وکړه د خمار خبرې وکړه

واعظه! هر محفل کښې به بیا ستا وي احترام

میخوارو ته په ژبه د میخوار خبرې وکړه

مقصد دِ شاعري چې دا د زړونو خوشحالي

یارانو ته زاهده! د روزګار خبرې وکړه

۲۶۸۰۴۰۷

# قطعات

کائنات ورته تهول سپور شی
کوم سړے چه حُسن کوړ شی
بیا سپرلی ته خزان وا ټی
سړه ګلو نه ورته اور شی

(۲)

خزان زلفو کښے ایسار کړه
لبو شان وُخاندہ بهار کړه
چه له غیرو شراب غواړی
دا بے لارے خدائے په لار کړه

(۳)

ستا د سرو سترګو په نشو نشه یم
د میخانے او بے رنګینے نه خښم
ساقی! انسان یم په انسان مینه یم
په کپړی کښے د چا وینے نه خښم

زړهٔ مې خفه دے د ګلونو باران اووروَه

اوخاندهٔ، اووایه، په زړونو باران اووروَه

دَ آشنایانو فکر سپور دے ژوند ته ګوتے نیسی

خدایه! دَ حسُن د رنګونو باران اووروَه

ستا شرابي سترګے د نظره مهٔ شه

زما دَ ژوند په حسرتونو باران اووروَه

بے دَ سیزلونه ګل رنګم مئین نه پریږدی

راشه دَ وخت په انګارونو باران اووروَه

موسم خفه دے، شونډے وُچے، ډیوے مړے دَ نظر

نن خو ساقی! د شرابونو باران اووروَه

په دَ اوږدو زلفو میرمنے! د سپرلی ورځے دی

راشه زما په ارمانونو باران اووروَه

ناهیل به مړ شی که دا ښکلی ورته غږ نهٔ کوی

خدایه! د رحمت په زړونو باران اووروَه

۲۶۸ . ۰۴ . ۱۵

سپين نيتو نه، خېږن ز ړو نه، قيامتونه قيامتونه
داد ژړ و ند ا منحا نو نه، قيا متو نه قيا متو نه

ستاد مينې شراب نشته، ستاد سترګو نشې نشته
داور يځې، بهارو نه، قيا متو نه قيا متو نه

سرو قد ده؛ تلله د خته دی، د نظر به د خته وايم
محشرو نه، محشرو نه، قيا متو نه قيا متو نه

چه د وُ خندل رقيب ته، لاس د ماله اشارا کړو
زلزلې شوې طوفانونه، قيا متو نه قيا متو نه

زما هره ګيله او بنکه، زما هر يو سوال کښې مينه
ستا خبرې، جوابونه، قيا متونه قيا متو نه

ستا خندا کښې بهارونه، ستا خبرې خوب د ګلو
ستا وعدې او ستا لوظونه قيا متونه قيا متونه

د زاهد په دې غزل کښې ستا خواني ده ستا خبرې
تو به خدايه! دا شعرونه قيا متونه قيا متونه

٢٦٨٠٩٠١٩

خاموشي نشهٔ نهٔ ده ريباره ښهٔ خو وايه کنه
جواب دِ ښهٔ راوړوله يارهٔ ښهٔ خو وايه کنه

دا غلے ناسته دِ محفل کښے اشنا نشه نهٔ دکي
دَ عشق لمن په شي داغدا ره ښهٔ خو وايه کنه

مونږ به ترکومه يُو بے نيازه دا سے غلي روان
زار دِ له نازه په دے لاره، ښهٔ خو وايه کنه

دا سے په چپه خُله جامونه دے غم نهٔ کمه وي
زما ساقي! زما قراره! ښهٔ خو وايه کنه

دَ خاموشئ په اور کښے سوزو به ترکومه آخر
ذرمي شپه ده زما يارهٔ ښهٔ خو وايه کنه

ستا دَ خبرو په ارمان يمه تر دے راغلے
غلے ے مهٔ ځه له مزاره ښهٔ خو وايه کنه

زاهده! پريږده تماشه د سروقد دَ زلفو
په کوم قصور راغلے تر داره، ښهٔ خو وايه کنه



مینه ګرانه شوه ګل رنګه؛ په هر ګام بانده مرکیږم
داتیوس نه شم کولے، کوم الزام بانده مرکیږم

په ازغو بانده زړه لارم "ګل" رقیب له اشنا ورکړو
په آغازے څخه کار نشته په آنجام بانده مرکیږم

مخ ړیپټ کړو ستمګره! چه مخ درته راوړم و
د سحر ارمان یه یوسم په ماښام بانده مرکیږم

د غم جام د رقیب لاس کښې زما حق دے ساقي غواړم
میخانه کښې د مرتبه یم که په جام بانده مرکیږم

څه به اوو ایم ریباره! ته به چا ته منت او کړې
توم ئے نه راځي چه واخلم په ګمنام بانده مرکیږم

پښتانه د رقیبانو منت نه کړي سرو قدره!
ستا کوڅه کښې که وژني احترام بانده مرکیږم

عجیبه مسلماني ده د یارانو په محفل کښې
چه نراهدره "اسلام" ستا یم په اسلام بانده مرکیږم

۰۶۸ -۵ -۱۱



په یو نظر ځ کړې بې ځانه چه په ځان پوهیږي
زما ساقي د زاهدانو په ایمان پوهیږي
ستا لیونے په کانړو اولی ستا مینی دړدوی
ستا د چم خلق شته په قدر د مهمان پوهیږي
په ما به بوټي وي زرغون په ما به ځاؤ رے اوری
چه خوبے نیازه بناپیرئ مے په ارمان پوهیږي
بیا هم له شونډو وکړي کیلے چه تقاضا ده د عشق
دوه مینه زړونه د نظر په هر بیان پوهیږي

ستا په فطرت باندے پوځ نه شو ستا په خوئ نه رسی
کنی زاهد خو په نبضونو د دوران پوهیږي

۲۶۸ - ۰۹ - ۰۱۳



غمونه راته ګورې حسرتونه راته ګورې
تا ستر ګې چه ناأشنا کړې نو دړ دونه راته ګورې

ګُل رنګه اخته به وګورم ګُلونو ته په مینه
سپرلې چه کله راشي ستا لوظونه راته ګورې

خوښونه مې له ستر ګو تښتولي دي ستا زلفو
تر عُمره به شو ګیر یږم چه فکرونه راته ګورې

خندا د راته ختۀ وه چرته لار کښې آشنا کړې
غمرونه پکښې تیر شو بیا رونه راته ګورې

چه د تهره رپي ما توی سر په ساحل
منزل ته چه نژدې شوم طوفانونه راته ګورې

ستم ته د دوران چه مې سر تیت نه کړو د عشق
اشنا په خوار و ستر ګو اوس وختونه راته ګورې

زاهد! نبا پیرئ چه مې خفه دۀ د ژوندون
پرواه مې پرې هیڅ نشته دې که جونه راته ګورې

۱۹، جولائی ۲۶۸



زما زړه تپته نښتم اسویلونه پته سکی
ځوک نه راځی محفل نه د ډیوونه پته نکی
ځوک چمن ته وو راغلی چا غوټۍ دی شوکولے
دا ما لیار ته پته نښته، دا زغونه پته سکی
ښځه زما په زړه پوهیږے، ښځه زما په نظر دے
ستا د رنګه معلومیږی، ستاد تلونه پته نکی
ځوک خوشحاله په ما نه وی، چه محفل ته دِ راځمه
حال مخونه راته وائی، د تندونه پته سکی

ښځه دِ زړه در پسے دړدکړی ښځه په یار پسے خفه ئے
قسم خه له خورے نراګاره! ستا بنړونه پته نکی

۳، اګست ۲۰۶۸



ځئ چه دَ زړهٔ سره بهارونه ژړا راشي
یاد دِ په خندا کړي پرهرونه ژړا راشي
کړي چه په محفل کښې څوک خبرې دَ خپل عِشق
بنځ مې شي په زړهٔ کښې تیر وختونه ژړا راشي
ځځهٔ په درزنه اووایځه، هیڅ نهٔ شم ویلې
مانه چه څوک ستا کړي تپوسونه ژړا راشي
ستا ټئ رقیبان چه دِ بانړهٔ اوُ برندې وُرُوزې
ویښې مې شي زخمونو کښې دردونه ژړا راشي

مخې له چه راشي دَ رقیب سره زړآهده!
نیغ نهٔ راتنه او دریږي لوظونه ژړا راشي

۵، اګست ۷۸ع



وختونو هرڅو مره که ما نه ستا کوڅې لرې کړې
ستا تصور دومره د مینځه فاصلې لرې کړې

تورې ورېځې د سپرلي، بادونه یخ، ځواني د ه
ساقي! جنت دې که دِ در د میخانې لرې کړې

ما ته محفل کښې شهٔ مسکې خو سترګې دې واړولې
شراب دې راکړل خو ظالم ترینه نشې لرې کړې

نږدې کېدل دِ څهٔ ګران نهٔ دي که ته لرې اوسې
ګرانه به دا شي که ته ځان را ته نږدې لرې کړې

خو د به زلمو خپل څادرونه ور کول نرا هډه!
پېغلو د سره چې پړوني لوپټې لرې کړې

۱۴، اګست ۶۸ء



نشې پکار دی، خُمار پکار دے
بې رنګه ژوند ه بهار پکار دے

واعظه! خیر دے که وی دوزخ هم
دیدن د ښکلو پکار پکار دے

دَ ژوند سفر چه دَ ښکوتلهٔ شو
یو مَل پکار دے، یو یار پکار دے

کوخه د خِضرٔ چه خطانهٔ کړي
چراغ په سر کښې دَ لار پکار دے

عمر مې تیر کړو په میخانه کښې
ساقي! زاهد له یو وار پکار دے

۲۵، اګست ۲۶۸

# وصیّت

هغه چه منځ کښې فاصلې پیدا کوي دَ زړونو
هغه چه فکر وسپوروي، هغه چه زړونه وژني
دشاعرۍ هغه سپرلی چه رنګ و بوئے نهٔ لري
هغه یارونه چه اشنا نازک ګلونه وژني



هغه وریځې تورې تورې چه شپې نهٔ لري
هغه شراب دَ میخانې چه خُمار نشې نهٔ لري
هغه نظر چه قیامت نهٔ لري لمبې نهٔ لري
هغه اوربل چه د زړهٔ سره خمار وربې نهٔ لري



هغه چه ژوند ته خوشحالي اَشنا بخښلے نشي
هغه چه و نبکې دَ سرو ستوګو او چولے نهٔ شي
هغه د ژوند دلاسه مرهٔ چه ویښولے نهٔ شي
تورې وریځې چه په تږو ورو لے نهٔ شي

بې خوبه ستړکو ته خوبونه چه بښلی نه شي
هغه چه زړونه پرې مستېږي چه پروده موي
هغه سرور، هغه نشئه چه ته وکولی نه شي
هغه مئین چه په مشرق اؤ په مغرب کښې اوسي
هغه بیل زړونه په یو تار کښې چه پېیلی نه شي
ښکلا چه نه لري، څوا نی پکښې موندلی نه شي

○

زما اشنا! زما ژوندونه! زما ساه اؤ روحه!
زما همزولو نا قدرانو ته دا او رسوه
"چه هغه فن به زما نه وي هغه شعر زما"

۲۶۸-۰۸-۳۰



رخندا! په کانړو ولګم، دَ نظر په کانړو ولګم
خدایه څو مو ګنهګار یم در په در په کانړو ولګم

چه مئین دِ یم په زلفو چه په مخ باندِ دِ ورک یم
هره شپه مے خلق اولی هر سحر په کانړو ولګم

تا مے څه ګُله نوم واخست چه دُښمن دِ کړم دَ خلقو
هم وِیشتلے شم په کور کښے هم بهر په کانړو ولګم

چه ستا نوم اَ خلی ګُل رنګه! چه ستا مینه پکښے بنی
پرے کوی مے خلق ژبه، په ځیګر په کانړو ولګم

زما سر به ښکته نشی د وختونو په دُر شلو
تر قیامته که زاهده! په سر سر په کانړو ولګ

۱۱، ستمبر ۲۶۸



زلفې د ماړوَه له مخه نورې وې وړې
کافو خو نۀ يمه اَشنا په اورې وې وړې

خير دې دا او کوره نو مۀ خاندهٔ چه زړۀ دِ نۀ دې
ستا په کوڅه کښې په شم مړ په کورې وې وړې

واعظه! زلفې ستا ټيلې وې يوازې د يار
خدائے خو پروند کړۀ د مذهب په تورې وې وړې

څۀ د رقيب محفل ته خير دې چه پرته رضا ئے
زۀ خنکه لاړشمه اشنا په زورې وې وړې

خو نبه مې نۀ ده چه ملګری د تراهِد شی خبر
غلې مې او وړنه اشنا په شورې وې وړې

۱۹، ستمبر ۲۶۸

# د رنګونو ښار

هغه رنړا ستا د ګکو هغه سُرخي د سترګو
ما چه پرے لاره لیده زړه چه پرے نښته وُم
هغه تیارے د تورو زلفو د وریځو په شان
زما په زړه چه وریدلے، چه تر داره پرے تلم
دا لوټے لارے چه ګُلونه پرے دَلیٰ پراته دی
په هغه ښاره به ځے ورنه کړم چه تر یاره پرے تلم



منم چه او سمه اشنا! زړه د رنګونو ښار کښے
په خدائے یقین اوکړه بے رنګه ورځے شپے دی دَ ژوند
چه هر قدم او چتوم نوحادثے دی دَ ژوند

پېښور - ۲۵، نومبر ۲۶۸



نهٔ خو وائے چه به راشم، که صبا ورپسې راشی
زړهٔ مې نهٔ منی ګل رنګه! که بلا ورپسې راشی
چه دِ مخ پټ کهٔ په زلفو، د سوالونو تپوس مهٔ کړه
همیشه ستورې ورکیږی چه اشنا ورپسې راشی
دوا ړه سترګې مې وریږی شی تازه مړاوي زخمونه
چه په زړهٔ دِ د یادونو بې وفا، ورپسې راشی
د دوران نمر شو را شبکته، د زوندون ولمبې مې سړې
لږې زلفې دِ خورې کړه چه شپه ورپسې راشی

زاهد ډکه کړه لمنه د ارمان له مړاوو ګلو!
خو یقین نهٔ دې منکرو! که نن "بیا" ورپسې راشی

پېښور ۱۳، دسمبر ۲۶۸

# قطعې

ژوند د ازغو په څوکو خوب نه دے هم نو زما
ژوند ته ورغاړه ووځئ، ژوند کښې رنګيني پيدا کړئ
څوک چه د ژوندانه وير ول کوي دوزخ ئے ګڼړي
ژبے چه پرېکړي د دے خلقو، ليوني پيدا کړئ



شور و شر د انتشار دے
سکون ژوند له پکار دے
وينے دواړه ښنبي د ګُلو!
يو خزان شه بل بهار دے

۱۳ جنوري ۶۹ء پېښور

هر څوک چې زړه کېږي خو راتلې نه شي شرمېږي
اشنا چې انتظار ته دې کتې نه شي شرمېږي
کاته راته هر څو مره که اشنا کوي په مینه
ما وژني چې محفل کښې رانږدې نه شي شرمېږي
احساس چې شته پیدا د یار په زړه کښې اوس به مرشم
کوله د راتلو چې اوس وعدې نه شي شرمېږي
هر څو مره که آسان دې زما نوم، د یار په شونډو
زېږي، خطا کېږي، اخستې نه شي شرمېږي

حالونه به د زړه ورته څه او وایم زاهده!
شي لار کښې پښه نیولې، اورېدې نه شي شرمېږي

۱۷، جنوري ۶۹ء پېښور



مودې او شوې چه اوسم، د زخمونو ښاريه کښې
خپل ځيګر دې پيوس نکړي، د ګلونو ښاريه کښې
د ساقي ژوند نه چه ګورم، د خپل ژوند ځه زړه ښه شي
هيش او چې شوندې ګرځي، د جامونو ښاريه کښې
ستا د زلفو ښار ته راغلو چه اشنا لمبو سيزلو
ژوندون اور دې نګوې، د عمرونو ښاريه کښې
نه له ژونده ستومانيږی نه شرابو ته ترسيږی
څوک چه اوسی اشنايانو د يادونو ښاريه کښې

نور عالم ځي کړو خوشحاله د شعرونو په شرابو
که زاهد په خپله اوسی د غمونو ښاريه کښې

۹، فرورۍ ۶۹ء پيښور



هر یو ګام حادثې، هر قدم حادثې
کور په کور انقلاب، چم په چم حادثې

هر قدم ناکړدې، هره ساه امتحان
هر یو تار کښې د ژړوند، زیر و بم حادثې

ستا د زلفو شم زار، ستا لم سترګو لوګې
دام په هر یو قدم، دم په دم حادثې

لیونو له نږدې، مڼه ورځه لرې ځه
هر ورق ته د ژړوند، غم او غم حادثې

مات ئې کړې نن، چې پاتې صبا ته نه شي
جوړ کړې وي د زړهٔ، که قلم حادثې

۱۱، فروری ۴۹ء پېښور



خیر دے کہ پتہ اشنا تا تہ عدم پتہ زہ
ما تہ خو معلومہ ستا دھریؤ قدم پتہ دہ
خدائے د ستا د شونډو د مسکا سپرلی خفہ نکړی
تہ خہ نہ خبرے تا تہ خہ لا د غم پتہ دہ
نہ ئې میخانے تہ نہ حرم تہ اے دزړہ سرہ!
چا تہ چہ معلومہ ستا د کور او د چم پتہ دہ
مہ وار خطا کیږہ کہ مے ولیدے رقیب سرہ
ما تہ لہ پخوا نہ اشنا ستا د قسم پتہ دہ

نہ پاسی زاهده د محفلہ چہ غزل وا
هغہ اشنایان چہ ورتہ ستا د قلم پتہ د

۲۱، فروری ۶۹ء پیښور



خبر زما د زړه په غم نه شوے چه څه وجه ده
زه خو شوم ستا ته ئے همدم نه شوے چه څه وجه ده
زما په اوښکو خو ستا زړه رته به! وده مونده
نن ے خوشحاله په ماتم نه شوے چه څه وجه ده
ته ؛ او محفل ته دِ را تله؛ بیا دَ وعدے نه روستو؟
تینک نن اشنا په خپل قسم نه شوے چه څه وجه ده
ما اوریدلی وُو چه زړ و نه عبادت نرموی
ته خو په لاره دکرم نه شوے چه څه وجه ده

د زمانے درشل کے ځان ته تیټوی سر و نه
اے د زاهد تند یه ؛ خم نه شوے چه څه وجه ده

۰۵ ۰۳ ۲۶۹ - پیښور



نۀ ما یوازے، نۀ اشنا لمنه ځنډه وَ هله
لړداغ دَ ویرے نه هرچا لمنه ځنډه وَ هله
دَ آسمان ستورى شوا شنا ستا دلید وسوالونه
چه فرښتوے دَ دُعا لمنه ځنډه وَ هله
سپرلى دَ خوبه شو بیدار، ګلونه ستړګے مږى
چه بهار مخى په خندا لمنه ځنډه وَهله
پیر زو دِ نۀ وه جورے خاوره هم د یار دکوځے
رقیبه! ځکه دِ زما لمنه ځنډه وهله
ساقى! دا غونه دِ دَ میټو په ځنډ لونۀ ځى
کنى واعظه خو مره بیګا لمنه ځنډه وهله
زما ګلونه دا ارمان دِ تول خوارۀ وارۀ کړل
تا چه رقیب سره اشنا لمنه ځنډه وهله

لمن دَ یار نزاهده! نیسه که مقصد نه رسے
هریو اشنا دِ په دُنیا لمنه ځنډه وهله

۶، مارچ ۶۹ء



مخ له راګرځلے، لیدلۍ او نه شو، څه ته د خوبه، څه زه د خوبه

شپې پرې پوهیږم، چه شپه او نه شو، څه ته د خوبه، څه زه د خوبه

ماوې یو بل ته، به د عمرونو کیسې کوو کله، چرته یو ځائے شو

شو که یو ځائے، خو د زړه او نه شو، څه ته د خوبه څه زه د خوبه

نور خبر نه یم، دومره مې یاد دی، ساقي ویشل د، په لپو لپو

د چا او نه شو، په څه او نه شو، څه ته د خوبه څه زه د خوبه

خدائے مې منظور کړو، سوال د لیدو سنا، پرون کوځه کښې، مخ له راګرځلے

د زړه په سترګو کاته او نه شو، څه ته د خوبه څه زه د خوبه

نه تا را یاد کړل، نه ما ته یاد شو، زاهده بیا به، یارانو خفه شي

نن چه محفل ته، ورتله او نه شو، څه ته د خوبه څه زه د خوبه

۱۴، مارچ ۶۹ء پېښور

# فکرونه

زما خوخیال وو چه یاران به د محفل خفه وی
ساقی! جامونه به نسکوروی پیمانے به نهٔ وی
زما خو خیال وو چه دَ شپے هغه ډیوے به نهٔ وی



مانوے جشن دَ بهار به میخانه کښے نهٔ وی
هغه شدّت دَ انتظار به میخانه کښے نهٔ وی
زما خو خیال وو چه ټویار به میخانه کښے نهٔ وی



ما وے د زړونو فاصلے په قدمونو نهٔ وی
زما خوخیال وو چه کړنګا به د جامونو نهٔ وی
هغه رونق هغه ویشتل به په ګلونو نهٔ وی



خو نا، د ژوند په هنګامو کښے ذهن کار نهٔ کوی
چه سترګے ئے نهٔ وینی دَ زړهٔ آئینه هم ړنده شی
دَ وخت په لاسو کښے مرګے د یارانے خپه شی

۳۰، مارچ ۶۹ء پیښور



غواړې که زړه واخله، په خندا په څټه خفه شوې
یه! دسترګو توره! ته له ما په څټه خفه شوې
ما خو هیڅ یو ښکلی ته خوابډه نه وو کتلی
وایه په محفل کښې ته بېګاه په څټه خفه شوې
ما ته خو یاد نه دی، اشنا څټه مې وو ویلی
لاړه کښې پرون راته! رښتیا په څټه خفه شوې
ښه چې په کیلو دِ رانه زړه نه دې بد شوې
وایه کنه بیا رانه اشنا! په څټه خفه شوې

مړګ دِ دَ ځوانۍ زاهده! پېنځلې کړې بې ځانه
وائي په سلګو کښې، "له دُنیا په څټه خفه شوې"

۲۱-۰۵-۶۹ء پېښور



پرون چه تاؤ تسولے په بله کوځه ډیره شپه ده
مینه زما بدناموی چه تا "شپه ډیره شپه ده
مونږه څه وایو چه د زړه نه دے نومه راکوه
ساقی! له تندے موهر وخت مړه کوه ډیره شپه ده
ته چه پرے نه شرمیږے ګله! زه پرے فخر کوم
د غریبۍ قیصه مے هر ځائے کوه ډیره شپه ده
رقیب ته هر وخت نزدے کیږه مانه لرے لرے
داسے په اور کښے مے اشنا سوزوه ډیره شپه ده
زړه مے هم ویښی دے، هم احساس، ستا د راتلو راشه
د انتظار شپه دی شی ډیره اوږده، ډیره شپه ده
رقیبه! یا دو کښے خویم د اشنا هیر ترے نه یم
چه شپه مے نه وائی دا ئیږه هم څه ډیره شپه ده

زاهده! خیر دے که یاران د ختی نمر پسے ځی!
ته د غزل زړه قیصه یاد وه ډیره شپه ده



محفل کښې د رقیب چه بې اُلفته راته ګوري
چه دا کومه جذبه ده، د کوم پته راته ګوري

زړګیه سوال کوه چه د پښتونه شي کچه
ساقي چه جام په لاس وکښې بې سَته راته ګوري

په مخې نه پوهیږي د مېنو په نبضو نو
رقیب سره چه څي له شرارته راته ګوري

ژوندون مې وَده مومي په نظر چه د مئې رنګو
کړی ماته دِ کاته، چه له هرنیته راته ګوري

زاهده! کیفیت د هغه وخت نه شم ویلی
مسکا کښې چه پوازې هغه سنکته راته ګوري

پېښور ۸، جولائی ۲۶۹



زما په زړه چه څه تیریږی زما تن خبر دے
زما په تن خو سرو قدره تول وطن خبر دے

دومره بے نیازه دے چه بیا هم خوښوی رقیبان
یار که هرڅو مے په ګریوان اؤ په لمن خبر دے

څه اوشو ګله! که ماونوته څه پته نشته
زما په اوښکو هر ازغے ددے چمن خبر دے

چه ستا د زلفو په لار نه ځی د سحر ناوے له
هغه د ژوند نه په "پرون" اؤ نه په "نن" خبر دے

ئے نازک طبعه ځکه غږ درته زاهد نه کوی
ګنی محفل ته دِ په تلو د ماسخوتن خبر دے

۱۵، ستمبر ۶۹ء مردان

# خاطر چه مړ شه

اے د سحر قاصده لاړ شه دَ مشرق په طرف
دَ صبا نی ختونکی نمر په مخ څادر واچوه
چه پلوشے نے خورے نشی دَ تیرو په سیمه
ورته قسم د ځوانئ مرګ خاطر د سر واچوه

توره تیارۀ ښۀ ده رنړا د خوشحالئ زیرے دے
مونږ ته دَ زړونو په ماتم کښے رنړا نۀ خوښوو
هره لمحه دِ اوس تیریږی د غمونو غیږ کښے
اوس دَ زخمونو ښاریه کښے صبا نۀ خوښوو
توره وریځ دِ شی خوره دِ شین آسمان په څهره
مونږ د ړه دید لی یو د ستورو رنړا نۀ خوښوو
زمونږ دَ غم په سمندر کښے دِ باد ا ونۀ لګی
مونږ انتشار په خاموشئ کښے د چپانۀ خوښوو
اے د سحر قاصده لاړ شه د مشرق په طرف
دَ صبا نی ختونکی نمر په مخ څادر واچوه
مونږ ته دَ زړونو په ماتم کښے رنړا نۀ خوښوو
اوس دَ زخمونو ښاریه کښے صبا نۀ خوښوو

مردان. ستمبر ۱۹۶۹ء

یہ خاطر آفریدے چاچه د غزل پالنه دَ زړۀ په وینو کړے ده (زړ هګ)

ذ زړۀ مالک به ئے، ذ زړۀ سره دا زۀ منم
زۀ هم سینه کښے زړۀ لرم زۀ هم د زړۀ منم
څوک چه یارانو ذ "پردی فکر" رنړا پسے ځي
ذ هغه خلقو که منم، زۀ به ئے څۀ منم
نوم به دِ نا خلمه په خُله ولے تا هیر ځنګه کړم
هره خبره دِ منم، ولے دا نۀ منم
پے ځی ډیر دی خو ذ زړونو په درزانۀ رسی
څوک چه د زړۀ په ژبه رَسی د هغۀ منم

زاهده! زړۀ د کاڼی نۀ وی چه به نۀ دړېږي
په خپله ټول عُمر ژړیږم ژړیدۀ منم

مردان - اکتوبر ۱۹۶۹ ء



چه تیریدے شی په خندا، په سلګونه تیروم
دا د ځوانئ ورځے اشنا په لمبونه تیروم
خنګه به تیرے شی بے رنګه ورځے شپے دړوندون
په تصور ئے چه د "ګل" او "سپرلو" نه تیروم
وار خطائی که ے د مرګ راغله دړوند په دیوه
د قیامت ویره د محفل په ډیوونه تیروم
دَ غم په ورځو کښے دِ هم ځمه محفل ته آشنا
لکه واعظ ئے دَ خلوت په تیرو نه تیروم

چه باد پرے هم تراهَدا ! نه نګی د "یار دَ کلی"
د غزل فن په هغو لارو کوځو نه تیروم

۱۰، نومبر ۲۶۹ مردان



نن دِ زړهٔ نهٔ دے کړا تلو ستا په بهانو پوهیږم

زهٔ دې څخو په قسم اوړ په وعدو پوهیږم

د رقیبانو په غږمهٔ شه، لا ئے وس نهٔ رسی

زهٔ هم اشنا ګُلو کښې لوټے شوم په ازغو پوهیږم

تهٔ چه دَ نهٔ راتلو خبرے کړے انجام به څهٔ شی

زهٔ هم اشنا قسم خوړے شم په پښتو پوهیږم

لاس څهٔ له غواړے چه راځے اوس په یوهٔ لحظه کښې

بیا دِ رقیب سره وعدهٔ ده ستا په تلو پوهیږم

دا ورکوونکی به دَ "مینې" اوس پنځپله ورک شی زاهدهٔ، څهٔ نه څهٔ دَ وخت په تقاضو پوهیږم

مردان - یکم دسمبر ۶۹ء



زړونه د ویرے نه ساقی په هر قدم خوریږی
چه دِ محفل دَ رقیبا نو په کرم خوریږی
ستا هم په زړهٔ کښے مینه شته کنی زما په لیدو
سُرخی دِ ولے په مخ داسے دم په دم خوریږی
رقیبه! خونه دِ خوره شه دا د څهٔ چل اوکړو
زما په ذکر هم چه زړهٔ اوس دَ همدم خوریږی
دَ زړهٔ زخمونه راغونډ شوا شنا ستا په وعده
او ربل به خدائے خبر چه ستا په کوم یوچم خوریږی

ستا تورے زلفے خورے مهٔ شه د رقیب په اوږو
خیر دے که سَر دِ دَ زاهد لکه قلم خوریږی

۲۴، دسمبر ۱۹۶۹ء مردان



که مې هر څو مینو ته زړه کیږي خوښت کوومه
ساقي! د خپلو روا یا تو چه عزت کوو مه
په هر نظر کښې ټې بلمې، هره مسکا کښې ټې اُور
بیا هم آشنا وائي چه زړه پرې عنایت کوومه
چه مې د مینې قدر نه کړي، چه مې نه پیژني
د هغه ښکلو سره بیا هم محبت کوومه
تا که د تلو لارې کړې بیټلې د رقیب په وینا
زړه کښې یادونه دِ ساتم در سره پټ کوومه

زاهده! دلته کښې انصاف نشته د مخ بازي ده
زه به رقیب سره خبرې په قیامت کوومه

مردان ۳ر جنوري ۱۹۶۰ء



نه مې په میټو څه کار شته نه په خمار پسې مرم
ساقي! ژوندون مې قرار غواړي په قرار پسې مرم

نور د تیرو کېنې مې اشنا چې کړي منزل ته نږدې
ستا په نظر پسې مرکېږم ستا رخسار پسې مرم

چې زما ژوندون ئې کړو بې رنګه زما زړه ئې کړو مات
هغه ګل رنګي پسې ځم، هغه دلدار پسې مرم

په مرګ به دواړه سره مرو، خو زمونږ لار جدا ده
نه په جنت پسې مرکېږمه زه په یار پسې مرم

خیر دې نراهده! که یاران مې لیونی اوګڼي
په سبه غزل باندې مټین، د فن وقار پسې مرم

۸، مارچ ۱۹۷۰ء مردان



خیر دے اشنا کہ پہ بنړو باندے خبرے کوی
گل هم بلبل تہ پہ ازغو باندے خبرے کوی
دړ و ند منگوی پہ ستا غم زړگیہ څنګہ او زاری
چالہ چې ځي نو پہ سلگو باندے خبرے کوی
اشنا محفل کښے چې پہ نا ستہ نن خوشحالہ نۂ دے
سم د ما سبا مہ ا سویلو باندے خبرے کو ی
دا خو ښکاره د مینے نخښہ ده سادہ زړگیہ!
خیر دے اشنا کہ پہ کیلو باندے خبرے کوی

پرین ده چې مې شمہ نزاهده! هلہ و وا ورِ نۂ کړی
ما سره یار کہ پہ جرگو باندے خبرے کوی

۱۳، مارچ ۱۹۷۰ء مردان



سپرلی نښته په چمن کښې د ګلو نو قحط سالی ده
شاعری پیکه پیکه ده د رنګونو قحط سالی ده

زه یوٰ ستا په غم اخته یم، اے بے نیازه سبا پېریه!
په ټلور ګنجه دُنیا کښې، دَ غمونو قحط سالی ده

دَ یدن باران دِ اوشه، چه دَ زړهٔ بیمے تنے شی
ستا له ګورو زلفو زار شم، له عُمرونو قحط سالی ده

څهٔ بے خونده زندګی ده، څهٔ بے رنګه ورځے شپے دی
او سبیکے نښته په بڼو کښې، دَ درېدونو قحط سالی ده

تهٔ هم نبهٔ پوره ساده ئے، چه زاهده غزل غواړے
دے موسم ته خو خیال اوکړه، دَ شعرونو قحط سالی ده

۹-۷-۲۰۰۷ مردان



چې په ښکاره نه شي کیدے، یار ته په چل کښې کیږي
هغه خبرے یارانو! په غزل کښې کیږي
تا ته به نوم هم زما یاد نه وي د ګلو لخنې!
په ما ظلمونه د دُنیا ستا په بدل کښې کیږي
زما وقار د محبت د ستوُر د عِشق کړو بدل
چې دَ جو نګړے ذکر هم اوس په محل کښې کیږي
ستا په لمن دِ داغ زما د محبت نه ډکي
خبر دے که لوبے په ما دلته په مقتل کښې کیږي

زاهده: څه به خوک اعتبار اوس په یارانو کوي
دَ زړه خبرے یوُ بل ته په محفل کښې کیږي

مردان - ۱۷ر اګست ۱۹۷۰ء



بیا ما ښام شه سرو قده! دَ دړدونو غم کومه
چې دِ سترګو شرابي کړم، دَ جامونو غم کومه

رقیب وے مرور شهٔ، که ئے او خندل محفل کښے
زهٔ خو او خوړم غمونو له عمرونو غم کومه

هره څنړه کښے به ګل وی هر یو لاس کښے به وی پیمانه
بیا سپرلے راغے چمن ته د ګلونو غم کومه

ته بے غمه اؤ بے درده، دځوانئے په خوب اوده ئے
زهٔ چه ستا ځوانئ ته ګورم په یارونو غم کومه

همان به ستړے کړے زړهٔ! زمونږ لارے نهٔ یو کیږی
ته دَ زړهٔ په غم کښے ګرځے زهٔ دَ زړونو غم کومه

۲۵، ستمبر ۱۹۷۰ء مردان



چې د نظر د بهارونو سمندر کښې ډوب شته
ژوند د یارانو د دردونو سمندر کښې ډوب شته

اوس ورته "حُسن" د ساحل نه آوازونه کوي
"عشق" چې د ارمانونو سمندر کښې ډوب شته

لکه غریب چې د خپل عُمر په خوَلو کښې وي ډوب
داسې زړه د حسرتونو سمندر کښې ډوب شته

بیا تر قیامته پورې نه ښکاري د ژوند په سطحه
دلته چې یو ځل د وختونو سمندر کښې ډوب شته

په هر یو شعر کښې د رنګ، په هر غزل کښې ښکلا
چې تصورې د رنګونو سمندر کښې ډوب شته

اوس دِ دَ زلفو په تارونو خپل زخمونه ګنډه
زړه خو دې لا هم ستا د غمونو سمندر کښې ډوب شته

نور به لا څو مره خلق ډوب کړې دَ خپل لاس په ارمان
هوښیار زړه هم دِ دَ لوظونو سمندر کښې ډوب شته

۲۹، ستمبر ۱۹۷۰ء مردان

# ته ما ته اووایه....

ته ما ته اووایه چه ټول عمر نزدې مه راځه
هغه مرګی له دځوانو چه څه لحاظ نه کوی
اے زما ژوندہ زهٔ به ټول عمر ژوندے اوسیږم
ستا د وفا د پاره ستا د محبت د پاره



ته ما ته اووایه چه زړهٔ مے په کار نه سوځي ستا
زړهٔ به زړګے د رله نحپل د رکړمه په ډېر مینه
هغه زړګے چه د دُنیا په مخ به نے اونه وینے
هغه زړګے چه ستا د مینے سمندر دے پکښے
هغه زړګے چه ستا د سترګو خوږ نظر دے پکښے



ته ما ته اووایه چه اوژاړه ژړا غواړمه
لکه ژړېږي د پشکال به د رته او ښکے تو نے کړم
چه مے ترڅو ګکه د سترګو رپېدے شوے نه وی
خبر دې که ژوندی شم، زما پرې څه پرواه نشته دے
بیا به مے زړهٔ ژاړی ترڅو چه تا وئیلی نهٔ وی
د محبت په سترګو تا را ته کتلی نهٔ وی

ته راته اووایه چه مړشه ستاژوندون نه غوارم

زما ایمان دے چه خندا باندے به مرګ له ورځه
ته زما عشق ئې، زما روح ئې، زما مینه ئې ته
زما ژوندون ئې په رګونو کښے وینه ئې ته

مردان ۲۰ . ۱۰ . ۱۹۷۰ء

## قطعه

داد مستئ نه ډکے پیغلے ورځے
منم چه زړونو له ټکور ورکوی
خواے د زړه بسره، تا ته پته نشته
زما د ژوند مرئ له زور ورکوی



که مې په زړه وریږي هم، که په ځیګر وریږي
خو ولې ټول عمر دِ غشي د نظر وریږي
ستا بې ننګي دَ وخت ستم، د کوراؤ کلي پیغور
لکه یتیم مې همیشه کاڼي په سر وریږي
د روزګار کاڼي دي اشنا، که ستا دَ یاد ګلونه
زما په ژوند باندې سکراړما زیګر وریږي
خدایه! د مینې خاطرې په دې لار راولې
نن مې دَ حُسن ښاپیرۍ دَ زړه په سر وریږي

لکه یعقوب مې جوړ زاهد! ړندوي ځان پسې
ګڼې شیبې ئې دردیدن په هریو در وریږي

۲۴، اکتوبر ۱۹۷۰ء



چه غمونه را نه هیر کړي یو رنګین محفل پکار دے
چه وجود نشه نشه کړي د زاهده غزل پکار دے
د ژوندون په ریګستان کښې، تلے پښې آبلے لوبے نه دي
د روزګار د تمر په سټرګه، بسکلے کورا وربل پکار دے
زړه خو هر څوک پټوے شي، غله د زړونو خو بلا دي
چه ژوندون را نه څوک پټ کړي، ماله داسے غل پکار دے
چه د ژوند رګونه کوږ ي، څوک د عقل په رنړا کښې
دے او زګار له د زړه سره، ستا د زلفو ول پکار دے

د خلوص نه لرے تښتي، د لته هر سړے زاهده!
چه هر چا نه پرے نږدے شم، اوس څه بل څه چل پکار دے

۲۶، اکتوبر ۱۹۷۰ء، مردان



په زړه مې بې حسابه ستا یادونه راورېږي
سپرې شته معلومېږي چې ګلونه راورېږي

اشنا! جوړې محفل کښې د رقیب دِ وَه شپه روڼه
سحر کښې چې له سترګو دِ خوبونه راورېږي

خبرې چې کوي څوک میخانه کښې د حیا مونو
په زړه مې ستا د سترګو ارمانونه راورېږي

د ژوند په رنګینو چې ورېځې د غم راغلې
هر څاڅکي کښې درد ونه، حسرتونه راورېږي

ګلونو سترګې سرې کړې په ژړا ژړا زاهده!
سپرې په نظر نه راځي ګردونه راورېږي

۱۰، جنوري ۱۹۷۰ع مردان



نۀ تا ښکته کتې شوا ؤ نۀ ما ښکته کتل
اشنا گنې محفل کښې خو هر چا ښکته کتل
اشنا زمونږ په زړه ونو کښې جوړه وه یوه خبره!
تا هم بره کتې نۀ شو که ما هم ښکته کتل
هر څو که ئې اشنا کړې تنده ما ته د دیدن
شې مرگ دا رمانونو ئې دا "ستا" ښکته کتل
دا ښه وه ستا د زلفو لیونی ورته کړو لاس
گنې رښتیا د دار ته خو دُنیا ښکته کتل

زاهد دِ دَ رنگونو سمندر کښې ووډوب شوې
بیگا دِ چې محفل کښې په خندا ښکته کتل

مردان

اشنا ته ځکه د لیونو ژبې رپیږي !
خبرې کړي یوډیل ته په لیمو ژبې رپیږي
د ښکلو د لوظونو به څه ذکر کړو یارانو
هر وخت په هر قدم کې د وعدو ژبې رپیږي
نظر د لیونی چه حیا در کړه د سپرلی
رخسار ته د محفل کښې د ډیوو ژبې رپیږي
هر څوک چه په ځ باندې رقیب ته کړې خبرې
محفل کښې ملامته د هغو، ژبې رپیږي
شرابو کښې نشې د د نظر چه کړې شاملې
ساقي! د واعظانو په توبو ژبې رپیږي
هر څوک چه حقیقت وي لکه نمر هسې ښکاره
بیا هم د ړوند په څنګ حادثو ژبې رپیږي

زاهده! چه قوت ورله مونږ ورکړو د خبرو
نن مونږ ته کوټې نیسي د "هغو" ژبې رپیږي

۲۷۲ ۰۴ ۰۲۷



دلته د سپرلي په پوٌ قدم څهٔ نخښه نشته
خنک دِ باور او کرم په قسم څهٔ نخښه نشته

ولې دِ لاس او د ریدهٔ قا تله! پښتنه شوے؟
ګوره زما مخ کښې خو د غم څهٔ نخښه نشته

دا دِ هم اشنا دَ غم شدت دے که پوهیږے!
نن چه مے په سترګو کښې د نَم څهٔ نخښه نشته

خدائے خبر قرار مے دَ زړهٔ چرته دے ورک شوے
ګرځم کور په کور او ځم په ځم څهٔ نخښه نشته

لیک کښې دِ سنګلا وی په تپونو اے زاهده!
ستا په قلم کښې دَ قلم څهٔ نخښه نشته



باران د یار دِ چہ اشنا پہ ورید و شروع شی
نو دیوالونہ مے د زړہ پہ نړیدو شروع شی
ځوانی مے داسے دړوندون پہ اور کښے سوزی اشنا
لکہ چہ ستنہ لختہ پہ اور پہ لوګیدو شروع شی
څہ بہ غوټئی مے دچمن ارمان دزړہ پورہ کړی
چہ کلا کیدو تہ شی نږدے پہ شوکیدو شروع شی
دشمع ژوند هم وی اشنا ستا ترنظرہ پورے
تہ لہ محفلہ چہ اوځے پہ تتیدو شروع شی

ستا د محفل د „ سرګلونہ „ بہ خاموش پاتے شی
غلے زاهد کہ دِ یوځل پہ وئیدو شروع شی

۲۷۳ ۰۱۱ ۰۵



چې پې مخې هره لار کښې، د نظر ګلونه نولی
لیونی په لپو لپو، نن په سر ګلونه نولی
ستا له زلفو کیله نهٔ کړم، ستا له مخه مې زړهٔ پد دې
هره شپه ګلونه زاړی، هر سحر ګلونه نولی
دَ مالګینو په نظر کښې خلق وائې چه وی مالګې
زهٔ خو وایم دَ زړهٔ سره! په پرهر ګلونه نولی
دامنم چه په بوټی راوړی، له اوربله دِ زندان ته
خوبادونه سروِ قده! هم اکثر ګلونه نولی

نن دِ بیا جوړې زاهده ته په کوټه کښې دی خندلی
دَ سپرلی سندرې وائی، په هر دَر ګلونه نولی



څه سنا په مینه، څه په میټو د ساقی تیریږی
پو ښتنه مه کوه اشنا خو زندګی تیریږی
د شبستان خلق به هم اوس په رڼا ماړه شی
نمر د مشرق را ؤ چت تاریکی تیریږی
په خپل وطن کښې به له تاڼه زندګی داسې ده
لکه محل کښې په باچا چه غریبی تیریږی
اوس به که خیر وی په خوږه خُله د چا نه تیروځی
د زندګئ په داسې لیکه، یوسفزی تیریږی

د قام له غمه دِ زاهد د زړه په رنځ اخته شه
جوتې وهی لکه نشه کښې شرابی تیریږی



در تلے دِ نهٔ شمه کوځے ته لاحالات سنبهٔ نهٔ دی
ګورمه ګله! زمانے ته لاحالات نبهٔ نهٔ دی
سونړ لااوزګارنهٔ یُوساقی! دَخپل وطن له غمه
سمیدے نهٔ شو میخانے ته لاحالات سنبهٔ نهٔ دی
هر وخت قسم د مجبورو دِ په ما سنبهٔ نهٔ ګی
مهٔ راځه خیر! چې دِ وعدے ته لاحالات سنبهٔ نهٔ دی
ستا محلونه جوړیدے تسی خو جو ګړه نهٔ شی
هغے ته سنبهٔ دی ولے دے ته لاحالات سنبهٔ نهٔ دی

چپ شه نراهده دَ ځوانئے خوبونه هر وخت نهٔ دی
دَ سپرلی ورځے دی، توبے ته لاحالات سنبهٔ نهٔ دی

مردان



چه جوابونه دَ خبرو په بنړو راکوی
آشنا ازغی راله موسم کښې د سپرلو راکوی
ته را له لاس دَ محبت ډرون په لارو کښې را
بیا پیغورونه دِ دُنیا دَ پریوتو راکوی
ظالم مے خدا یه! مړکوی جور په خبرو سے
چه هر جواب دَ محبت په موسیدو راکوی
څمی دَ رقیب سرُه خوګوری په خندا کښې ما ته
څو مره زور ماله ستمګر دَ خوښیدو راکوی

چا چه جنت ته دَ توبو زاهده راوستمه
اوس هغه خلق پیغورونه دَ توبو راکوی



سر په سرا و خوری خو قلم مے خوځیدونکے نۀ دے

آشنا زاهد دِ له حالاتو ویریدونکے نۀ دے

ستا دَ ظلمونو که حد نشته، تو غا وِ ره نۀ شے

نمرودَ انصاف هم ستمگره ږوبیدونکے نۀ دے

غم دَ روزگار هم حقیقت دے، چه لري دلکشي

خو په آسانه غم د یار هم هیریدونکے نۀ دے

منم دیدن به دِ کوی خلق دَ سر په بیعه

خۀ وکړم گُله! سر مے چا ته ټیټیدونکے نۀ دے

چه په کوم زړۀ کښے مینه نۀ وی، او خلوص نۀ لري

دے اور کښے وے زاهده پړقیدونکے نۀ دے



په هغه لاره کښې پراته څهٔ په دے لار پراته دی
بلا ګلونه شوکیدلی د بهار پراته دی

ساقی! ډیوے دِ د محفل وله بے وخته مړے کړے
ډیر لیونی ستا د نظر په انتظار پراته دی

اوس دلته ګوته زمونږ مینے ته څوک نهٔ شی نیولے
بلا داغونه د وینو لا په دار پراته دی

لږ دِ پلوشه مخ له لرې کړه چه رڼا اووینی
ګله! زندان کښې دِ د زلفو ګنهګار پراته دی

ستا د دیدن سپرلے یقین نهٔ دے چه سنګال راشی
ډیر ارمانونه که په زړهٔ کښې د بیمار پراته دی

ژوندئ چه خوښ وو د خزان موسم کښې هم تازه شو
مړاوے ګلونه، نن په زلفو کښې انګار پراته دی

اوس مے مردان کښې زندګئ سره بیخی نهٔ لګی
د زړهٔ یاران چه مے ناهدهٔ! په بل ښار پراته دی



اشنا دګلو ارمانونه د پرده ښاته شو
لاړل په بله بهارونه د پرده ښاته شو
ستا داوږ دو زلفو سودا دِ سودائی نه کړی څوک
د زړی شپو کښې خوبونه د پرده ښاته شو
د چمن خلق هوښیار شوی دی تا ښه پیژنی
ګل چینه څه که دِ لاسونه د پرده ښاته شو
ما ته پښتو به ترقیامته وی ګل رنګه یاره!
خیر دی که ستا نه خپل لوظونه د پرده ښاته شو

ستر ګی نے پټی کړے پروني کښے چه زړه نے اولیدم
ښه شوه زاهده! قیامتونه د پرده ښاته شو



ستا په قسم اؤ په وعدے باندے څوک نۀ پوهیږی
زما د زړۀ په اندیښنے باندے څوک نۀ پوهیږی

ځان مے ناجوړه کړو چه ځان دِ کړو رقیب ته نږدے
ستا به دا خیال وی چه په دے باندے څوک نۀ پوهیږی

هغوی شراب دَ محبت هم په شیشه کښے غواړی
چه په قانون د میخانے باندے څوک نۀ پوهیږی

هر یو ګریوان ریښے ریښے هره لمن خیرے ده
دلته اختر، اؤ په روژے باندے څوک نۀ پوهیږی

زاهده! بیا به صبا تا ستا ته د اشنا کوڅه کښے
ستا په قسم اؤ په توبے باندے څوک نۀ پوهیږی



پوښتنې له ې راغې خو د تلوکوی خبرې
بیمار ته مسیحا د ساه ختوکوی خبرې
قانون کښې دَ چمن هم انقلاب ښکاری یارا نو!
بلبل د ګلو مینځ کښې دَ ازغو کوی خبرې
رقیب چه دَ وطن د ناوې لاس ته کتې نهٔ شی
همیش راته د ګوتو پروپیګنډ وکوی خبرې
ښکاریږی چه په نیت د رقیب پوهه شه یارانو
نن ما ته په محفل کښې ډیرې ورو کوی خبرې

زاهد دِ دَ محفل د رنړا ګانو دې زړهٔ سترې
غزل کښې همیشه چه دَ ډیوو کوی خبرې



که څوک ئې نه څښي او که څښي، څه فرق نه پرېوځي
ګرځي جامونه د ساقي، څه فرق نه پرېوځي
داسې نيمګړې انقلاب د آشنا او رپسې شي
په زندګۍ چې د سرې څه فرق نه پرېوځي
ما هم لمن د پښتو او نيوه زړګيه زاړه
اوس که راځي، که نه راځي څه فرق نه پرېوځي
سترګې کړې پټې چې احساس د زندګۍ لږ څوک
وي که ګلونه، که ازغي څه فرق نه پرېوځي

د پښتو ناوې ډېر مشين اوس د غزل پيدا کړل
زاهد که پرېږدي شاعري څه فرق نه پرېوځي

دَ چمن خلق نن ازغو ته اشنا نبهٔ نهٔ کوری
نبهٔ پښنا نهٔ دی چه پښتو ته اشنا نبهٔ نهٔ کوری
دَ وخت بادونه شو بیدل خبرے پسینے کوه
اوس یؤمټین دچا وعدو ته اشنا نبهٔ نهٔ کوری
مونږ هم څهٔ کار د محلونو په رنړا نهٔ لرو
څوک که زمونږ تتو دیږو ته اشنا نبهٔ نهٔ کوری
سَر تیتیدل راته دیر گران دی څو څه نهٔ به ورځم
ستا دَ چم خلق ے راتلو ته اشنا نبهٔ نهٔ کوری
خیر دے که لاس ے څلے ته اونیسی ته غوږ مهٔ کوه
غلهٔ زمانه خویونو ته اَشنا نبهٔ نهٔ کوری
څهٔ چه زړکیه پښتو اوکړو زړو نے لوے کړو
پښتو کښے دَ مینے زو لنو ته اشنا نبهٔ نهٔ کوری

زاهده! ستا که وی مقصد، خپلول زړهٔ دَ هغهٔ
تسپے دِ لوے کړه تسپو ته اَشنا نبهٔ نهٔ کوری

بنوں. ۱۳، جولائی
۱۹۷۵ء



خلق وائي چه سپرلے دے په چمن کښے رنګینی دہ
هر یو ګل په وینو رنګ دے هره پاڼره الوانی دہ
موږ ۂ او چے شو نو دے ګرځو رقیبان پکښے لمبیږی
میخانه کښے مساوات دی، د ساقی مهربانی دہ
د سماج له بند شو نو، بغاوت آشنا په کار دے
که ستا پښو کښے زولنے دی، نو په دار زما ځوانی دہ
زۂ منم چه شهزاده ئے، ستا ثانی د حُسن نشته
خو د زړۂ سره دا واوره، زما مینه لاثانی دہ

•

د رڼړا په ذکر وژنی، ستا زاهد تورو تیږو کښے
د لته سبۀ انصاف چلیږی، د لته سبۀ مسلمانی دہ

مردان . ۱۵ ، اګست ۱۹۷۵ء

جرم دَ مزک که دَ منٔین هرڅو دلبر ته رسی
هره خبره اشنا دلته مقدر ته رسی
قتل د ګلو په چمن باندے سپرلے راولی
ویبے که پتهٔ تو ټے شی هم څو راهګذر ته رسی
غرور دَ ستوګو دِ پښتو زما دَ مینے مات کړو
صنم چه غشی دَ نظر به دِ ځیګر ته رسی
که دَ رنړا لیونی مره شو نو کوم کفر اوشو
دلته کښے ډیر او چت سرو نه دَ دار سرته رسی

دَ زمانے تودو بادو نو به دِ ساه او خلکے ر
چه دِ تیصے دَ غریبے زاهده! سرته رسی

مردان ۲۵، اګست ۱۹۷۵ء



هر څوک چې ستا مينه کښې ستا غم له غاړه ورکړه
اشنا مېټين ته مه ګوره ټول چم له غاړه ورکړه

په ژوند چې وو مېټين نو تېښته ئې اونه کړه جنت ته
دوزخ کښې دَ دوران ئې هر ستم له غاړه ورکړه

پوه ته ئې چې خبر نه شوې په او ښکو دَ مېينو
هر ګل کښې اشنا ګوره شبنم له غاړه ورکړه

واعظه! دواړه تښتي دَ ژوندون له برندستو
څوک لاړل ميخانې ته، چا حرم له غاړه ورکړه

اوس نيکه د ژوندون راته رنړه شوله زاهده!
اُميد د سحرونو چې تورتم له غاړه ورکړه

مردان۔ ۲۰ ستمبر ۱۹۷۵ء

# رحمٰن بابا

دَ وختونو په قدم چه ځوک روان شي
جوړ يې دل چه څنګه غواړي هغه شان شي
کنډ کچکول به دلته ډير خلق را واخلي
په زړګونو کښې يوٌ تن چرته رحمٰن شي



چه پښې اَبلې په دُنيا پسې روان شو
هيڅ هم نهٔ شو خوشې ورور د عزيز خان شو
چه دُنيا ئې کړه په ځان پسې روا نه
دَ رحمٰن غوندې فقير هم شاجهان شو



تیاره کښې چه او سیږي د رڼا د کلي خلق
ساده راته ښکاره شو په رښتیا د کلي خلق
ښکاریږي محبت هم د لته جوړ شنه ګل رنګه
ساري دَ نظر لاندې چه ستا د کلي خلق
اشنا خو دَ بې کسو دُښمنان دي څه به ئې وائې
څه ستا دَ کلي خلق، څه زما د کلي خلق
پلو دَ پښتنو پکښې پښتونه کړه څرګنده
هر څو که پښتانه دي دَ اشنا د کلي خلق

قیصې دَ بې غمئ ئې له موږ و آورم زاهده!
خو مانه دي لیدلي په خندا دَ کلي خلق

مردان یکم اکتوبر ۱۹۷۵ء

# رنړا

نیتړے خورے وے پریشانی وه، حوصلے ماتے وے
دَ ظلم زور وو ځان ځانی وه حوصلے ماتے وے
بلالان ډیر وو. خوجرأت دا یمان یؤ کښے نۀ وو
زندګی نۀ وَه تیزندئ وه، حوصلے ماتے وے
دَ حق خبره دکمزوری په خُله نۀ شوه راتلے
دَ زورآورو بادشاهی وه حوصلے ماتے وے
زړونو کښے نوم د رحم نۀ وو رورولی ختمه وَه
په هریؤ کور کښے خونخواری وه حوصلے ماتے وے
نۀ پیمانه دَ سړ یتوب وَه نۀ معیار دَ زُهد
دَ رنګ اؤ نسل بادشاهی وَه حوصلے ماتے وے
تش دبُتانو پرستش وَه، تش دَ زرو زور وو
دَ حق په ذکر پابندی وه، حوصلے ماتے وے

بس ناساپی یوه رنړا شوه توره شپه ختمه شوه
دظلم، جبر، دَ ستم ټوله قیصه ختمه شوه

۲۵، فروری ۱۹۷۶ء



که د حالاتو تقاضې بدلې شوې نه دی
زمونږ خو هم څه ارادې بدلې شوې نه دی

چه مو نصیب د دیدن نه وو دواړه تیرو بیلږشو
ګنی د تلو لارې کوڅې بدلې شوې نه دی

دُنیا ته ګوره دَ "الف" نه شوه تر "ی" بدله
لا دَ وطن مې ورځې شپې بدلې شوې نه دی

په عمر پس مخې له راغې، دواړه چپ پاتې شو
عشق کښې تراوسه اندیښنې بدلې شوې نه دی

ساقی! زاهد به دِ ترهغه پورې او نه وینی
څو چه کاسې د میخانې بدلې شوې نه دی

۲۰، مارچ ۱۹۷۶ ء



اشنا زړه دې د ښکلو محبت غواړي خو نشته

نن ډېره موده پس بیا زوړ عادت غواړي خو نشته

کاسې دِ دَ شرابو رقیبانو ته نزدې کړه

ساقي! زړه دې د سترګو هغه ست غواړي خو نشته

ځواني دې ستا دَ مینې په ارمان هسې زړه کړه

یاري د لویو خلقو، لوټې قسمت غواړي خو نشته

کوڅه کښې دِ په کاڼو نن مټین ویشتلې کیږي

اشنا زړهٔ لیونې زوړ روایت غواړي خو نشته

پرون دِ چه ځواني خپله د ښکلو زارَ وله

نن ژوند درنه زاهده! حرارت غواړي خو نشته

فروري ۱۹۷۷ء

خوږه نغمه د ژوند ترخه ده د سماج لاسو کښې
د لته کښې ورځ هم توره شپه ده د سماج لاسو کښې

یا به سرلاړ شي اشنا یا به دې وکړم دیدن
چې د منت قیصه اوږ ده ده د سماج لاسو کښې

چې زنځیرونه د رواج شته مینه نه شي کیدے
د محبت مرۍ خپه ده د سماج لاسو کښې

هرچا ته ځان چې پکښې بل سیکاری نوغږ نه کوي
خو مره دلکشه آئینه ده د سماج لاسو کښې

دلته غربت چې ته زاهده! څوک دیدن ته پرېږدي
د سرتیوب معیار پیسه ده د سماج لاسو کښې

اپریل ۱۹۷۷ء



د خپل سبا سُست دا امتحان امتحان څله اخلې

اُستاد د زړونو د جهان امتحان څله اخلې

سر د پښتو ئے لا تر اوسه چا ته ښکته نه دے

د زمانے باده! د خان امتحان څله اخلې

په مړاو سترګو راته ګورے په څُله غږ نکوے

د حسرتونو د طوفان امتحان څله اخلې

د محل باده! په مونږ زیرے د سپرلی مه کوه

د خوار و زار و دا ارمان امتحان څله اخلې

ښه درته پته ده زاهده! چه پښتو نه لری

نه د یارانو د ایمان امتحان څله اخلې

مردان جنوری ۱۹۷۸ء



خپل گریوان به ژاړو د لاسونو به څهٔ نهٔ وایو،
ژوند چه تیر وو د ستمونو به څهٔ نهٔ وایو،

ستا دَ بڼو وعُمر که ا شنا په خاموشی کښې وی
خیر دے تر قیامته د زخمونو به څهٔ نهٔ وایو

نهٔ راته رقیبه! بے له زلفو سورے او ښایه
مونږه لیونی د زنځیرونو به څهٔ نهٔ وایو

زړهٔ څهٔ کاڼے نهٔ وی چه واعظه نښکلا به غواړی
څنګه ستا په مخکښې "دګُلونو" به څهٔ نهٔ وایو

هر نظر د سترګو دِ ساقی رقیبان او لوټی
ستا د میخانے د شرابونو به څهٔ نهٔ وایو

نهٔ دیوے "مینے" احترام که زده واعظه کړے
مونږ ستا د شل رنګے نقابونو به څهٔ نهٔ وایو

تهٔ د فن پالنه دِ نراهَلَه! بے لالچه کړه
دلته دَ دُنیا دَ الزامونو به څهٔ نهٔ وایو

۲۲، جنوری ۱۹۷۸ء



نه د خزان په پته پوځ نه د سپرلي په پته
توره تیاره کښې څوک پوهیږي د څه شي په پته
ستا د خط لمحې د آشنا بیره کښې سپایي پیدا کړل
ډیر که خطونه د خلقو څې را څي په پته
هغه په عمر کښې هم نه شي رسیدې دیدن له
چه د ګلاب ناوې له نه څي دا زغې په پته
چاله د زهر پیمانه څې چاله کوره شراب
نه په ایمان د ساقي پوځ، نه د ساقي په پته

کله د مینې نه توبه کړي کله مینه کوي
زړه! خدائیګو که پوهیږم د زړګي په پته

۴، فروري ۱۹۷۸ء

○

اوس ګذاره د زړهٔ په وینه کوو
حالات چه نهٔ شی بیا به مینه کوو
سرکهٔ موځی که مو پرے کیږی ژبه
ولے آشنا خبره سپینه کوو
دَ خپلو وینو تصور اُودهٔ کړو
چه دَ سپرلی قیصه رنګینه کوو
وختونه وینه د سړی اوچه کړی
هره خبره چه سنګینه کوو

زاهده! خیر دے دُشمنی دِ کوی
مونږه به هر چا سره مینه کوو

مردان ۸، فروری ۱۹۷۸ء



د رنړا ذکرے کووځکه په اور کښے سوزم
نورے کوم جرم دے یارانو په کومٔ تور کښے سوزم
تا خو رشته د مینے پریکړه بے غمه شوے
زهٔ دِ تراوسه لا دَ مینے په پیغور کښے سوزم
آشنا د ژوند امتحانونه دی تحوک ځخهٔ اووائی
چه کوم یؤ اورے مړکوو هم هغه اور کښے سوزم

زاهده! ژوند پورے حیران شو چه اوس چرته لاړ شو
بهر هم کوره اُور وریږی هم په کور کښے سوزم

مردان مارچ ۲۸ ۷۹ء



زندګي څۀ ده په لمبو باندې بس وخت تيره وو
لکه د شمع په سلګو باندې بس وخت تيره وو
نښه د اته پته ده چه راته تر قيامته نۀ شي
هسې د ښکلو په وعدو باندې بس وخت تيره وو
ماتيږي کله د زړونو تنده په شرابو ساقي!
ستا ميخانه کښې په پيالو باندې بس وخت تيره وو
د مينې ذکر چه محفل کښې د رقيب جرم شۀ
په اشارو، په کنايو باندې بس وخت تيره وو

ديدن د ګلو به کوو زاهده! هر څۀ چه وي
مونږه چمن کښې په ازغو باندې بس وخت تيره وو

سوات ۲۶، جون ۲۰۱۹ء

پرېږده چې شر مړه د مرګ تیصه وایو
مونږ لکه حُسینٔ چې شپې ته شپه وایو
ستا به هم خندا کېنې اشنا زهر وو
ستا خوږه تیصه که نن ترخه وایو
ځکه موپرېکړې نن په دار د ربه
مونږ هره خبره چې ښکاره وایو
نور دِ احترام دَ قدم څه او کړو؟
څهٔ ځانے ته حرم څهٔ ته کعبه وایو

بیا مو هم نراهٔده! خلق نهٔ پرېږدی
نهٔ که دَ چا سپکه نهٔ درنه وایو

مردان ۱۵م دسمبر ۱۹۷۸ء



شپے تہ شپہ نۂ شو ویښلے، شاعری پہ کوم طرف ځی
مونږ۔ۀ کوم پلہ روان یُو، زندګی پہ کوم طرف ځی
نۂ غرور کوے پہ حُسن، زۀ پښتو تہ ګورم ګُلہ!
دوارۀ لرے لرے ګرځو، اشنائی پہ کوم طرف ځی
یو طرف تہ زنځیرونہ، بل طرفتہ دی ستا زلفے
تماشہ کوۀ او س ګورۀ، لیونی پہ کوم طرف ځی
راندۀ نۂ یُو چہ بہ وایُو، دَساقی کور کښے انصاف شتہ
تنکی کوم طرف تہ ناست دی، صُراحی پہ کوم طرف ځی

لیونی تور وی کہ سپین وی، ستا پہ شان وی نزاھدہ!
تۀ پہ کوم طرف روان ئے، داخدائی پہ کوم طرف ځی

مردان - ۲۷، جنوری ۱۹۷۹ء



حالات که هر څه وي اشنا خوشاعري به کوو
خیرده که لړے لړے ګرځو اشنائي به کوو

د زړه په ونیو ګل کول غوارې زیر ئے غوټئ
څومره منښتې، انتظار، مونږ د سپرلی به کوو

څئ چه د لاسه ئے جام واخلو نورا وڅښین ختم کړو
څه منتو نه ترقیامته د ساقي به کوو

اشنا خو داسے په اسانه چا ته نه شو پېښنوے
رقیب ته وایه چه پښتو، او دشمني به کوو

د وطن لارے به رقیب ته نه سپارو زاهده!
که خاني نه وي نو څه خیر دے غریبي به کوو

مردان
۲۰، نومبر ۱۹۷۹ء



منګرو تېک دا چه ظلمونه په دے نبار کښې کیږی
ولے د حق خبرے هم په لو یه لار کښې کیږی
مونږ غریب به چا ته څنګه د زړه حال اووائی
د زړه خبرے دلته کله په اختیار کښې کیږی
خزان بدنام دے چه نمود او نمائش نه نری
ګنی نو لوبے په ګلو نو خو بهار کښې کیږی
دانه چه ړوند وُم نوازمے اخستل په ګلو
هر څه چه کیږی نو منګرو! په اعتبار کښې کیږی

صحرا کښې څوک وی چه زاهد پسے به کانړی راخلی
اشنا د کانړو ګذار و نه خو په ښار کښې کیږی

مارچ ۷۰ ۱۹ ع



نهٔ کیږی اشنا په دیدنو نو ګذاره
چا وے چه کیدے شی په یادونو ګذاره
سرکه په رښتیا ډځی نو لاړ ډشی ملګرو
نهٔ ے تګی دا په منتونو ګذاره
نو ره خو په ژوند کښے هیڅ نشته دلکشی
ده په تصور د جنتونو ګذاره
نوره خوځهٔ نخښه نهٔ لرم د اشنایانو
لږه ډیره کیږی په زخمونو ګذاره

نهٔ راځی جواب چه ے د مینے د یو لوری
ده زما زاهده! په شعرونو ګذاره

۲۵ ر مئی ۱۹۸۰ ء

د کال ۱۹۸۲ء نه تر کال ۱۹۸۴ء پورې کلام

# قیامتونه دې راشي


عبدالرؤف "زاهد"

محله صاحبزادګان،

شمسي روډ، مردان۔

# تمرن

خير دے زاهده! دشمني دِ کوي
مونږ ته به هر چا سره مینه کوو

"زاهد"

# ټول حقوق د زاهد دي

د کتاب نوم ــــ قیامتونه دي لمحے
مصنف ــــ عبدالرؤف زاهد
د چاپ کال ــــ ۱۹۹۲ ء
د چاپ ځائے ــــ
سر ورق ــــ لطیف آرټسټ (مرحوم)
کتابت ــــ حاجی نظام الدین
بیعه ــــ ۳۰ روپے

## د موندلو در کونه

مکتبه سرحد بک ایجنسی خیبر بازار پیښور
یونیورسټی بک ایجنسی خیبر بازار پیښور
شمع بک ایجنسی سعیده مارکیټ بنک روډ مردان

راتلونکے کتاب " تلوسے "

# څپلې خبرې

زه د ګرانو لوستونکو او د پښتو ادب سره د مینه لرونکو ملګرو مننه کوم چه هغوی زما د ومړنۍ کتاب "پرخه" ډیره پذیرائی اوکړه - او ما دا محسوسه نکړه چه ګنې پښتو ادب کښې د لوستونکو کمے دے - زه د اباسین آرټ کونسل پیښور او پاکستان رائیټرز ګلډ ( WRITER GUILD ) هم مننه کوم - چه دے دواړو ادارو "پرخه" ته د کال ۱۹۸۱ء بیل بیل خصوصی ایوارډونه ورکړل او داسے زما حوصله نوره هم زیاته شوه -

(حادثے) زما دویمه شعری مجموعه ده - چه په کال ۱۹۹۰ء کښې د چاپ د مرحلو نه وتے ده ولے خنګه ئې چه نوم دے داسے دا کتاب د حادثو ښکار شو - او مارکیټ ته رانه غے او دغه شان ګران لوستونکی او پښتو سره مینه لرونکی زما د دے شعری مجموعے نه محروم پاتے شو - که لوئے الله ته منظوره وه نو هیله مند یم چه دا کتاب د عدالتی فیصلے نه ورروستو د لوستونکو په لاسو کښې وی -

زه د ځینو درنو لوستونکو نه بښنه غواړم، چه

هغوی مَا دَ انتظار په توده نه مکه ایسار کړل -
په "قیامتونه دی لمحې" کښې دَ "پړخه" نه وړستو
شاعری شامله ده کومه چه تقریباً دَ مارشل لاء
په دوَر خوره ده - دلے څنی غزلے او یو دوه نظمونه
پکښې دَ کال ۶۸-۱۹۶۷ء سره تعلق لري - کوم
چه دَ "پړخه" نه دَ چاپ په وخت پاتے شوے وُو - ما
قصداً په دے کتاب کښې شامل کړل چه دَ غـــه
شــان دَ تاریخ دَ زنځیر کړیې برابر شی - او
لوستونکو ته زما ناپ تول آسان شی هَم په دے
غزلو کښې یو غزل چه مطلع داسے ده -
ے یو "څو" نظم ویونکی غزل خوان ته لاړے نیسی
خستــړو ته خیال اوکړے چه طوفان ته لاړے نیسی
چه دَ کال ۱۹۶۶ ء سره تعلق لري او دَ هغه وخت
دَ خصوصی حالاتو واقعاتو په نتیجه کښې لیکلے شوے
دے دا وضاحت ضروری ځکه دے چه داسے به
نه دَ یو ادبی خیانت مرتکب شم او لوستونکو ته به دې
غزل دَ بیک ګراؤنډ ( BACK GROUND ) هیڅ
پته اونه لګی او قسما قسم مسئلے به ترے پیدا
کړے شی - په دغــه کال کښې یو څو لیکونکو ملګرو
دَ غزل خلاف جهاد شروع کړے وُو نفسیاتی او فطری

طور دَ هغې په مخ نیونکو کښې زهٔ دَ تولونه لږ مخکښې وم. ځکه چه زما غزل سره بے کچه مینه وه. هم دا وجه ده چه دَ دغه کال زما په تول شاعرئ کښې دا سے خبرے بریښي. اوس دَ غه Chapter closed - دے. خدائے گواه دے چه زهٔ څو نه مخکښې دَ نظم خلاف وم او نه اوس. ځکه چه دواړه دَ ادب مضبوط او فعال صنفونه دی. او دَ دے خبرے ثبوت دا دے چه "پرخه" او "قیامتونه دی لمحے" کښې ما نظمونه هم شامل کړی دی. سره دے اعتراف چه زهٔ دَ غزل شاعر یم په نظم مے دومره عبور نیشته بهرحال زهٔ هیله لرم چه ملګری به دا مسئله بیا سر دوباره کوی نه. دَ ا به ئے په پښتو ادب او په ما ډیر احسان وی. ځکه چه دَ ا مسئله اوس بیخی ختمه ده. او دهغه "بوخو" ملګرو سره زما اوس ډیره مینه او تعلق دے.

هغه که دَ کتاب دَ املا متعلق څه اوونه لیکم نو دا سے به دَ یو بل غټ جُرم مرتکب شم. او دَ "پښتو اکیډیمۍ خلق" به مے هیڅ کله معاف نکړی اصل کښې زهٔ دَ (ئ) په "مشکلاتو" کښې ګیر یم او

دړے (ئ) د ګرداب نه نشم وتے۔ اګر که پښتو اکیډیمئ تر خپله وسه په (ئ) لکھونه روپئے خرچ کړے او ډیرو لیکونکو ته ئے د (ئ) "مشکلات" آسان کړل۔ ولے څه اوکړم چه تراوسه مے ما زغو کښے د (ئ) ("بلا رنګی") نه ئے کیښی۔ کوشش کووم که د (ئ) او د (ئ) په "لاندے باندے" نقطو پوهه شوم نو راتلونکے کتاب به مے هم په جدیده اِملا کښے وی۔ فی الحال معذرت غواړم ډیره مننه۔

(ستاسو خپل زاهد)

نهٔ زړا تلے اشنا چه دَ ښونډو په لار
لاړ دِ شهٔ زاهد آخر دَ مړو په لار

یار چه له محفله لاړ رقیب سره !!
زړهٔ مے وړهٔ تر کوره په سترګو په لار

زلفے دِ مخ ښکله لوغړنے کړے!
لوبے نه دی تلهٔ چه دَ ملګو په لار

خیر دے چه دِ زړهٔ نه دے نو مهٔ ژاړهٔ
مساله چه راځے تهٔ دَ پردو په لار

بیا حیرته زاهده ځی په بل طرف!
یو ځل چه وی تلے دَ پښتو په لار

دَ پیښنور په لار

(۱۸-۱۲-۸۱)

○

کله په تا، کله په ما، دے امتحان امتحان
بس خو دا ژوند، هم ټول اشنا دے امتحان امتحان

○

څه م د تورو شپو سبا، څه ستا سبا د وعدو!
زما د ژوند هر یو "سبا" دے امتحان امتحان

○

"حسن" "رقیب" نه غاړه وځي "عشق" ولاړ دے په دار
نن د "وفا" او د "جفا" دے امتحان امتحان

○

ته یې مئین په نورو خلقو، زه یم په تا مئین هم
دا یو زما دے، دا یو ستا دے امتحان امتحان

○

ژهیړه کومه حادثه به د ژوند پیاده لړو!!
هر یو قدم او هره ساه، دے امتحان امتحان

○

(۲۷-۱۲-۸۳)
مردان

تا غور زول، ما ځایول په زړهٔ کښې
کسی ازغی چا، ځایول په زړهٔ کښې

ستا بے رُخی، د کور او کلی پېغور
کړانه ده بیا، بیا ځایول په زړهٔ کښې

لکه سپوږمئ څکه یوا زړے او سم !!
ستوری چه تل، ما، ځایول په زړهٔ کښې

رنګ د ګل خوږئ د ازغی ازغی دے
دے ریاضت "ستا" ځایول په زړهٔ کښې

زاهده! څکه خو یارانو پریښو دے
تا به په بیا، بیا، ځایول په زړهٔ کښې

(۱۰ - ۳ - ۸۲)
بجلی گهر مردان
سحر نه بجے

په صایب باندې تیرېږي، که په دار باندې تیرېږي
اشنایانو ژوندګي ده، هره لار باندې تیرېږي

د ګل چاودې زړه ښکاره دې، ځکه هر سړي ته ژاړي
دلته چا ته پته نیشته څه په خار باندې تیرېږي

نه ته راغلې لا تر اوسه، نه سحر شو په ظلمت کښې
ټول ژوندون م د زړه سره! انتظار باندې تیرېږي

ورته نه ګورم زړګیه! د اشنا طبیعت نازک دې
هغې لارې ته به واوړي، که دې لار باندې تیرېږي

دا به وائي چې ضدي وه، سر یې چا ته ښکته نه کړو
رقیبان چې مې ژاړي ده! په مزار باندې تیرېږي

(٦-٣-٨٣)
پیښور ښار
ماښام نهه بجې

دَا چاودې چه رقيبه دَ هر چا نهٔ ، هر څهٔ هير دى
زمونږ نهٔ غو هيرندى، که لتا نهٔ هر څهٔ هير دى

پردن مخے له راغلے، خو اشنا زړهٔ مے پرے نهٔ وت
دَا ولے دَ ګل مخو دَ خندا نه هر څه هير دى

پښتو زمونږ پيکه شوه که جذبه زمونږ سړهٔ شوه
دَا څهٔ چل دے؟ يارانو دَ هر چا نه هر څهٔ هير دى

زړګيه! اوس به څهٔ وايو اشنا ته چه زړلړ شو
هم ستا نه هر څهٔ هير دى، هم زما نه هر څهٔ هير دى

زاهده! سبنهٔ ورا وګوره يقين نه دے چه پوهے شى
عمرونه پکښے تير شو دَا شنا نه، هر څهٔ هير دى

(۱۸ - ۳ - ۸۲)
مردان

که د زاهد پکښې ساقي يوه زره نۀ رسي
بيا به د "چا" شونډو ته دلته پيمانه نۀ رسي

○

بيا مې هم زړۀ کښې انديښنې دي چې به راشي اشنا
ښه راته پته وي چې سر ته د وعدې نۀ رسي

○

يار مې پښتون دے خو مخا به وۀ ستړما راغلے !!
ښکاري قاصده! چې زما ورته کاله نۀ رسي

○

ستا د اوږدو زلفو سودا راته خوبونه يوړل !!
سترګې مې سپينې شوې سحر ته جوړې شپه نۀ رسي

○

په زر پرستو کښې به ستا زاهده څه وي قدر!!
ته خو شاعر يې او شاعر سره پيسه نۀ رسي

○

(٢٥-٣-٨٢)
مردان

وعده د راتلو مه کوه راتلل به درته ګران شي
بې لوظه يې د سترګو ټکيدل به درته ګران شي

يارانو مونږ عادت يو سپه ملمبو باندې د تللو!!
راځئ! ولې سوچ اوکړئ سوزيدل به درته ګران شي

لاس اونيسه ګنې ورځ د حساب دِ رانزدې ده!!
ګل حبيبه! دا د ګلو شوکيدل به درته ګران شي

زړګيه! چه خفه يې نو ور اوګوره بې شکه!!
دا واوره! چه بې واره درزيدل به درته ګران شي

زاهده! هر يو شکلي ته په روب نظر چه ګورې
دا زړه به بې غيرته بايښلې اوسيدل به درته ګران شي

(۲۹ - ۳ - ۸۲)
مردان

○

هر څوک چې کړې که په وينو مو پيوې دي
رنځورې ی ناء ملګرو چې دا څنګه رنګه تيارې دي

○

واعظه! غوږ زوړ ل غواړې که زلفې که تسبې دي
يو تاته زولنې دي او يو ما ته زولنې دي

○

دا سترګې ورته نيسمه چې توې نښې په مزکه
د ښکلو د نظره تو يېدونکې چې لښتې دي

○

اشنا! څومره زړونه خوښېدار ساقي ترعمره!
که سترګې دې د عمرونه بېځي اوډې اوډې دي

○

پوازې خو په تا بانډې ستم نه دې زاهده!
يارانو ته دې اوګوره همه زړې زړې دي

○

(۷ - ۹ - ۸۲)
مردان

یارانو ته مقام چې ښکاریده په زولنو کښې
بې خوفه بې خطره ګرځیده په زولنو کښې

○

آواز ئې د ښنګرو چې اوریده په زولنو کښې
دا ځکه لیونی دی ګډیده په زولنو کښې

○

اشنا! د لیونو به څه پښتنه کړې د وخت
هم تله په زولنو کښې، هم راتله په زولنو کښې

○

مېئن ته دې په خله باندې غزونکړو چې پروې
اشنا د ښنګرو لاندې دې ساه ده په زولنو کښې

○

تیارې د ستمونو په دمونو باندې نه ځي
واعظه! ټول عمر دې اوسیده په زولنو کښې

○

حیران یمه سیاڼی د رقیبانو چې ته لاړه!
مېئن دې چې د زلفو اوریده په زولنو کښې

○

ایمچا ورته د ډېره نه غزا ونکړه په مینه
زړه هسې که د ډېرو خلقو پېژنده په زولنو کښې

○

(۱۵-۲-۸۲)
د پابیښور په لار
(مروانی)

داسې حیا ته مه ګوره د اخلق نظر پېړنی
دلته نر ګران اوسی د زړه سره اِ زر پېړنی

ستر ګې دِ غاوره، خو زما زړه هم سوالګر نه دې
عشق کښې پښتو پېژنی، ځان پېژنی، در پېژنی

هر سرې یار اتو خوک په کا نړو باندې نه وُلی
خلق هم پوهیږی، مجنون پېژنی، سر پېژنی

اوس هم دِ وعدو سره اشنا اِ زړه عادت شویدې
مه خوره قسمونه چه یقین او باور پېژنی

دا دِ هم اعجاز دې، هم ځوانی ده، هم اشنا حُسن
نن دِ چه زاهد خلق په نوم د ځیګر پېژنی

(۱۶ - ۴ - ۸۲)
مردان

د پښتو عظیم غزلګو شاعر حمزه شینوارې ماته په یوه موقع د پښتو ځیګر مراد آبادی او بیال ورته هغې ته اشاره ده -
(زاهد)

دیدن دِ په ښکاره او نهٔ په غلا مونږه کولے شو
اظهار دَ محبت دِ بس اشنا مونږه کولے شو

○

داڅه رنګه بادونه دی چمن ته راالوتی!!
نهٔ ګلونه کتے شو نهٔ خندا مونږه کولے شو

○

یا زړونه صبر ول دی یا سجدے دِ په درشل دی
نهٔ هغه مونږ کولے شو، او نهٔ دا مونږه کولے شو

○

په زړهٔ کښې دَ یزید چرته څهٔ راز نه شی ملګرو!
نن هم لوبے په ځان دَ کربلا مونږه کولے شو

○

یریږو نا مه زړه هسې ! که مقتل وی او که دار
دَ حق خبره ممکنیږی دَ هر ځایٔ "مونږه کولے شو

○

(۲۲-۴-۸۲)
مردان

تا که په ټیمو او په بڼو خبرے زړه کړمه
زړګے مے هم اشنا! په دړهیدو خبرے زړه کړمه

اوس به درته بیته د سوي اوښکي زهکمه!
یارا چه لکه ګل په مسیدو خبرے زړه کړمه

ځکه مے په سترګو باندے ښه ئے لګے رقیبه!
تا چه محبت کښے په پښتو خبرے زړه کړمه

تا لکه د ګل هسے خندا زړه کړه ګل رنګه !!
ما لکه د شمع په سلګو خبرے زړه کړمه

لاس له چه کاسه محفل کښے نه درتله زاهده!
تا د بے وسئ نه د توبو خبرے زړه کړمه

(۱ - ۵ - ۸۲)
مردان

○

حرم ته رسیدل که بُت خانې ته رسیدل
دَ مینې لیونو وُو ستا کوڅې ته رسیدل

○

مَا او شیخ کمې نزد او چې په تارُ تو دَلته
سَر‌ونه دَخبرو ستا نامې ته رسیدل

○

میٔن دِ دَ دیدن وُو، که صلیب وُه که مقتل!
څوک دې ته رسیدل او څوک هغې ته رسیدل

○

لکه هر څه نه مشکل دې دَ چا زړه خوشحالول!!
زړګیه! طوبې نه دی څه کعبې ته رسیدل

○

زاهده! ستا دَ مخې او بزدۀ نه کړل دَ قصده!
هر څوک مې لاسونه پیمانې ته رسیدل

○

(۱۰ - ۵ - ۸۲)

مردان

○

لاړے د ړوندو دی خوږو ندی په دے لار نهٔ راځی
ښکلی هره لاره باندے ځی په دے لار نهٔ راځی

○

څهٔ به غوټۍ ګل شی څهٔ به زړهٔ نه وده ادوموی
لړے لړے کړځی چه سپرلی په دے لار نهٔ راځی

○

ګړے دروازے مے دواړه سترګے د زړګی د کور
څهٔ اوکړم اشنا مے د زړګی په دے لار نهٔ راځی

○

ځا سره چه فکر د منزل وی نو اودیږی ناء !!
یون به کړو لیوانړے که خدائ په دے لار نه راځی

○

هر ښکلے غاوره ته پے عشق کښے غرور نه مے
کړا نه ده زاهسره اشنائ په دے لار نه راځی

○

(۱۱ - ۵ - ۸۲)
پیښور

○

تا اشنا پوے کړل په خندا، خلق په څه پوهيدل
کنی محفل کښې وو بلا خاق، په څه پوهيدل

○

د بنړو لاندې غلا کاته، بیا زما نوم اعستل
په هر څه پوے دِ کړل اشنا، خلق په څه پوهيدل

○

د يزيد ظلم کړل را يوځاے د حسين ملګري!
کنی نا پوهه د صحرا خلق په څه پوهيدل

○

ستا نزديکت سره د زړه سره، په هر څه پوے شو
کنی رشتيا وايه چه دا، خلق په څه پوهيدل

○

ګوندو بنړو، څيرے کړيوان، دِ راز د زړه ښکاره کړو
وايه زاهده! د دنيا خلق په څه پوهيدل

○

(۱۶ - ۵ - ۸۲)
مردان

نن دِ نهٔ په سترګو نهٔ په خلهٔ خبره شته دے
راته معلومیږی څهٔ نهٔ څهٔ خبره شته دے

○

تهٔ دِ لګیږے سترګے را نه واړوې چه اوګورم !
ستا دَ دیدن وخت کښے هم په زړهٔ خبره شته دے

○

وختهَ ! داځهٔ کوے دِ په زړونو پابندے اوګرے
نهٔ په پرتوانهٔ نهٔ په خاتهٔ خبره شته دے

○

پرے دِ کړهٔ رشته دَ تعلق په مَخه لاړے !
ره ستو دِ بیا څلَه را کاتهٔ، خبرهٔ شته دے؟

○

خدائے خبر چه کومو تیا ره او خوږے را هَدَره !
نه دِ په راتلهٔ او نهٔ په تلهٔ، خبره شته دے

○

(۲۵-۵-۸۲)
بجلی گهر مردان

○

نن ئې راته او کاته اوده ، اوده
زړه ئې کېښنے ئې راله څه کاته اوده ، اوده

○

ستا چينه چينه نظر رقيب ته شه !!
ما وراته وراته کاته اوده ، اوده

○

ما که کتے نشو ، نو د خوبه ووم !
تا راته په څه کاته اوده ، اوده

○

ما وراته وے او کوره په ويښ نظر!
لا ئې راته سبه کاته اوده اوده!

○

بيا ئې زندګي زاهده راکړه نن
بيا ئې راته مړه کاته اوده اوده

○

(۲۶-۵-۸۲)
مردان بجلي گهر
۳۰، ۱۱ بجے
سحر

مقتل ګله وړتلل دی که ختل دی په صلیب
د اهر څه به کوټوچه "څه وشیل" دی په صلیب

○

نه ګیره! پښتو! اوکړه! امتحان دے د وختونو !
د یار د یاره "خلقو" "نه خندل دی په صلیب

○

ملګرو! څه چه ورشو تقاضا ده د ژوندون
تیاره د ستمونو ړنګول دی په صلیب

○

په ژوند چه وی میځ د زندګۍ سندره والۍ
یارانو! هره ساه که اعستل دی په صلیب

○

دیدن د هغه ښکلی څه آسان نه دے زاهره!
وړتلل دی په صلیب او هم راتلل دی په صلیب

○

(۱-۶-۸۲)
مردان

چرته مې هیوېږی ستا ککو کښې مُسیدل
یاد مې دی شراب چه په کاسو کښې مُسیدل

شنګه به صلیب او یا مقتل یاتې کوټوُ!
مونږ تهٔ سحرُونه چه په شپو کښې مُسیدل

اوس خوږ تهٔ سیوری د جنت هم دوزخي دې
یاد دې دی اشنا هغه لمبو کښې مُسیدل

دلته کښې کفن له چرته پاتې قدر نشته!
هلته کښې ګاونه په کټو کښې مسیدل

ژوند پاندې مېئن دوُ لکه ستا هسې ژهڅه!
څکه خو ګلوُنه په ازغو کښې مُسیدل،

(۳-۶-۸۲)
مردان بجلی ګهر

څوک ژاړه د خپلو، څوک پردو، قیصه کوي
هر سړے د زړهٔ د سوزیدو قیصه کوي

○

داسې معلومیږي څۀ سودائے دَه پۀ زړهٔ کښې
نن ژاړه پۀ شړنګ کښې د بنګړو قیصه کوي

○

څومره چې محفل کښې ورته وائیمهٔ د ناستې!
دومره دا ظالم د پاسیدو قیصه کوي

○

بیا ژاړه مانګرې مخ او زلفې یاد دي!
دا ژاړه د کومو ورځو شپو قیصه کوي؟

○

زهٔ ورته قیصه د زولنو کوؤم زاهده!
ما ته چې همزولي د کمڅو قیصه کوي

○

(۵-۶-۸۲)
مردان

څه چې توږی زړونه خپل نشه کړو په نظر کښې
جوړه به یو بل ته میخانه کړو په نظر کښې

○

څه اوشو محفل کښې که په ژبه پابندی شوه
زړونه سینه پوهیږی چې قیصه کړو په نظر کښې

○

ګوری رقیبان که زړاته پریږ خو پوهه نه شی
مونږه چې یو بل سره وعده کړو په نظر کښې

○

دومره خوشوم پوهه چې یار نه راځی زړګیه!
څه چې اوس تصویر ئې وظیفه کړو په نظر کښې

○

نه ورځو دیدن له که دې خوښه وی زاهده!
څئ له یې د خلقو بیا کوڅه کړو په نظر کښې

○

(۱۲-۶-۸۲)
مردان

تا ته هغه خالق چه یا خُلهٔ بنهٔ دی
ما ته هغه بنهٔ دی چه په زړهٔ بنهٔ دی

وی چه هر ارمان او هر خوائش به دار
ستا دوے محفله خو وائهٔ بنهٔ دی

تا ته تکهٔ "ګل" هسے خندا بنهٔ ده !!
ما ته تکهٔ "شمع" ژړیدهٔ بنهٔ دی

هره لحظه مرګ دے څوموند، دلته کښے
دے نه خو نزکیه! مرهٔ کیدهٔ بنهٔ دی

یا ته به زاهده! په پردهٔ کښے شے !
یار له دِ به توره شپه ورتلهٔ بنهٔ دی

(۲۲ - ۶ - ۸۲)
مردان بجلی ګهر



Scanned with CamScanner

○

نۀ مے غم منے ، نۀ ښاديدۀ منے
ستا په طبيعت پوے نشوم چه څۀ منے

○

کله کله خلق دَ بل هم منی !!
تۀ هره خبرۀ دَ خپل زړۀ منے

○

زۀ هم سرکوزی دَ پښتو نۀ منم
تۀ کۀ منتونۀ دَ "چا" نۀ منے

○

تا خو به زړۀ کښے دَ چا نۀ منل !!
څنګ هره خبره دَ هغۀ منے

○

هله به دِ وخت راشی دۀ ! ښۀ ښۀ تير
دلته به هم بد منے هم ښۀ منے

○

(۲۳-۶-۸۲)
مردان بجلی گهر

يو تا ره هم يارانو په ګرېوان چه پاتې نشو
ځکه په محبت کښې د جانان چه پاتې نشو

بيا دلے ورځه نه مومي موسم کښې د ګلونو ؟
اوس زړګۀ د هغه زلفو سنديوان چه پاتې نشو

پښتو تړے لاړه اوتله، برنډ کښتل نے ورک شو
ارمان د هغه سترګو، اوس ارمان چه پاتې نشو

زړګيه! د بے ننګه يار په کلي، به څه ورشو
د سترګو نګيد وا اوس هلته شان چه پاتې نشو

ګيلے به د کافر نه څوک څه اوکړي اوس وايه
زلے هډه! مسلمان هم مسلمان چه پاتې نشو

(۵-۷-۸۲)
مردان، ۳ بجے سحر

ټټاراته څه او خندل په تلو کښې، خوشبوئی شوه
ګلانه! دَ خزان په ورځو شپو کښې خوشبوئی شوه

لا مې دَ خندا نه پسته او دِ وې "راځمه"!
زړه ته مې بې شانه په وعدو کښې خوشبوئی شوه

ښکاري چه سپرلے دَ ژوندګئ رانزدے شوے
ګوره! دَ خیبر په سر درو کښې خوشبوئی شوه!

وې وئیل خندا کښې "ژوند دَ مرګه پیدا کیږي"!!
ځائے شو ګل دَ سپیلو په لمخو کښې، خوشبوئی شوه!

ښکاري "چا" "تړلې لمحې" پرانستې زاهده!!
مانه دَ زندان په زولنو کښې خوشبوئی شوه

(۸-۷-۸۲)
مردان

○

اوس ئې که اشنا په یو کوڅه کښې دشمني ده
ما سره د خومره په پرده کښې دشمني ده

○

جام چه د ساقي نه واعظ واخستو نو اوس ئې
وے ویل زما په میخانه کښې دشمني ده

○

ورځئ د ملا تره د بنړوشۍ چه غصه شے!
څه د خیبر وکه په دره کښې دشمني ده

○

غونډ کوے په خله خو یار ته بده زما واے!!
څنګه د رقیب په خوږه کښې دشمني ده

○

څنګه به زاهده ایمان ساتے له شره وایه!
دلته هم په بده، هم په ښه کښې دشمني ده

○

(۹-۷-۸۲)
مردان - ۳ بجے سحر

نن مے په دے زړۀ باندے زخمونو ته زړۀ کیږی
بیا مے ستا د سترګو کتارونو ته زړۀ کیږی

○

چرته چه تاته دی په خپل عمر کښې منلی !!
یاره ! زما هغه منتونو ته زړۀ کیږی

○

بیا دِ د راتلو وعده د تلو په وخت کښې اوکړه !
بیا دِ جوړے ګل رنګه ! قسمونو ته زړۀ کیږی

○

ژبه چه وهی په شونډو ذکر د کوثر کړی !
ګوره ! د واعظ خومره جامونو ته زړۀ کیږی

○

بیا هره خبره کښې چه ستا ئے د یار زلفے !!
بیا د جوړے زاهده ! زنځیرونو ته زړۀ کیږی

○

(۱۳ - ۷ - ۸۲)
مردان

ستا مینه هندکۍ ده د پښتو په لاره نه ورځي
زړه زما پښتون دے د پردو په لاره نه ورځي

نه ورځي په کوتو د مقصد د "چنارونو گل"
زړه چه پکښې نه وي د لمبو په لاره نه ورځي

څنګه به د ژوند په کربلا کښې شي یزید ته ینغ
څوک چه د حسینؑ د حوصلو په لاره نه ورځي

خدائے خبر چه کوم اثر وه ستا په مړو سترګو کښې
زړه مې، "عمرا" وشو، د کاسو په لاره نه ورځي

"چا اثر نے چه یو ځل هم ناکی شي د زړه سره!
ټول عمر زاهد بیا د هغو په لاره نه ورځي ما

(۱۴-۸-۸۲)
مردان

○

تا خو د پښتو له رسمه مات ته کتے نشو
ما د کومے وجے آخر تا ته کتے نشو

○

را دِ کړهٔ رخصت ولے انداز دِ نن بدل وهٔ
ما در پسے ځکه اشنا شاته کتے نشو

○

ورغلهٔ په شمع مرګ مے خوبنې له انتظار کهٔ
کومو پتنګانو چه سبا ته، کتے نشو

○

لاړهٔ ستا د زلفو ئے مقتل پله ګېږهٔ کړهٔ
ځا ځیه محبت پورے خندا ته کتے نشو

○

سترګے ئے نن پټے کړے چه داب پله ورتللم
ښکاري زاهدانو مے سزا ته کتے نشو

○

(۱۸ - ۸ - ۸۲)
مردان،

خبرے ډیرے دي، منم! خوشحالانه، خفه
تهٔ که لما نه شوے خفه، زهٔ که لتا نه، خفه

○

په یو خدائي کښې هم څه فرق، په دے نهٔ پوهیږے
شو که له مځکے نه خفه، که له آسمانه خفه

○

دا هم ملګرو! یو احساس د محرومۍ دے زمونږ
کله د چا نه شو خفه، کله د چا نه، خفه

○

تا هم خویونه بعوض نهٔ کړیه! دَیئے مخو زره کړل
تهٔ چه په کړا نه خوشحالیږے، په آسانه، خفه

○

ګذاره ئے وه کړو که رقیب له خو بیا هم زاهده!
زهٔ ئے بے شانه کړم ذهین، زهٔ ئے بے شانه خفه

○

(۲۵-۸-۸۲)
مردان



د رقیب په طرف لاړې ، د آشنا په طرف لاړې
درد دې کم نه شهٔ زړګیه! د چا چا په طرف لاړې



ستا د ښار په هنګاموکښې، روکیدې چه د زړهٔ سره!
قافلې د ارمانونو ، د صحرا په طرف لاړې



نورې اوښکې مې هم زولو! وایې سترګو کښې اوس کوم دی!
څهٔ د چا په طرف لاړې ، څهٔ د چا په طرف لاړې



ښکلي ډېر وو سره وِ قلاه! تلهٔ د هر ښکلي قیامت وهٔ
د بازار د خلقو سترګې بس هم ستا په طرف لاړې



رڼائیٔ دِ نصیب نشوه یو لحظه د سحرونو
تلهٔ که ډېر عمر زاهده! د رڼا په طرف لاړې



(۲۶ - ۸ - ۸۳)
مردان

تا ړانه غواړې آشنا! زړۀ مې لاړ ته نشي کړې
ستا د قامت په طمع نور چنار ته نشي کتې

○

که د ساقي لاسو کښې مړ کړي، نو بې واړه به وۀ
څۀ خیر دې مۀ ورکوه جام چې وار ته نشي کتې

○

ملګرو! څنګ به فلسطین د محبت کړي آزاد
چې په یهودو کښې اوسیدې دار ته نشي کتې

○

چې په هر کټ ئې مونږ آباد کړو "تاج محل" په وینو
رقیبان ځکه اوس د مینې ښار ته نشي کتې

○

زاهده! ځکه په ښکلا د غزل پوهه نۀ شې
چې په خوشبوی تشه معنا، اظهار ته نشي کتې

○

(۱۳ - ۹ - ۸۲)
مردان، ماسخوتن

تا ته ځما او ما ته ستا خبرې نشي کیدې
زړونه به صبر کړو اشنا، خبرې نشي کیدې

څه چه د مینې روایت کړو د زړه سره بدل
نور مې زما نه اوس په غلا خبرې نشي کیدې

نن یې چې ځنیله تپوس اوکړو چه "په زړه دې غمه دی؟"
شا به مې اوډریده پریشانیا خبرې نشي کیدې

ما ته د طول عمر د مینې دستونه مه خوره !!
چرته چه زړوې هلته دا خبرې نشي کیدې

یا به مقتل پله ورځي یا به د دار په لوري !
زړګیه ! حسه د زمانه خبرې نشي کیدې

که یزیدیت شته دے حسیني جذبه هم ورکه نده
ځای چې بیا د کربلا خبرې نشي کیدې

زاهد له بس دے دغه ستا مسکي نظر هم اشنا
خیر دے که ستا نه په خندا خبرې نشي کیدې

۲۰ (مردان ۸۲-۹-۱۲)

○

ډېر که مې زړۀ تا پله غوښتل، کتې مې نشو
تا راته په دا سې رنګ کتل، کتې مې نشو

○

حیا چې کړې رڼې تیارې د ژوند د زړۀ په وینو
هغه خلق دار بانډې ختل، کتې مې نشو

○

ما وې تېز ندۍ مې جوړېږي ته ور پرېوځې
لاس دې د رقیب تا وهل، کتې مې نشو

○

جام د ساقي لاسو کښې شو پاتې، وام نه غښت
مئې يې د نظره تويېدل، کتې مې نشو

○

ګوره کړم غمونو د ژوندون خوره پرېشانه
تا که راته هر ګوره خندل، کتې مې نشو

○

نوره به حیا ستا له نظره وه څه کړې؟
تا مې ارمانونه قتلول کتې مې نشو

○

مخ له که ډېر پې مځې را غلۀ خوزا هډه!
يار راته د لرې نه کتل، کتې مې نشو

○

(۴-۱۰-۸۲)
مردان

○

اوسی مے "ارمان" دَ زړه دارانو په قلعه کښې
څنګ به دیدن او کړمه یارانو په قلعه کښې

○

دلته دیوالونه په ړاوجت دی دَ رسمونو
بند دے محبت دَ یزید یانو په قلعه کښې

○

"چا" چه دَ بسمل دَ پاره توئے کړے ځیلے وینے
جوړے دی قبرونه اشنایانو په قلعه کښې

○

بیا خلقه په سوری دَ دیوال ورته پرانته یے
نیشته چه جواب مو فقیرانو په قلعه کښې

○

نیشته چه څه جرم دَ زاهد په یو کتاب کښې
وے بنده دی یے ظالمانو په قلعه کښې

○

(۲۱-۱۰-۸۲)

شاهی قلعه لاهور

پہ سمہ اوسو اشنا یانو، کہ پہ دیرنگ کښے اوسو
هرچا پتہ دہ چہ مونږہ پہ خپل رنگ کښے اوسو

○

عمرونہ تیر شو خو اشنا مینہ مو کمہ نہ شوہ
د سمندر هسے لاهغہ شان عوږ رنګ کښے اوسو

○

تہ بہ مونږ چرتہ لټوے، تہ بہ مونږ چرتہ مومے
اوس خو اشنا چرتہ پہ شپږ رنګ چرتہ پہ کړنګ کښے اوسو

○

تږی بہ کرځو چہ الصاف پہ میخانہ کښے نیشتہ
څہ کہ زړکیہ! د ساقی سرہ پہ څنګ کښے اوسو

○

زاهدہ څنګہ بہ څوک ساہ د سکون دلتہ واخلی
هرہ لحظہ چہ د ضمیر سرہ پہ جنګ کښے اوسو

○

(۲-۱۱-۸۲)

د کوهاټ پہ لار

○

هر څو که ستمګرو د وعدو لاړے اوبه دے کړمے
یارانو! ورته موږ هم د ښېښتو لاړے اوبه دے کړمے

○

دا جام به دِ پخوا وه نصیب شوے چه اوس غواړمے
بے ځایه دِ واعظه! په توبو لاړے اوبه دے کړمے

○

هر څو مره که معراج وه په یو ګام کښے د ژوندون
خو دلته فتوه ګرو په فتوو لاړے اوبه دے کړمے

○

هر څو مره فاصلے که موږ لنډے د منزل کړمے
ملګرو کښے چه نه راتلله هغو لاړے اوبه دے کړمے

○

والله چه دِ دیدن خو د آشنا لکه اوبه وه!!
دا ولے دِ زاهده! په تسبو لاړے اوبه دے کړمے

○

(۹-۱۱-۸۲)
مردان

ټوټ به بې حیا یه شو اعتبار کېنه دَ ګلونو په لار
زړګیه! نه راځې څوک واوړه د لوظونو په لار

○

ما ته درتلهٔ په ارزو هیڅ دی ګلاب مخې اشنا !!
تا ته چه ګران ښې راتلهٔ بیا دَ خوبونو په لار

○

زړګیه! واوره دَ پېمخې زوراور قاتله!
هغه ته لوبې دی ورتلهٔ دَ ستمونو په لار

○

میینه بې زړه کړمه ملګرو که خاوند ووم دَ زړه!
چرته ورتلې شي څوک زړه ور دَ الزامونو په لار

○

مَلا دِ تړله په یارانو چه په هره موقع!
زاهده! درو مه اوس یوازې دَ غمونو په لار

○

(۱۱-۱۱-۸۲)
مردان ، ماسختی

○

نور هر څه ورته یاد وي، نور به څهٔ ترِ خطا کیږي
ملګرو! بس وعده باندې را تلهٔ ترِ خطا کیږي

○

زړګیه! هر یو تن ئې ثنا خوان دے د سرو سترګو
والله که د نظر عشق ولیشتهٔ ترِ خطا کیږي

○

منزل ته ترَ قیامته رسیدے نشي ملګرو!!
ګله واړه چه پریوځي پاسیدهٔ ترِ خطا کیږي

○

دا نه چه کمې پوهه د قاصد په بیان نهٔ وُدم!
ما وے که تهٔ ورکوړے نو هر څهٔ ترِ خطا کیږي

○

کشش د محبت دِ په نظر کښې شته زاهده!
چه کله هم ورا وګوړے نو تلهٔ ترِ خطا کیږي

○

(۸۲-۱۱-۱۸)
مردان

○

خیر دے که جمع مې شي زړه کښې په سوونو ګیلې
یار ته به اونه کړم د شونډو په سرونو ګیلې

○

چرته خوا سمې پرې آشنا چه رقیبان اونکړي!
کړو به په سترګو کښې یوبل ته اوس د زړونو ګیلې

○

والله چه مړه به شو بې ځایه که څه بندا ونشو
کوو ملګرو به تر څوله ستمونو ګیلې

○

اوس که ځان مړ هم کړم هغه وختونه نشي راتلې
هغه لیکلې به چه مونږ په کتابونو ګیلې!

○

معنی هم ښه ده، خیال هم ښه دے خو زاهدۀ ګوره
پیدا چه نشي په غزل کښې د لفظونو ګیلې

○

(۳۰-۱۱-۸۲)
مردان

○

ستا ما ته کتل مرګ دي، زما تا ته کتل مرګ دے
مونږ دا سے چم کښې اوسو چه هر څوا ته کتل مرګ دے

○

هر څوک مړه کا ته د ژوندون را کړي سرو قدره !
رقیب بله، زما، دغه ستا شا ته کتل مرګ دے

○

ډا څه ډ بې ضمیره تورو شپو حکمراني شوه !!
سفیر د سحر ونو له رڼا ته کتل مرګ دے

○

اشنا زړونه به صبر کړو پښتو را غله ترمینځه
هم تا ته کتل مرګ دے او هم ما ته کتل مرګ دے

○

زاهده ! اجوړ د ژوندون د زړه موږ شو معلومیږي
ورکوړے خامخا که د اشنا ته کتل مرګ دے

○

(۹-۱۲-۸۲)
پیښور (ماسختن)

○

ناخبره که هر څو مره، په تعزیو زما قاتل دے
خائنان زما نه ساه اخلی، بے ضمیرو زما قاتل دے

○

منت ځله د چا او کړم، ژوند به څه رنګه څوک راکړی
په خندا ورځمه څو الله، چه تقدیر زما قاتل دے

○

لاس به څنګه په "چا" کیږدم نوم به څنګه د "چا" واخلم
چه مے هر لحظه وژنی خپل ضمیر زما قاتل دے

○

چه مئین یمه په رڼا کړم، دشمنی ئے د شپو راکړه
د مقتل په دروازه کښے. آسفیو زما قاتل دے

○

د ژوند سوال مے ترے او نکړو، چه د مرګ په وخت راځه!
د مزار خوا کښے تر اوسه، لا به ویر زما قاتل دے

○

(۸۲-۱۲-۱۰)
مردان

بیل د یو بله حادثو کښې به تر عمرهٔ نهٔ یو
اشنا ګردش د ورځو شپو کښې به تر عمرهٔ نهٔ یو

د نصیب ستوري به زموږ هم چرته اوبرقیږي
ورک د وختونو په تیارو کښې به تر عمرهٔ نهٔ یو

شي به راتوې اوبه د رحم ستا په کاڼي زړګي
ستا د وعدو په زولنو کښې به تر عمرهٔ نهٔ یو

وار به زموږ هم چرې راشي رقیبي وختونو
شمار د صحرا په ګیونو کښې به تر عمرهٔ نهٔ یو

زاهده! چرې به د ګل هسې موږ هم اوخاندو
ټکه د شمع په سلګو کښې به تر عمرهٔ نهٔ یو

(۱۴-۱۲-۸۲)
مردان

دَ تلوے درته وے خوَد را تلوے درته نۀ وے
اشنا په هر قدم دَ هونیډ وے درته نۀ وے

○

واعظه! سپارے به دِ سپېرلے دَ وعظونو!
محفل کښې دَ ساقي څکه دَ څکوے درته نۀ وے

○

رقیبه! چه لمنه دَ پښتو وے وه په لاس کښې!!
فیصله که دَ سلګو وه په سلګوے درته نۀ وے

○

ما وئے چه بے موقعے به رخصت غواړے له محفله
دا څکه دَ کوظونو، دَ وعد وے درته نۀ وے

○

ستا مینه دَ منزل نۀ وه په زړه کښې پوهیدمه!!
نزاکته! قافلے سره دَ تلوے درته نۀ وے

○

(۲۰ - ۱۲ - ۸۲)
مردان

راتلونکي دي وختونه او که تلونکي دي وختونه
مانکړو! په هرحال کښې تېرېدونکي دي وختونه

○

بے ځایه به ناسے د رقیبانو اخلم شله !!
یارانو! یقین او کړئ بېلوونکي دي وختونه

○

زړګیه! اساره راخکلې کائنات چه معلومیږي
لحظه یمه کښې کوره "څه" کوونکي دي وختونه

○

آشنا! هسې شکونه دي د مینې په فطرت کښې
د یو بل دا داوره، مسرورونکي دي وختونه

○

زاهده! د حساب کتاب خبره به دې لرې کړې
په شروند باندې والله چه سموونکي دي وختونه

○

٢٥ - ١٢ - ٨٢
مردان
( ماسختن لسنا بجې )

○

دَ سترګو ټګیدو خوبهٔ څهٔ شان پاتے شی ښهٔ دے
په کور کښے مے زړګیه! که مهمان پاتے شی ښهٔ دے

○

ملګرو په خوږه کښے خوبه بد راسره نهٔ کړی
دښمن که زما هر څو مره آسمان پاتے شی ښهٔ دے

○

اشنا! شی حوصله به مے دَ ژوند دَ رهګذرو نو
ارمان ئے ستا دَ سترګو که ارمان پاتے شی ښهٔ دے

○

ژوندون دَ سیاه بختو به لا څهٔ تور کړی یارانو!!
راخور ئے که دَ زلفو شبستان پاتے شی ښهٔ دے

○

زاهده! کوم یو ګل مے دَ اشنا دَ ځنګړے ګل شهٔ
ویران دِ هزار ځله ګلستان پاتے شی ښهٔ دے

○

۲۶-۱۲-۸۲
مردان
ماسختن اتهٔ بجے

لاړه مې د ستړګو څخه ګېډۍ وهغه څه مې چې څرته دي
زړه کیږه! اوس د نظر و نوحادثې په چرته دي

هر یو همزولي رات ته ذکر کړي د جام او ساقي!
شونډې مې او چې شوې یار! نو میکدې چرته دي

چې هره شپه به د اختر وه، هر ماښام د روژې
اوس انتظار کېنې آشنا! ستا هغه مزې چرته دي

هغه ګل مخي شو کمزار لاړل د دې کلي نه!
وړلې پیر که اوس زړه کیږه! څه رانه چرته دي

اوس که راوکوري څوک بنګلې زړه مې نه پرېږدي
لاړه څو اوني پښتانه زانه هغه! اوس جذبې چرته دي

مردان ۸۲-۱۲-۲۷
(ماښام نهه بجې)

○

هم ما ته څهٔ وائی هم څهٔ نهٔ وائی، دا څهٔ چل دے؟
ځمکه په درزا، درزا مے زړهٔ وائی "دا څهٔ چل دے"

○

هره یو خبره ئے تر اوسه پهٔ خلهٔ کړے ده !!
نن چه ما ته بیا بیا پهٔ لیمهٔ وائی، دا څهٔ چل دے ؟

○

هر چا ته چه گورمه، محفل کښے چُپ وهلی دے
خدائے خبر چه ولے خوک څه نهٔ وائی، دا څهٔ چل دے؟

○

ښو ته مے ملگرو هم رقیب جوړے ښنهٔ نهٔ وئیل
څه زمانه مے بدو ته نن ښهٔ وائی، دا څهٔ چل دے؟

○

خدائیگو ښهٔ خبر دے د هر څهٔ ورته ښهٔ پته ده !
تا ته زاهده هسے بس پهٔ خلهٔ وائی، دا څهٔ چل دے؟

○

مردان ۸۲ — ۱۲ — ۲۸
(ماسختن لس بجے)

○

کوم یو بیان دِ چه خاموشه دَ لیمهٔ نه اُوځي
اشنا یقین اوکړه چه پورې مے دَ زړهٔ نه اُوځي

○

دا چه دَ شک په نظر ګورې اشنا! مینه موده
کښې نو اووایه شکونه نور دَ "خٔه" نه اُوځي

○

په تماشه چه دَ رقیب داسې راتیتېږې اشنا!
ساه په لحظه نیمه کښې چرته دَ هغهٔ نه اوځي

○

دَ مرګ په بیړه به رقیبه! هغوی څه ورو ستوشي
څوک چه ژوندی دَ حارثوله تنارهٔ نه اوځي

○

کاڼي به لاس که درته اودریدل خوازهٔ ملګري
زړهٔ سره! خیر دے دلته بد همیش دَ سینهٔ نه اوځي

○

مردان ۸۳-۱-۴
یونس بچے دَ شپے

ستا و لوړونه دَ کمځو مې ژړولو کښې نه هېرېږي
لذت دَ خوږو چړو په ترخو کښې نۀ هېرېږي

هر څو مره که وَس او کړې نۀ جوختيږي زما شونډې
ملګرو! چه "آشنا" مې په سلګو کښې نۀ هېرېږي

هر څو که راته ذکر په بيا بيا دَ "غمه" او کړې!
ستا بد خو مې رقيبه! په ډېرو سنو کښې نۀ هېرېږي

هر څو مره که تيارۀ راته زندان شي يم خوشحاله!
رڼا دَ "سباوُن" په تورو شپو کښې نۀ هېرېږي

يو تاته به ياد نۀ وي چه مېنځ دِ په وعده وه
زاهد که هر څو مړ دے په زړونو کښې نۀ هېرېږي

(مردان ۸۳-۱-۸)
ماښام يولس بجے

○

خټک په خټک ما سره که ځي، زړا له دهوکې ړاکوي
ملګرو! خپل دي که پردي، زړا له دهوکې ړاکوي

○

بې ځایه ویني مې تویېږي، د ګلونو په نوم
د ژوند په لار د کسبي سپرلي، زړا له دهوکې ړاکوي

○

هره ښکالو ړاته ستا او ښکاري خوږانه شي ته !
دا د ژړیده د خپل زړګي زړا له دهوکې ړاکوي

○

زړه هم ژمانه شه که ستړګې زما خپلې نه وې
په هر قدم خپله ځواني زړا له دهوکې ړاکوي

○

ځوانې ستا نامه خونده چه زړه هره ! واخلم!!
دلته خدا د هر سړي زړا له دهوکې ړاکوي

○

( ۱۰-۱-۸۳ )
مردان ماښتون

د رحم خو خلق خفه کیږي آشنا ګرانه به شي
رنګ د محفل دې پیکه کیږي، آشنا ګرانه به شي

لږ خو را اوګوره تیاره ئے بیا خوږیږي په زړه
دیوه مې لاسو کښې مړه کیږي آشنا ګرانه به شي

محبوبه هر څه دې منم ولې تر کومه پورې!
دروغ دې مړه وعده کیږي آشنا ګرانه به شي

والله سجده دې په درشل را ته آسانه ښکاري
د رقیبانو کعبه کیږي آشنا ګرانه به شي

په ښکاره مخ خبره اوکړه چه زاهد پوهه شي
ورحم هم په زړګو کښې شپه کیږي آشنا ګرانه به شي

(۲۶-۱-۸۳)
مردان نهه بجے ماختن

تا ته کهٔ دې لوبې د وعدو نه جاروتل
ما ته کفر ښکاري د پښتو نه جاروتل

خټک به مې نظر شي ستا له مخه اشنا منع!!
نهٔ ورځي پتنګ له د لمبو نه جاروتل

څوک چه ترونده وینې ستا په شمزنګ کښې د ننګرو
ښکاري ورته مرګ د زولنو نه جاروتل

مرګ هم ستنه نه کړو اشنا نور امتحان څه وي؟
څه رنګه دِ خلق د کوڅو نه جاروتل

چا له هم چه لاسے یو ځل ورکړو د یارئ
ګران وي بیا زاهده ته د هغو نه جاروتل

( ۸۳ - ۱ - ۱۳ )
مردان ، ناسخن

○

مانه که کوږې په شا شا، خو ما ته نه اوډېږې
ځواني هم خوږې لرې د ښکلو چا ته نه اوډېږې

○

نه دې څه نښه د قدم، نه دې څه نوم پاتې شي!
چې په اوچتو سترګو څوک سړا ته نه اوډېږې

○

هره لحظه وعده کوې، خو ځې په بله، بله
ښکاري پښتو دې هم پښتون اشنا ته نه اوډېږې

○

زړګیه! ځان به کړې لاهو په ناپایه دریاب
پردي وطن کښې څوک پردي ځنډا ته نه اوډېږې

○

یا خو زړه دې اکوړله ورشه، یا ترې زړه صبر کړه!
وختونه ځي په خپله لاره تا ته، نه اوډېږې

○

(۱۵ - ۳ - ۸۳)
کراچۍ

○

کومه، بې وخته وژل، څنګه شي؟
ستا قاتل نظر ته کتل، څنګه شي؟

○

څنګه زه ته ولېٔ چه زړهٔ صبر کړه !!
لاس دَ خپل زړهٔ نه دون ویستل څنګه شي؟

○

نن چه شوے رقیب ته مسکے پورے شومه
مَا وے چه بے اوره سیزل څنګه شي؟

○

اوګوره! ابنړو ته مے دَ تلو په وخت
اوښکے به تا رونو ییښل څنګه شي؟

○

تا ته به زاهد کوم یو ستم کړی یاد
اوایه! دَ ستورو شمېرل څنګه شي؟

○

( پېښور ۷-۴-۸۳ )
څلور بجے مازیګر

نکه آسانه چه لمن د ازغو نشی وسے
دا سے نظر مے کاله استاله سبزو نشی وسے

خو دسری غواړی هم زړه غواړی، هم یقین وا عظه
ستا په وعظو نو زړونه خوله خپو نشی وسے

دومره یقین خو به لیبنتون استنا لرم ملګرو!!
که هره لاره باندے ځی له پښتو نشی وسے

پیره هوا مے د سپو لی ورکړه، خوشحاله نه شو
خانه خراب زړه مے جوړ ستاله کوخو نشی وسے

زړه کښے مے هیڅ هم پاتے نشو خو بیا هم زاهده
ما نه کل مخو ته عادت د کتو نشی وسے

(۸۳ - ۲ - ۱۳)
مردان

○

تورې تیارې دي په هر خوا، دَ چا نظر نه لګي
ډیوې په وینو کمې رڼا، دَ چا نظر نه لګي

○

مَا ارمانونه سپیلني کړل ستا دَ سره ټوکي !!
رقیبان ډیر دي چه په تا، دَ چا نظر نه لګي

○

ستا دَ نظر اثر مې هغه شان جوړ سترګو کښې شته
پې مې ډیر دي خوبه مَا دَ چا نظر نه لګي

○

دَ ظلمتونو په لار راغلو ستا دیدن له سترګي
سترګې را واړه اشنا، دَ چا نظر نه لګي

○

خدایه! دا کوم وطن ته راغلو، څنګه شپې ورځې سوځي
شي که ظلمت او که صبا، دَ چا نظر نه لګي

○

انصاف په کومه نامه غواړې اې ساده زړګیه!
زړه چه ترمینځه شي نو بیا دَ چا نظر نه لګي

○

اشنا که وائي نو زه هرته په پټ مخ اووایه
که دیلولر کړو نو بیا، دَ چا نظر نه لګي

○

(۵-۵-۸۳)

مه ئ راځه اشنا ، لاړه ازغنه ده
پیره دَ وفا ، لاړه ازغنه ده



زۀ چه پرې یم ، تلے یو ازغے نیشته!
چاوے دَ صحرا لاره ازغنه ده



تا راته هم تیغ کمرک بانړۀ مینه کښې
هسے خو هم دا لاره ازغنه ده



کوره! دا رقیب ، الزام ، جفا ، کانړي
خو مره اشناستا ، لاره ازغنه ده



ته خو پرے ورځے زاهده! سوچ او کړه
پیره دَ "ریبنتیا" لاره ازغنه ده



(۹ - ۵ - ۸۳)
مردان

سزا ته چه څوک ګوري او تعزیر ته چه څوک ګوري
په نیمه لار کښې پاتې شي تقدیر ته چه څوک ګوري

○

د ژوندون چه فراړه خوشبوي اوسي خوبستان کښې
خوبونه هغوی نه وینې تعبیر ته چه څوک ګوري

○

هر څوک که د څوک عشق په خونړي نظر او نه کړي
قاتل به ورښکاره شي ستا تصویر ته چه څوک ګوري

○

ملګرو چه تخریب نه وي تعمیر به څنګه وشي!
تخریب ته به بد نه ګوري تعمیر ته چه څوک ګوري

○

لیونو سے خونړا هم دلته په دار نه شو یارانو!
مقتل پله ور غلي دے ضمیر ته چه څوک ګوري

○

(۲۵-۵-۸۳)
مردان

راځه زړګه مړاتلۍ دی دا مړاتلۍ به دِ ما مړ کړي
اشنا په انتظار کښې سوزیدۀ به دِ ما مړ کړي

○

اشنا شونډې دِ واړۀ زندګی دۀ خوب د ګلو !!
او به دې پرې زړۀ نۀ څکی تیغ بازړه به د ما مړ کړي

○

ترخې ترخې خبرې دِ اورې شم سروقده !!
رقیب پانه خواګه کاته به دِ ما مړ کړي

○

خبره پوه اوکړه چه مې زړۀ ستي په قلاره !!
اشنا! تلۀ په تبله ۲ و نمرخانۀ به د ما مړ کړي

○

منم چه په ملنه به ځې مونږ کیږی ګل رنګه!
بیا هم دغه زاهد ته موسیدۀ به دِ ما مړ کړي

○

(۱۵-۶-۸۳)
مردان

(CONFUSION) ○

# "کنفیوژن"

○

زړهٔ چه ملګرو چرته اووینهٔ
نیم ځائے بښځه یا سمے چرته کیږي
یوشیبه هلته کیږي او دریږمهٔ
زړهٔ په فکرونو کیږي غرق
زړهٔ په سوچونو کیږي غرق

○

د اسمانونو خاوند
د عزتونو خاوند
د ذلتونو خاوند
د جنتونو خاوند
زما نه پلار واغستو
زما نه مور واغسته
یعني بے وخته غوند...
خو په بدل کیږي د څه ؟
بس خو جنت به راکړي
د مور قیمت به راکړ...

○

زړهٔ په جنت څه کوم ؟
زړهٔ په قیمت څه کوم ؟

○

(۱۲-۷-۸۳)
مردان

زړۀ مې د یو ښکلي یو نظر ته حواله کړو
ژوند مې ناپایاوه سمندر ته حواله کړو

○

پوهه شه اعتبار کښې د منزل لاره لاهو شوې
ځان که دې په لاره کښې رهبر ته حواله کړو

○

پوهه په معنیٰ د لذتونو شوم مکمل رنګه!
تا چې خپل نظر زما نظر ته حواله کړو

○

اوس په کومه خلهٔ باندې ګیلې کوې زاهده
زړۀ دې چې په زوره ستمګر ته حواله کړو

○

(۸-۸-۸۳)
مردان

○

تا ته د چا مخکښې خه وئیل هم تماشه شی
غلے د محفل کښې اوسیدل هم تماشه شی

○

زړهٔ د رقیب لوے شو چه دِ غږ ورته اوکړو
دلته کښې خاموش پاتے کیدل هم تماشه شی

○

هر قدم گناه، هره خبره ئے پیغور دی !!
ژړند په غریبئ کښې تیرول هم تماشه شی

○

یا به خلهٔ گنډے یا به په لاره د حسین ځے !!
نن صبا خو شپے ته شپه وئیل هم تماشه شی

○

هر یو نظر ما پله زړه اوړی کړے هسے قدم !!
تا سره په لار کښې اوګرځیدل هم تماشه شی

○

زړهٔ په انکارونو ستړے وو مګر ! د جبر !!
ما ته دِ والله چه هیرول هم تماشه شی

○

هر سړے زاهد ته کوته نیسی چه ګمراه دے
دلته کښې په نیغه لاره تلل هم تماشه شی

○

(۱۱ - ۸ - ۸۳)
مردان

هر څو که مې هیڅ ته تمهید ې نشي نظر
راځه چل دې چه تا ته اوړېدے نشي نظر

مئین چه د رڼا وی تر منزله ځي، بې یرې
دا ځاے چه تیاره کښې ټکیدے نشي نظر

اشنا په عمر بس چه مې تپوس اوکړو د حال
والله چه مې ککو کښې ټینګیدے نشي نظر

اشنا! جوړې ځوانۍ د په شا ځي را معلومیږي!
بې واره د محفل کښې موسیدے نشي نظر

تراهٔ ته! تا خونه منهٔ کشش د نظر و نو!
اوس وے دِ له ځایه خوځیدے نشي نظر

(مردان ۸۳-۹-۲۰)
د لوئے اختر ورځ

○

کړو که دشمني که اشنائي، خبرې خله کړې
ستا او زما مينځ کښې دا پردې، خبرې خله کړې

○

هيڅ رشته مونږ نيشته دا منم، خو چې ما اُوئيې
وايه! اننګو کښې دِ سُرخۍ، خبرې خله کړې

○

راغې که په پښتنې له رقيب خو ستا ځوانۍ ستائي!
ما ټکې په پرهار مې دُوړوې، خبرې خله کړې

○

وايه رقيبانو ته "چې هر څهٔ راځي مينه کښې"
لاس يې آزاد دا وسه څهٔ چې کړې، خبرې خله کړې

○

لا به دِ شي زاهد چې خپله اويني دَ ګل حشر
ما ته په خزان کښې دَ سپرلي، خبرې خله کړې

○

۲۵-۹-۸۲
مردان

مینه کوی، مېڼې د زړونو قتل چرته وینې
بې ستا له مخه د خوبونو قتل چرته وینې

ستا لاس ته ګوري چه د کیسونو، زما په اوګه
یاران زما د حسرتونو قتل چرته وینې

یوې پېچې د سیرلي یو پل د عمرونو په خوب
د چمن خلق د ګلونو قتل چرته وینې

سترګې نا پوهه بیا هم ستا په لور کړې شي چه ځې
ستا په نظر د نظرونو قتل چرته وینې

ځکه خو هر وخت د ژړا تلو ورته زاهده! وائي
بې لوظه یار د لوظونو قتل چرته وینې

(۲۸-۹-۸۳)
مردان - مازیګر

زما او د جانان په مینځ کښې ډېره فاصله ده
د زړه او د ارمان په مینځ کښې ډېره فاصله ده

○

رقیب! بې موقعې دِ وار خطا شئ په محفل کښې
د لاس او د ګریوان په مینځ کښې ډېره فاصله ده

○

یو زړے د ژوندون دے بل د مرګ دے اشنا یا نو
د ګور او شبستان په مینځ کښې ډېره فاصله ده

○

زړګیه! ښار کښې او سې لیونتوب دِ لا کچه دے
د ښار او بیابان په مینځ کښې ډېره فاصله ده

○

زاهده! تا ئې حُسن دِ لیدلے، غصّه نه ده
د کور او د زندان په مینځ کښې ډېره فاصله ده

○

(٦-١٠-٨٣)
مردان

خپلو پرے ایښې وه پرَدوے هم لمن پرېښودہ
دَ کاڼو خیر دے خو ازغو مے هم لمن پرېښودہ

○

ستانه به څهٔ شمه خفه، ستانه به څهٔ گیله کړم!
چه مے پرے ناز کوؤ هغو مے هم لمن پرېښودہ

○

تنګ کېښے ولاړ وے دَ رقیب خواله نزدے درغلم
دا څه چل اوشو چه ښتو مے هم لمن پرېښودہ

○

دَا دِ کشش وهٔ دَ نظر، که مے شدّت دَ تندے
خالی کاسه ته چه ژوبو، مے هم لمن پرېښودہ

○

څو مره سنگینه شان سزا، زاهده! وخت راکوی
چه یئے دَ لیدلو تلوسو، مے هم لمن پرېښودہ

○

(۸۳-۱۰-۱۵)
مردان

وې وئيل "زاهده! وايه څهٔ پسې خفه يې"
بيرته دې زړهٔ واخله کهٔ په زړهٔ پسې خفه يې

○

ياد به دې زړګيه! يو اشنا نهٔ کړي دا واوره!
تهٔ کله هغهٔ کله په دهٔ پسې خفه يې

○

او مې وې رښتيا درته اشنا ترې دې داوې!
ښکاري د رقيب په خوږهٔ خلهٔ پسې خفه يې

○

ستا په يو خواښې هم پوهه نشو مه زړګيه!
چا چې دې ژوند خاوره کهٔ هغهٔ پسې خفه يې

○

ښکاري چې په عشق کښې تاوان نهٔ منې زاهده!
کله چې په زړهٔ کله ليمهٔ پسې خفه يې

○

(۱-۱۱-۸۳)
مردان

دېر که څوک سینه کښې زړهٔ اوده پرېږدي
چرته یې قرار ته ستا بانړهٔ پرېږدي

تا سې کهٔ زړهٔ مات کړو خو بیا هم زړاغلم
خپله کوڅه چرته کښې وا ړمه پرېږدي

زړهٔ! د لویو خلقو د زړله مه وړخه!
یا به څوک پرېږدی او یا به نهٔ پرېږدي

لاړ یې زړهٔ څوانۍ خو کتل نیغ کوی
چرته یار خویونه پښتانهٔ پرېږدي

تندهٔ د د شونډو میڅ ړوند کړي سم
منډې وهي او ربیله او بهٔ پرېږدي

ستا یې که قدم په مزکه اولېدو!
زړکې به اشنا ورته خپل تلهٔ پرېږدي

هرڅاته خبره څه به په مخ کوي
خوا کښې به زړا هډه! تا څوک څهٔ پرېږدي

١٣-١-٨٣
مردان

تا که هر څو لمن را نیسه، تا که هر څو نفرت او کړمه
خو اشنا ستا د مینې، هر نظر محبت او کړمه

○

چه پښتو راغله تر لیمه، شوه د عمر تنده پاتې!
لاس مې لا نه ؤ رسه کاسے له، ساقي ډېر هم که ستت او کړمه

○

اشنا لا نه ؤ پېژل که ډېره، ما لمنه ستا وهله!!
ستا نه ستا د چم ګردونه ښه دي، ما سره ئې نیت او کړمه

○

او ریدلے مې وو خلق، په صفت ډېر خوشحالیږي
سره لمبه شوه د غصې نه، نن ئې ما چه صفت او کړو

○

چه غزل ئې زما واورید، ما ته ئې او کتل مسکے شو
دا ئې هم زما هسې مینه، دا ئې هم عنایت او کړو

○

(۳۱-۱۲-۸۳)
مردان بجلی گهر

○

اشنا که دِ وعده چرې وعده نهٔ پالنې کېږي
بيا هم دَ مينې زړهٔ کښې دِ ګيله نهٔ پالنې کېږي

○

رقيب سره چې راځې له محفله بې سلامه،
اشنا! زړهٔ به مې اوايه خفه نهٔ پالنې کېږي؟

○

په زړهٔ کښې مې بې شميره وې خوټه چې پټوس اوکړې
په شونډو مې خبره بيا پروت نهٔ پالنې کېږي

○

له ورته چې اُوځې لو په شپه اوګوره محفل ته
اشنا وِربسې مړې ګورې د پروه نهٔ پالنې کېږي

○

آخر به په وطن کښې "سحر" اوينو نژاهد!!
دَ اشپه خوبه ترڅو پورې شپه نهٔ پالنې کېږي

○

(٦-١-٨٢)

پېښور د شپې نهه بجې

○

اشنا چه مې زخمونه ستا ښوو ته په خندا شو
ګلونه بې اختیاره نن ، زغو ته په خندا شو

○

پې مخې که چمن کښې پسرلو ته په خندا شو
صحرا کښې لیونی هم بربوکو ته په خندا شو

○

زړې د تصور مې په ټوپونو دی ګلې رنګه
داغونه د ځیګر مې ستا زړتاتو ته په خندا شو

○

اشنا که دِ ځان پټ کړ په جلوو کښې د تخیل حسن
خاپونه د قدم دِ لیونو ته په خندا شو

○

اشنا چرته کتې سنګې رقیبان او چتې سترګې
مینځ چه دِ د زلفو زولنو ته په خندا شو

○

نا ساپه دِ چه سترګې کړې زړا پورته نشه ورې
محفل کښې پیشګان تتو ډیوو ته په خندا شو

○

تیارې خورې شویدې د ژوند په رونې سحر
نا ځه ده ! څوک چه دلته رنګینو ته په خندا شو

○

ستا یادونه مې په ذهن زما خواره شو
چې منکری د محفل نه په واسته شو

○

ستا د زلفو نه چې اوتل جنت ته!
ګمراهان شو کافران شو هم سپیره شو

○

بیا د ژوند په ارمان نه یاسی یارانو!
د اشنا په دغه مهو ستوګو چې مهره شو

○

جام نې ښونږو ته نږدې لاس کښې شو پاتې
د هودو تېزی ساقی ته په کاته شو

○

ستم دا دې چې د لاس زلفو له نه ځي
په تنور کښې د حالاتو کښې وراته شو

○

خوب چې نه راتلو د غمه، ستوري تنګ شو
رڼې یو بل ته ویل ځې چې ودې شو

○

دلته ژوند تېرول ګرانه دي زاهده!
هره لار کښې چې یاران سره خواره شو

○

(۶-۸-۶۶)
"بانګ حرم پیښور"

یو څو نظم ویونکی "غزل خوان"[۱] ته لارے نیسی
خسنړو ته خیال وکړه چه طوفان ته لارے نیسی

ویټ نام، الجزائر او که کشمیر دے اشنایانو
وختونه به هر موړ کښې نن انسان ته لارے نیسی

ترڅو چه مُنکرتیا ورسره او نشی دَعشق
بے ځایه دِ دا حُسن هسے ځان ته لارے نیسی

اشنا به عمر بس ورته هُم/ نیغ نشم کتلے
حیا - او بنکے - پښتو نه ما ارمان ته لارے نیسی

سپرلے - کاسے - بے مخی - او وریځے هم ځوانی
واعظه! زړه دِ ټینګ کړه ستا ایمان ته لارے نیسی

اشنا! ستا تمنا به مے ترعمره وی به زړه کښې
هر څومره که یادونه دِ هجران ته لارے نیسی

تندی چه دَ یارانو ورته بنسه ندی نړ هڅه
رؤف دَ بنا ریږے نه بیابان ته لارے نیسی

(۶-۱۰-۶۶)

"بانګ حرم پیښور"



۱ وضاحت به صفحه ۵

ویت نام - کشمیر کښې الامان قتل
په هر یو ګام شهٔ دَ انسان قتل

خوَرے مے پیتے کړے په زلفو دَ مخ!
کوی ورپیخ دَ کهکشان قتل

خدائے دِ زنګ روک کړی دَ سپرلی دَ جشن
وی هر قدم دَ ګلستان قتل

ګل ئے کړو ګوتو کښې رېږې وے ویښل
"دومره دے ستا راته انسان قتل"

سحر خبر هم و له اوشکو نهٔ شی
دَ شپې چه کیږی دَ ارمان قتل

پریشانے زلفے، تیغ بانړهٔ، برهنډ کتل
درته دی توبے په ایمان قتل

زاهده! غلے شه زما که منے
کړی په خبرو چه یاران قتل

"یانګ حرم بیسنوری"
(۲۶-۱۱-۷۶)

○

یارانو د محفل هر شرابي زخمي زخمي دے
بنئ زخمي زخمي دي چه ساقي زخمي زخمي دے

○

یا ډونه د چمن ئے دي لا هغسے په زړه کښې
بلبل چه ویرانئ له ځي راځي زخمي زخمي دے

○

رندانو چه واعظ ته څه او نهٔ وایئ نشه کښې!
دے ذکر له د نهٔ څکلو کوي زخمي زخمي دے

○

نظر کښې دے انځې دي لږ کاته کوه په فکر!
هر څوک چه په کوڅه باند ستا ځي زخمي زخمي دے

○

ملګرو! چه زاهد ته د سپرلي ذکر او نهٔ کړے
پیاله چه وي بنه دي ټول زخمي زخمي زخمي دے

○

(۲۳-۲-۶۷)

په بې خودۍ کښې چې تر زلفو د ښکار تلے یم
که په دار شوے نه یم خوا له خود دار تلے یم

---

ما په کښې رنګ چې ستا د شونډو د مسکا ونه لید
هم د ګلونو په ګنار هم د بهار تلے یم

---

د ازغو خوب دے د ګل مخو په وعدو بهروسه
اشنا په عشق کښې په کوڅه د انتظار تلے یم

---

چې ستا د سترګو ارمانونه مې په زړهٔ وریدل
میخوار خو نهٔ وم - میخانې ته یو بیمار تلے یم

---

زما سرښته یو څو ګلونه د جفا او ستم
ستا محبت کښې زړهٔ د مینې په ګلزار تلے یم

---

رنګ مې د مینې لا تر اوسه هغه خاوره کښې نښته
ستا په لټون کښې چې اشنا په کومه لار تلے یم

---

چې مې په زړهٔ کښې وه سودا ستا د مئے رنګو سترګو
د زاهدانو له محفله ګنهګار تلے یم
(۱۲-۸-۶۷)

مزاج چه دَ ګل رنګو ستمونه بدلوی
پخپله به زخمونه خپل دردونه بدلوی

محفل کښې دِ اشنا چه مخ رنګونه بدلوی
خبر وله ملنګری خود سرونه بدلوی

دا خندکه زما مینې ته اشنا شولے محتاجه
چونکه مرے سره هم څوک محلونه بدلوی

قیصه هغه دَ ګل او دَ بلبل دهٔ چه ویړی
عالم ورله دوه رنګه تش نومونه بدلوی

اشنا که دِ غرور ونهٔ کړو ګیله مے درته نشی
سیلاب ددے وختونو فطرتونه بدلوی

ستا مینے په زړهٔ کښې رنړیدے نشی همدمه
عالم دِ زما سترګو له سیمونه بدلوی

زاهد دے چه بے واره جام په جام پسے رانیسی
ساقی دے چه بس واره په واره جامونه بدلوی

(۱۶-۳-۶۶)
(رسوائے)

نظم

# انتظار

په اسمان ورېځ خوره ده غلې غلې باد چلېږي
اورکې خپلو همزولو کښې پاتېږي را پټېږي
کله کله یو نیم څاڅکی څکے خکته راشی تماشے له
د اسمان چه ورته پام شی له وېرې تهرېږي او کړېږي



کله کله واړه ستوري د ورېځو نه ښکاره شي
او چه ورته خیال شي نو ځان پټ کړي شرمنده شي
سپوږمۍ هم داسے را ښکاره شي لکه ناوے لوپټه کښے
بیرته مخ پټ کړي ورېځ کښے جوړے ځان سره کچه شي



چرته غږ د عالم نیشته خاموشي ده په فضا کښے
ګمیدړان چغے شروع کړي ناساپي د سیوغیا کښے
داسے خوږ آواز پیدا شي چه د زړه تار په لغزو شي
غږ وی لکه شپېلۍ څوک چرته لرے د غره څوا کښے



د ګودر د غاړے ونے شرابیا نو شان ځنګېږي

د وحدت په میو مستې بس غورځېږي را غورځېږي
کنار وله پېچې راشي، ورنه غلی بوسه واخلي
بېرته او تښتي په بېړه، د ډېرم کړم نه یرېږي



د اُبو د تلو آواز نه داسې ښکلې ساز پیدا شي
چې فضا له ډېره جوشه د ږهره سر په ګډا شي
کاږ د سترګو کږې نکړي، په هر لور تیاره خوره ده
خو سرګند شي هرڅه ښیله، په آسمان کښې چې برېښنا شي



د ږیو بنګې وړې خوا کښې څوک ولاړ دې ناقراره
لکه ستړې وي را غلې د آشنا له انتظاره



(۶۲-۳-۸)

"اباسین کراچۍ"
"ښرونډ او فن"
مرتب اجمل خټک

تصور ته چه مې راغله دَ غمونو کاروانونه!
شو را یاد را ته بې ډېره! دَ ډېرو ونو کاروانونه

مَا دَ خيال لارې مې نږدې کړې په نږدې ستا دَ يادونو !!
اوس بې فکره دِ پرې یون کړي، دَ فکرونو کاروانونه،

وارخطا دَ رخسار خيال شو، چه عادت دَ تیارو نه وه
که دَ زلفو په لار درومي په نرکونو کاروانونه

ستا غمونه دِ خدای بچ کړي، دَ دوران له شکمارانو
په دې لارو کښې شو کېږي له عمرونو کاروانونه

ښارې ستا دَ خيالونو به خود شاهې شي زاهده
تله چه کړې په بله بله دَ يادونو کاروانونه،

( ١٨ - ١ - ٦٨ )

په ناپایا وه سمندر کښې د فکرونو ډوبه
د وطن ناوې مې حیرانه آیینې ته ګوري
په اننتو شوندو کښې یې ناسا په حرکت پیدا شوه
سترګې یې پورته کړې لاسونه یې کړل آسمان ته وچت
سرې سرتور کړو په ارمان ارمان یې وښکې تویې کړې
راسې د ځان سره ګویا شوه زمانې ته ګوري

○

د خپل وطن په رندا سره کښې مې قسمت نیشته دې
پر دې راغلې ژاله په سترګو کښې په زور اچوي
پر دې شانه دږه چې مې زلفې په حسرت خوروي
په ځائې د ګلو په اور بل کښې ژاله اور اچوي

○

د بل نکریزو ژاله وسیزل ستلی د لاسو
پر دې چیرانګه لوپټه مې په اور بل پرته ده
که ته به یې خپله ده ځلمی پرې ماسته ټیلې لښتی
هره خبره یې په زړه کښې چې د بل پرته ده

○

پردې تهذیب ورله د عقل چراغونه ګل کړه -!

زیږدو نسلونو به رڼا پسې ځانونه وژني
د خپل تهذیب او ثقافت له رڼا نه اړوي !
په مادیت "باندې مئین شو چې بروخونه وژني

○

زړه ور د وخت مې د غریب په نوم جهان لوټ کوي
د شیش محل نه همیش کوري د جونګړو په لور
چغې وهي چې د مزدور د پاره حق غواړو مونږ
که وس یې رسي سوځوي ور له کوډونه په اور

○

زه زلیخا ور پسې وینمه د ارمان تږې توږم
زما یوسف میله کښې ګرځي زما تن خرڅوي
خدایا ړندے مې کړے داسترګې چې پرې هیڅ نه وینم
شو سوداګر مې ادیبان کور وطن خرڅوي
خوشحال خوله د وطن ناوے را بیداره شوله

○

کمزوری لاس مې په نغر را خکل چې عصمت غواړمه
سر بلندي د وطن غواړمه عظمت غواړمه
خپل نظر غواړم ، تهذیب غواړم ثقافت غواړمه
نه هیڅ هم نه را کوے خدایه نو قیامت غواړمه

(۱۰-۲-۰۶۸)

○

که د زړه نه کېږي خفه زړه ونو ته ډیوے بلے کړه
د سپېلي ورځے دې گلونو ته ډیوے بلے کړه

○

چه دوه مېئن یکېښے ډیو بلېږي کې همېش
د شروندون دغو کږ لېچونو ته ډیوے بلے کړه

○

ستا مینه یخه، زړونو نه هم گرمي نه لري
په زړه وستړگو مزارونو ته ډیوے بلے کړه

○

چه ستا د ژغو په لار نه ځي د شروندون ناوے له
دغو فکرونو نظرونو ته ډیوے بلے کړه

○

مونږ ته د سپوږمۍ لاندې یو بل ته گیلے کړیدي
زاړه! دے پریوتو دیوالونو ته ډیوے بلے کړه

○

توږے تیاره دې ستا کوڅه چرته غلطه نه کړي
په هر قدم کېښے قدمونو ته ډیوے بلے کړه

○

خیر که د عقل ته زړه هغه یاران کوتے نیسي
ته د وختونو طوفانونو ته ډیوے بلے کړے

(۲۴-۳-۶۸)

چه نړۍ دې شمه یشي ترې د تکل په اور کښې سوزم
فاصلې د شوونه اوښه ډیبرې د منزل په اور کښې سوزم

خدایه هر وخت مې زړه ټپي، هر قدم مې امتحان دے
څه د تنګ دنیا کښې اوسم، څه د چل په اور کښې سوزم

څه بې مانے خلق اوسي ستا په چم کښې سړو تړه!
ستا د در ته مې زه کاږې د منزل په اور کښې سوزم

سترګې امیدي بل لور ته، جام چه نه راسي ماله
د ساقیانو قصور نه دے د ازل په اور کښې سوزم

ژبه پرې بنده ده زاهده! چې د زړه خبرې نکړي
زړه خو تنګ شومه تر څو به د غزل په اور کښې سوزم

(۶-۷-۶۸)

○

د نمر خواته شوې راوچتې په قبله کړنې شوې
زما ورېځې د تقدیر خفه کړنې شوې

○

شاته دې اوکتل چه زړه کښې دِ سودا وه زما
منګی په سر چه دِ ځمزولې په کوڅه کړنې شوې

○

اوس به د چا لمسون رانیسې اوس به چا ته ژاړې
د یار خبرې چه زړګیه هم پوره کړنې شوې

○

دا میخانه ده احترام کوړې کوه د میو
دلته کښې ډېرې خلې واعظه په توبه کړنې شوې

○

په هغه خلقو به زاهده! څوک څه فخر اوکړي
چه قافلې یې د فکرونو په قبله کړنې شوې

○

(پېښور) ١٦-٣-٦٩

په زړونو پابندي دہ، په خیالونو پابندي دہ
وخت ایښې د هر چا په ارمانونو پابندي دہ

غنچونه د خیالونو په زرغون سټي یارانو!
چمن کښې د بچوانه په ګلونه پابندي دہ

"په چپه خله به خود تګه د بوني هسکو پایو"
یارانو چه په ذکر د زخمونو پابندي دہ

ګریوان زما د مینې تر ملي پورې لاړو!
محفل کښې د یارانو په لاسونو پابندي دہ

شیشې د ستمګر ته چه خطره د خپیدو دہ
ساقي ستا میخانه کښې په آهونو پابندي دہ

(۱)

"مینې له به خندا بوني د زلفو اوربسي زندان ته"
په لارو کښې د شوند چه په بادونو پابندي دہ

زاهده! غزل وایه ولې ښنه به درله ښتي
محفل کښې په خبره چه د زړونو پابندي دہ

(مردان)

دا څه ظالمے سترګے دي ستا څه ظالم نظر دے
دنیا کښې دِ دَ زړونو چه جوړ کړے یو محشر دے

ارضان دَ زمانے په واکدارانو کښې اوس کوم دے؟
څوک لامبي په شرابو کښې او چا ته پوړے ور دے

ملن مو خیرے خیرے په ګریوان کښې مو تار نشته
دا یو زمونږ شبقدر دے دا بل زمونږ اختر دے

مونږ هیڅ هم په خوبونو دَ زړونو پوهے نشو اشنایانو
هر ګام باندے قیامت دے په هر ګام باندے محشر دے

چا زړه چه په خلقه کښې مونږ له راکړه زړه سینه کښې
هم هغه زمونږ مشر دے هم هغه مونږ رهبر دے

دا څه په ګډي خیاله زمانه کښې مونږ اوسیږو
وړه دولت ابراهیم چه پروت نن ګوره آزر دے

(ع)
زاهده څوک چه غم کښې دَ تام ګرځي نو سپیره شته
څوک وینے چه په لیمو لیمو څکي نو بختور دے

(۱۲-۱۰-۷۲)

وینې دَ زړهٔ څڅکو دَ مینو زړونو چم کښې څه کوُو
موُنږ غریبانان یوُ دَ خانانو چم کښې څه کوُو

○

"ما ویٔیل سپرلی ته چه بے کوره خلقو غوښتے یے
وے ویٔیل" وے څهٔ! دَ دوزخیانو چم کښې څه کوُو

○

موُنږ دَ سحرونو قافله یو نوُر دے کمیده!!
اوس دَ تورو شپو دَ مجنونانو چم کښې څه کوُو

○

څهٔ چه څوُ زړګیه ستا دَ مینے جواب نیشته دے
نور دَ دے بے مخو قاتلانو چم کښې څه کوُو

○

دا خو مے رؤف ته دَ زاهد دَ مرګ خبره کړه
موُنږ خو ګنهګار دَ زاهدانو چم کښې څه کوُو

○ (۱۱-۱۲-۷۸)

○

دلته د هر چا مجبوري ده سره خهٔ او وائی
کښی دا ثروند خو تیز ندی ده سره خهٔ او وائی

○

واعظ هم هغه زاته نه وائی چه خپله ئې کوی
هر څه کښی دلته بې ایمانی ده سره خهٔ او وائی

○

ځل د خبرو مونږ دنیا ته دے اشنا خود ے
ستا به کو څه کښی پابندی ده سره خهٔ او وائی

○

خیر دے که تا زاته محفل کښی نن خبرے او کړے
دلته نن جرم غریبی ده سره خهٔ او وائی

○

زاهده زه یوازے نه یم چه به غم نه کوم
ستا نه کیله د هر سری ده سره خهٔ او وائی

○

(فروری ۱۹۷۹ء) مردان

وای خطا وای خطا ولې؟ د مقتل خوا کښې رقیب دے
چه پرون ئې خندا کړله، هم هغه ئې نن نصیب دے

ستا محفل ته به څه درشم ستا به څه پوښتنه او کړم
سرو قدو ستا د لاسه هر خوا ئې هم په صلیب دے

رقیبانو ئې کړل راجمع، وې چه اوس دعا ګاري ده
د زړونو به مسیحا دے د زخمونو به طبیب دے

د دنیا و حکمرانو کښې د رڼا خبره مرګ دے
هم هغه دلته په دار دے د رڼا چه څوک نقیب دے

(۱۲-۸-۸۰)

○

دَ ښار ته په اور کښې که یارانو سوزیدم خو تلمه
شوق دَ منزل چه مې ژوندې وو غورځیدم خو تلمه

○

چه دَ وطن مینه مې زړه کښې وه نو پاتې نه شوم
ځکه دَ زلفو په تیارو کښې ورکیدم خو تلمه

○

په ناسته چې ته ژوندي دَ غلامۍ لړ کیږي
زړه هم په اور کښې ځکه ستاسو سوزیدم خو تلمه

○

چه دَ منزل په مینه مست وې نو اودیږی کله
ځکه : ما شوم که غورځیدم، که پاسیدم، خو تلمه

○

زاهده ما سره چې غم دَ خپل زړپلي قام وه
ځکه دَ غلو به دَ ښکاکلو نه ویریدم، خو تلمه

○

(۲۳-۹-۷۳)

د شپو مینځ کړه ماتم دے د سحر دلاسه
د رقیب زړهٔ قلم قلم دے د سحر دلاسه

د عمر تېرې هم اشنا شو واکداران د میو
رنړا رنړا نن هر یو چم دے د سحر دلاسه

اشنا محفل ته به بلنه، بے استاذی را غے
په هر یو لوری کرم کرم دے د سحر دلاسه

پېښے تو سیږ شوے ویښے هم د لارے سحر ته راغلے
نن هر یو دیر حرم حرم دے د سحر دلاسه

زاهده خدائیګو که یقین مے شی په د خبره
چه عالمګیر مے خوار قلم دے د سحر دلاسه

(یکم جنوری ۱۹۸۱ء)

کراچی

چې لوے خلق همیش ستائي، هر محفل کښې غزل خوان يې
يو پټوس کړوم زاهده! ته د کوم يو کلي خان يې !

○

ستا ياري د صراط پل دے، چرته دار چرته کښې زهر
يو هغو ته ده آسانه، چې په کومو خلقو ګران يې

○

زړه دې ډير کړم ناقراره، زړه دې ډير زخمي زخمي کړم
که څما د زړه قرار يې، که څما د زړه درمان يې

○

ما په تا پيژني خلق، ته په ما ياديږې کمله!!
زه په تا باندې آباد يم، ته په ما باندې ودان يې

○

خود کافر به درته وايي، د چمن خلق زاهده
چې ښڅه نه لګي په خلقو، د ځغې سېرلي خواهان يې

○

(۸۱-۲-۱) پېښور

○

نفرت اوکړه اشنا که محبت اوکړه اشنا
حیوان یمه چه تا سره کوم پت اوکړه اشنا

○

ریښتیا که موګرېوان ته لاس رسیږي د رقیب
بیا خیږه انتظار به تر قیامت اوکړه اشنا

○

ته خو به ستمونه په مونږ کیږي د سماج
راځه چه دواړه پاسو بغاوت اوکړو اشنا

○

ستا نه ګټه به خوارو زارو یقین نه دے چه شي نرم
کني مونږ به ټول عمر عبادت اوکړو اشنا

○

زاهد هم ډیر هوښیار دے په آسانه به یې وانه خلي
محفل کښې که د ښکلو ورته ډیر ست اوکړو اشنا

○ (۲۷-۵-۸۱)

# قطعات

څوک په يو کوټ څوک په کاسه رضا کړې
څوک په سالمه ميخانه رضا کړې
ساقي! ضدي نه يمے يوه نه منې
دے به په کومه طريقه رضا کړې

(۱۸-۱۲-۸۲)



چا که لاهو کړه په اوبو - پښتو
مونږ ه خوځاے کړه په لميو پښتو
چا چه کړے ماتې په پښتو کښې پښتنې
هغوی ژوندۍ کړه په صدو پښتو

(۱۵-۱۱-۸۹)

ا

دَ کال ۱۹۶۵ء نه تر کال ۱۹۶۴ء
پورے
دَ منتخبو غزلو مجموعه



○ عبدالرؤف زاهد

○ مجله صاحب زاده کان
شمسی روډ
مردان

# زړانۍ

زۀ د کرانو لوستونکو مننه کوم ـ چه هغوئ زما د ړومبنی کتاب "پرخه" قدر اوکړو ـ پکار وو ـ چه ما مخکښې د "حادثے" چهاپ کړے وے ـ وُلے د ځنے خواخوږو غوښتنه وه چه مخکښې "پرخه" چهاپ کړم ـ

زۀ د کرانو مشرانو لوئے لیکوال راهی صاحب د ویناء مطابق لکه د کرانو سائل د "تقدیم و تاخیر" ښکار شوے نۀ یم ـ دا زما مجبوری وه ـ نو د کرانو لوستونکو نه بخښنه غواړم چه هغوی به زما د اکتاب "حادثے" ړومبنے اوګنړی او "پرخه" دویم ـ ـ ـ ـ ـ ډیره مننه

هغے که د رستم شاه صیب او د لطیف (مرحوم) صیب شکریه ادانۀ کړم نو دا به زیاتے وی ځکه چه هغوئ د دے کتاب د رونق سبب دی ـ

( زاهد




د خپلے مرحومے مور

په نوم

چه ماته ئے پښتو

په هره معنے کښے

ښودلے وه ۔

(زاهد)

# د موندو د رکونه

○

یونیورسٹی بک ایجنسی پیښور

○

مکتبه سرحد پیښور

○

شمع بک ایجنسی بنک روډ مردان

○

د چهاپ کال: ـــــــــــ ۱۹۹۰ء

○

قیمت: ـــــــ ۲۵ روپئ

○

د چهاپ ځائ: ـــــــ انعام پریس مردان

کتابت: ـــــــ ماسټر رستم شاه

ډېرې پېښېږي دَ نظر حادثې
چې ته هېرېږې د نظر حادثې

کتل په پرده نه لږ دے سينه کښې
راته يادېږي دَ نظر حادثې

ستم هېرېږي حادثې د ژوندون
کله هېرېږي دَ نظر حادثې

راته شي مخکښې کله کله آشنا
کله نه هېرېږي دَ نظر حادثې

زاهده! سترګې دې په وا کښې ساته
دلته پېښېږي د نظر حادثې

مُسکا دې پټه کړه د نړۍ نڅوونه مه ولېږوه
بیا مې په خیال کښې د ماضۍ خیادونه مه ولېږوه

پرېده چې زُلفې دې په مخ باندې خورې وي داسې
د کچه خوږ به مې اشنا خوبونه مه ولېږوه

د خدائے د یاره د مطربه! دا نغمې غلې کړه
هسې زخمونو کښې مې بیا درد نه مه ولېږوه

ستا دې قسم وي د بڼو ولاړ نه چې اوښکې کوې
بیا مې په خوب باندې اوده غمونه مه ولېږوه

څه په ستنه شنه د ښایسته نو چې څنې داسې ښېږدې
سپیڅلې! مونږ لا مې تنکي ګلونه مه ولېږوه

اشنا تاروونه د زړه چیړې وې مړاوې په ښې
کړه نه کېږي د ګیلو سازونه مه ولېږوه

ناهدې! مونږ کو د پوښتنه د "حق" ښه به وي دا
د خیال د دُنیا کښې مې اوده یادونه مه ولېږوه

هوا دے چرته ستړکو کښې خته نهٔ شی
ستړکې دَ عالمو درکېږے نهٔ شی

ساه دَ امیده نو به یم او خیرت ی
هیرے دِ اشنا چرته وعدے نهٔ شی

چرې دَ خیاله مهٔ ځانده اشنا کوړے
دا ما شوے شو منهٔ سے دِ لحبے نهٔ شی

چرې یم په دے ستړکو آشنا بندې کړے
ستړکې د دُنیا دِ درپېے نهٔ شی

کله کله یېنه پړ سے کوه آشنا
دا خوا زه غمونه بے اسرے نهٔ شی

ستړکو کښې ستونږ د ځکو مهٔ کوه
ماتے یم ساقی چرته توبے نهٔ شی

کله چه ښا هده!! د محفل نه ځے
خیال ساتۀ چه پاسے دِ ښپې نهٔ شی

خود به دې هېر کړمه یادونه چې مخ نه راړوي
ځي دې په مخه تېر وختونه چې مخ نه راړوي

مونږه څه داسې تږي نه یو چې عزت مو خوړ
ساقي دې واړوي جامونه چې مخ نه راړوي

زما په زړه کښې هم حسرت د لیدونه عزیزې
ستا نقشونه خپل لوظونه چې مخ نه راړوي

ور پسې وانه خلې قدم د مینې هتک به وي
داسې لیلی دې ځي مجنونه چې مخ نه راړوي

د ژوند غوټۍ دې تازه نه شي د منت په شبنم
ځي دې په مخه بهارونه چې مخ نه راړوي

★

په اننګو کښې دې څه یوې بلې شوې
زړه کښې یم مګر! تلو سې بلې شوې

مُسکا په شونډو ستومانۍ د خفګله
کړې په ګټو نو سرې لمبې بلې شوې

★

اوکړه یو څو خبرې بیا ستړګو کښې
دَ مُحبّو خبرې بیا ستړګو کښې

زما په ترېخ ژوندون دِ رحم راغے
کړے چې دَ څکو خبرې بیا ستړګو کښې

حیا په ځغ نرئے مُسکا په شونډو
وکړه د تلو خبرې بیا ستړګو کښې

د رقیبان پرے څرته پوهه نشی
کړه دَ راتلو خبرې بیا ستړګو کښې

څرته زاهد وو جوړ اشنا لیدے
کړی د لیدو خبرې بیا ستړګو کښې

اشنا دَ زړه دُنیا کښې نه لږې مړه سا او له
په څه باندې نرۍ نرۍ خوَلې مړه سا او له

پیدا دَ میکدې چه تمام کړې په زړه کښې
خالقه! بیا م یادو کښې توبې مړه سا او له

اشنا په تورو لاړو د رقیب سره خبر دې
خو دومره قدر دې او کړه د په دې مړه سا او له

تقدیره! څنګه لوبې دِ نه ما په زړه کې او کړې
نظر کښې خو م اوس د زمانې مړه سا او له

نغمې دَ مینې پرېده داسې نیمه کښې مطربه!
په یادو کښې م بیا تېرې لمحې مړه سا او له

اثر داسې پیدا کړه کنارې چه خپله دی شی
مانړ کیه! کنارو له سفینې مړه سا او له

ناهده! اتا خو وشکل په محفل کښې دَ رقیب
خبرې دِ دَ زړه کوې په خُلې مه سا او له

داسې دردونه هم زخمونو کښې ټوپونه وهي
لکه وږمې چې په ګلونو کښې ټوپونه وهي

نشې دِ داسې د سرو سترګو کنارو له راځي
لکه مستي چې په جامونو کښې ټوپونه وهي

رنګ به بدل کړي د جونګړې دا د صبر ناوې
خیر دې مستي که محلونو کښې ټوپونه وهي

داسې خُلیږي تصوّر کښې ستا رنګین یادونه
لکه ذرې چې په ګردونو کښې ټوپونه وهي

د زړه تارونو کښې ستا نوم یوه نغمه شي ګُلُه!
قیصې د عشق چې په تارونو کښې ټوپونه وهي

بیا جوړ میله شو د ژوندون په کوټړې کښې بیا د
چې رنګینۍ زیړو مخونو کښې ټوپونه وهي

دعوه دې چېرې د چمن کوې زاهده! خلق
وینې زمونږ په ګلونو کښې ټوپونه وهي

ښکلي کاته کړي د ښکرو لاندې
زړونه درزېږي د سینو لاندې

ته یم وې زړه کښې ما دُنیا کتله
کوره تیاره وه د څڼو لاندې

آشنا رڼا کښې ور له ننوځي خوب
ژوندیم او ده کړه د مکسو لاندې

کوره آشنا د فقیرانو زړونه
خومره خو ښیږي ستا د بڼو لاندې

خدایه دې نازک کیږونه رانه ولي
د شین آسمان د چوړ لیدو لاندې

خومره ځوانۍ به وي بې خوده پرته
ستا د زلفانو د تیارو لاندې

زاهده! خاورې شوې د ژوند په طمع
تېرې ځوانۍ د میخانو لاندې

دا چې په فکر هر ویښته ګورې
ښکاري چې جوړ دې کښې د حیا زره ګورې

لا شه آشنا زه د را ته چیر اوګورم
ته چې پښتو کړې، را ته نه ګورې

په خپلو کړو جوړ دې پښیمانه شوې
نن چې محفل کښې را ته مړه ګورې

رقیب کاته کړې د حسرت په نظر
زما په سترګو کښې چې ته ګورې

را ته چې اوګورم ناجانړه کړې ځان
ګنې قسم دې را ته شیرځ ګورې

د محفل سترګې آشنا ما پلر ستي،
د بڼو لاندې چې کاڼه ګورې

راځه چې اوکړو تماشه د فطرت
را هسې د اګست کښې آخر ته ګورې؟

زړه کښې مې نور څه دي بس غمونه دي
ستا یو درې څلور زاړه یادونه دي

غم څه نوې کار دې چې خفه شم!
زه یمه، فلک دې، ګردشونه دي

تندر دې، تیاره ده او سیلۍ باران
بیا دې چا جونګړې ته چلونه دي

زه یم حسرتونه، ناکردې د وخت
ته یې او رقیب دې، محفلونه دي

اوښانده! آشنا چې غوټۍ اوښاندي
ستا په سر د ستورو بهارونه دي

کوم حادثه به د ژوند اوایم؟
هره پاڼه تندر طوفانونه دي

غم او درد به زړه کښې د جانان پرېږدي
بس خواږې زاهده! شرابونه دي

شی په هوا یوه لحظه کښې زړونه
ستا د نظر په اشاره کښې زړونه

آشنا په خیال ځم! چې تیندک او نه خوري
پراته دی ستا سو په کوڅه کښې زړونه

ساقي سوچ وکړه د یو زړه په خاطر
څو مره نخوړ شی میخانه کښې زړونه

د آزمانه به پرې څه لوبې او کړي
د حیا چې نه وی په سینه کښې زړونه

ځکه غوټۍ د ساپړلی او غوړیږي
ستا د مسکا یوه چپه کښې زړونه

چې ته کښې پرې نه وځی په خیال پښغلې
آلښتي دی ستا په لوپټه کښې زړونه

د حسن تو تو په دنیا زاهد!
څوک بلوی په تو شیه کښې زړونه

نن خو د محفل هرو مزه نهٔ وه
یار چې د وفا جفا قیصه نهٔ وه

ما ته خهٔ ګناه وه ساقي او وایه
څکل به یم په لیو چې کاسه نهٔ وه

خهٔ وائے چې څښکه یم لید لے وے
تلے چې د رقیب سره خبهٔ شپه نهٔ وه

غږ به دې وکړے نو را تلے به نه
ځان چې دې ناجانړه کړو دا ښهٔ نهٔ وه

نور کله دې کله خیال سا تلے وو
خهٔ کړې د ړاتلو دې نن وعده نهٔ وه

ښکاري چې ساقي ژوندون ترېخ شوېدے
نور کله خو هر کله میخانه نهٔ وه

نن زاهده! هر شعر په خیال لیکه
څکنبې خو هو ښیار ه زمانه نهٔ وه

تر پو ندو دَ شپها چې م ځلفان اورسیدهٔ
پرهر ته دَ زړګی م بناماران اورسیدهٔ

لوانږهٔ م وی په اوښکو کښې بانړهٔ ځکه همیشې
په برخه چې دَ مینې م هجران اورسیدهٔ

افسوس چې ودنه پاتې شوم په نیمه کښې ملګرو!
منزل ته دَ الفت ګڼې کاروان اورسیدهٔ

ګلونو د ادب نه کوړل سرونه ځېله ښکته
ناساپه تر ګلشنه چې جانان اورسیدهٔ

غوټۍ م په زړګی کښې، شو ګلونه دَ بهار
چې څاڅکی م له سترګو ترګریوان اورسیدهٔ

ناصح ګوره په ځله لاره کښې اوده پړهٔ حیران
منزل ته د ژوندون چې ګمراهان اورسیدهٔ

دَ حسد په ځامتو بانړ تندر شهٔ ګنړا
ناهد چې دَ غزلو تر آسمان اورسیدهٔ

دا چې په زلفانو کښې تپکو نه زوړند شوي دي
څنګه تورو شپو کښې سحرونه زوړند شوي دي

بیا ما ته ملګرو! بس دے تیرے قیصے مه کوئ
هسې هم زخمونو کښې دردونه زوړند شوي دي

ستوري دي چې بریښي په تیارو د کائناتو کښې
زلفو کښې د پیغلو دعطر زړونه زوړند شوي دي

ما شه! بے حجابه د سپرلي جامه کښې او خانده
ستا نرۍ مُسکا پسې ګلونه زوړند شوي دي

بیا د چا د شوخو اړمانو نو جنازے او ځي!
دا چې په محفل کښې نن سرونه زوړند شوي دي

اے د سپرلي حورے! خدائے د غم ته زما مخه کړه،
تا پسې د غمزم غمونه زوړند شوي دي

او بنګے هم ایله غوندې بانړ غواړي نا هدّه بس
سوکو د بڼړو کښې سیلابونه زوړند شوي دي

څهٔ د تا نه هېره څهٔ زمانه هېره شوې ده
خپله آئینه د هر آشنا نه هېره شوې ده

خیر دے کۀ وفا نن د آشنا نه هېره شوې ده
دا ګرانه قیصر ده د هر چا نه هېره شوې ده

بس دے د ژوندون په طمع مۀ ګوره محفل ته اوس
ستا قیصر هغه شمع د بېګا نه هېره شوې ده

ګله! چې آرزو ته یم قیصر د وینو یا ده؟ ده
خیر دے کۀ قیصر یم د دنیا نه هېره شوې ده

ما خو وے زاهده! چې به مړه وي د تقدیر ډیوه
خدائے خبر چې څنګه د طوفانه هېره شوې ده

مطرب څوپه تارونو کښې سازونه جوړوي
څو نه دے چه زړونو کښې زخمونه جوړوي

ناصحه! اسویلو باندے رم څخه کیږے
د حسن په لمنه کښې ګلونه جوړوي

د وخت به څه قدرت وی چه رپاوو ځی (ځایه)
په څنګ چه څوک ځانله څنګل وختو نه جوړوي

اشنا کړه ځان ته ګورے نو په سترګو کښې ګوره
بے ځی ائینو کښې څنګل ځانو نه جوړوي

واعظ ګرانه څخه شی چه د بنګلو کړو ستا ځی
په څنګ تصور کښې جنتونه جوړوي

ګورونه کړه د نړونو ورله تل سیزی ګل ځی
زیړه ځی ورله بیا همځ محلونه جوړوي

"غزل" څنګ د حمزه وایه! چه فکر لړزوي
نا اهلّ هسے وزګار دے غزلونه جوړوي

خپر دے کړ سترګے د اننګی وروی
کله نا کله خو مستی وروی

څوک چه وړیځو ته سجده نه کوی
سره شرابو نه پرِ ساقی وروی

خنکه یم بانګیله اشنا یالو څوانی ،
د اشنا سترګے څو څوانی وروی

توره وریځے ستا د توره زلفو !
د ژوند ترخو کښے رنګینی وروی

مستی ، ژوندون ، څوانی ، خوابونه خوبونه
بیخلے په مخه باندے حئ وروی

رسی منزل ته به د ژوند لیونی
د وخت اسمان کړ پرِ اننګی وروی

ناصحه ! زړونه چه پرِ وده موږي
داسے غزلے یوسف نزی وروی

ګورے چه آشنا راته پښا خاندے
ښکاري په ژوندون جوړے زما خاندے

خلد د ښکړي اچول ليچو کښے
اوښی د رنولو چه په شرنګا خاندے

تا سره آشنا دے، زړه پوازے یم
نن حو به د رقیبه خامخا خاندے

شیخه! ستا جنت پورے به وخاندي
خلد د رندانو په دُنیا خاندے

ما ته د آشنا ځان خفه کړے وی
داسے به ضرور ته په خندا خاندے

خلد ور ته حال د ژوندون اووایم
بوئے یم چه محفل کښے به صبا خاندے

دلته کښے ناصحه! سامان شته د ژوند
خلد په ژوندون هم د صحرا خاندے

په اننګو کښې ډیوے مړ بلوه
دا اسویلي م د خُلې مړ بلوه

بیا به تیندک خوړے د لحد تیاره کښې
دلته کښې داغ د سینې مړ بلوه

راته کوے چه دَ رقیب پښتنه
هسې په تږه م لبې مړ بلوه

اشنا په ژوند دے زما قدر نکړو
اوس م په قبر ډیوے مړ بلوه

کړے چه ناصحه! بیا دَ عشق خبرے
مړ شوے اور م په دے مړ بلوه

قطعه

خیر دے که ژوندم په سلګو تیریږي
دلته کښې هرڅوک په ارغو تیریږي
هلته کښې حسن او ځواني! څو لږ نه
دلته کښې خنده په لبو لږ تیریږي

دُنیا دِ کوی سل ځله دَ یار په سَر خبرے
خزان کوی غوټو ته د بهار په سَر خبرے

تا سا په یو لحظه کښې ټول محفل شو ژړغونے
نمو چه په سلګو اوکړے دَ تار په سَر خبرے

آشنا دے نه یم نښتی اړوے دَ وخت ویره
دی کړے پښتنے میئنے دَ دار په سَر خبرے

بیا خیر دے دَ رقیب شه کیدمن به دَ ربه نه یم
خو یاد دے کړه آشنا هغه د لار په سَر خبرے

شکست کوے د وخت دلاسه او نه خورے زاهده
فضیل شنګر کولے د انکار په سَر خبرے

نن د چې محفل کښې آشنا پاتې شوم
سترګو کښې ازغې د دُنیا پاتې شوم

شوه م چه تر سترګو آئینه د ژوند
زهٔ لکه ماشوم وار خطا پاتې شوم

ځار م کړه ځوانۍ کهٔ د یې څو نه
بیا ئې هم محفل کښې ناشنا پاتې شوم

څکښې م دَ پېغلو قافلې لاړې
زهٔ ترې لکه د وړه لیښتا پاتې شوم

لاره دې د ژوند چې رانه بیله کړه
زهٔ یوه سودا وُم سودا پاتې شوم

اوسې څو د غزل غوښته مهٔ کوهٔ
ښتې دې د غزل نه آشنا پاتې شوم

ما ته م زاهده! حوصله نهٔ شوه
خیر کړه د کاروان څخه بیا پاتې شوم

څوک چه دي ستر ګے او نظر یاد وی
ما دړه ده وی ما ته هنګر یاد وی

بنکلی هغوی ته هړو عزت نهٔ کوی
چه نے سحر او ما زیګر یاد وی

بے شانه تر ے دے بے وسه واعظا
ساقی، شراب او جام اکثر یاد وی

مونږ څو واعظه! چا ترہ لے نهٔ یوُ!!
بے وسه خلق به کوثر یاد وی

هره هنره کښے کلو نه ستا لیُ!!
زاهده کل ممځ په هنر یاد وی

دړک شو مه وربل کښې په اوربل پېښې
حل یم شهٔ تر لاسه قلمه حل پېښې

ګوره وو بیت شوې د زړهٔ زخم کښې
چاڼ یم د دُنیا خاورې کړې غل پېښې

اوس را پېښې ګرځي منزل لې په لې
وړاندې ګرځېدمه کهٔ منزل پېښې

خدائې ذره چه ځُم چرته خبرېږم نهٔ یمُ
الحمد بس ګل دَ آشنا ګل پېښې

کله بې وفا ، وفا مو نهٔ شي
بچ یم کهٔ خدائې کړه د زړونو دَمل پېښې

مینې دِ خالق زړهٔ دَ غزلو کړم
وړاندې کهٔ په قلم د بل غزل پېښې

نهٔ وی چه احساس پکښې د بل فکر
نهٔ ګرځي زاهد د غنه محفل پېښې

په ما خوږ سے کړه د نظر لمنے
غوړاړې تيار سے م د سحر لمنے

څکه عمو نه دې خوشحاله ساتم
ښکلے پرے ښکارې د نظر لمنے

ارغی
پښتانهٔ ښکارې دا ازغی د چمن
د ميلمنو نيسی اکثر لمنے

ځائے ورکوی د زمانے غشو ته
دی که نازکے د پرهر لمنے

که دې منزل ته رسيدهٔ وی مراد
ناهدها! پريده د رهبر لمنے

نن چه دا سے د رقیب خله کښې خندا ده
ښکاري ستا ورسره هُم نیمه مِلا ده

ښه خبریم چه ستا زړۀ نیول ګران دی
ولې بیا هُم زما زړۀ کښې یو سودا ده

زړۀ کړ ځیر ځۀ زما خواړي خه به وکړم
د زړۀ سره عزیزي بده بلا ده

د رقیب محفل ته ځنګه اخر لاړ شم
ځه! دیبا ره دا خو ما پورې خندا ده

ستا محفل خو به روښانه کړي ګل رنګه
زما ژوند کړه د ځیوے ته رنړا ده

ګله! سم یه ځکه خله او فائده! شا به
میلمنه دے دیو څو ورځو خنده. ده

وا خله هرڅ ورسره څۀ کوے زړه هُده!
زما زړۀ ستا د غم نه سودا ده

دُ ښکې د بنړو یم وریږید وته نژدې شوې دی
بیا یم پرهرو ته غوړېږید وته نژدې شوې دی

شل ځله دې ماته زولنې زماته و ۲ چوی
اوس خو یم فالونه بدلیدو ته نژدې شوې دی

زړوستو په قسم باندې بیا تهٔ راځې دا یاد لره
یو ځل چه واعظه! میکدو ته نژدې شوې دی

لوړه آفتانه زړه ته محفل کښې د غم مهٔ وایه
لبتی د نے چراغونه گل کیدو ته نژدې شوې دی

شا به کړه زاهده! جولئ او نیسه چه چکر شي
ستوري د آسمانه غورزیدو ته نژدې شوې دی



وایه! د دُنیا د یاره څهٔ نهٔ شوم
بیا هُم دَ چا نیترکو کښې زهٔ سنهٔ نهٔ شوم
اوس مو خپله رشته په منځ کښې پاتې ده
کُلهٔ! چه "تهٔ" زهٔ نهٔ شوې "زهٔ" تهٔ نهٔ شوم

زما په حال باندې سپرلو وژړل
شبنم په غنچه د غوټو وژړل

اشنا چه لاړه کړه یې له د تللو!!
ور پسې حوا و شا کوڅو وژړل

ساقي چه نن ډې هُم محرومه کړم
د زړګي ورانډې توبو او وژړل

اشنا چه را ننګلې محفل ته بیګاه
تار کښتې بې حوده شان نغمو وژړل

زړه هدره! یار چه کړو ځان پټ په نقاب
زړه چاودې هینې په سلګو وژړل

دَ ښنګلو په دُنیا کښې عقیدت نرۍ مُسکا
دَ ترهو ترهو اوښکو وی قیمت نرۍ مُسکا

مُسکۍ
تهٔ نهٔ غواړې چه ستړګې دِ شی ستړګوته
خوشحالهٔ اوکړې ستا شوې دِ عادت نرۍ مُسکا

هغه چه زلزلې به راولی د زړهٔ نو کړیکې
خو کله کله راولی قیامت نرۍ مُسکا

ل
ګردش دَ زمانې خو بدل نکړې شو تقدیر
مُسکې شَه چه بدل یِم کړی قسمت نرۍ مُسکا

آشنا هسې خو هُم د راته سجدې کړی نزاکت
خو لا د راله سیوا کړی نزاکت نرۍ مُسکا

ښکته
راهدهٔ! ستړګې ستړګوته خو دِ کوره شی
ژوندون کښې راپیدا کړی مُصیبت نرۍ مُسکا

خو د رهبر نه چه اوزګاره نهٔ ده
ملګرو! دغه د تلو لاره نهٔ ده

ستوری م تت شو د پتړو سوکو کښې
هغه خبر د اِنتظاره نهٔ ده

څه د شوق کښې چه زیړ والے ښکاری
سمه سره شوے جوړ د قاره نهٔ ده

سپوږے شو چیره موده پس واعظه!
بس دے توبه نوره خمار نهٔ ده

کډې غواړی اوس به یو پوتے اوخاندی
څه د سپرلی نه خو ناچاره نهٔ ده

د رحمٰن خو زلمو کښې ګلونه ټومبی
زاهده! وار اوکړه اوزګاره نهٔ ده

ښکارېږي ځکه مخ ئې د دې ښهر په مخ
خپرېږي چې دا ښېر د هغې ښهر په مخ

څنګه به د خيال ئې آشنا او ځي
برېښي دې يادونه د ځيګر په مخ

څوله ورځې ئې سترګو سره تېره شوه
خوب نه چې بيدار شوم د نظر په مخ

عکس ئې د شفق په مخ کېښې او ځليد
راغله چې حيا ئې د دلبر په مخ

زړه ئې د نظر ناهده بلق او چوړي
زلفې چې خوره يوړي د سحر په مخ

عرب او ستا یم منکره! د عجم خبرې وکړم
چې پرې تاسو خوشحالیږئ د کوم جم خبرې وکړم

لیونے به یم اوس بولی چې د غم دې غمځې!
د چمن خلق ته څنګه د ماتم خبرې وکړم

اوس به تول خوږے خوږے شي د ازغو پر څوکو
کډه کله نو ته په غوږ کښې د شبنم خبرې وکړم

ستا د حسن په توهین کښې چې پردې کفر نه وتلی
اشنا ما پله چې ګورے څنګ د جم خبرې وکړم

دروغ زه نشم وئیلے رښتیا تا ته کفر ښکاري
د زړه سره! ستا په مخکښې د کوم جم خبرې وکړم

زړه دې نیشته په سینه کښې چې خفه به شې پر مونږه
ستمګره! تا ته څنګه د کرم خبرې وکړم

چې اشنا را باندې خوږ شي د رقیب ملنه پریدی
په کوم رنګ ور ته زاهده! د خپل غم خبرې وکړم

دې ته قيصے دَ بهار خنګه ا وکړم
په نيمه زړه ګفتار خنګه اوکړم

زه ونه يم بوتل ته کړو ديو جام په خاطر
ساقي د اخته وا ئے وار خنګه اوکړم

دَ خدائے په کور کښې چه قاتل اوسووم
د دے ګناه نه انکار خنګه اوکړم

زما په څکښې شو په چړو وغارمه
د زونډ په سيورې اعتبار خنګه اوکړم

زه مسلمان يم ستا کوڅه يم کعبه
يک د کافرو په لار خنګه اوکړم

زه نه دَ زلفو سيورے هم پور ته شو
ظالمه! حوب په انکار خنګه اوکړم

زاهده! ئمز په کو ته نه پرېږدې
زه د حمزه نه انکار خنګه اوکړم

بې یم د یوې کړې ګمراهانو ته
لاړې سمځوم اوس رهبرانو ته

راشئ به دسې خپله سادګئ زړا
ګورم چه د رغلو اشنایانو ته

بند دي ووی یو ور د میخانې پکښې
سټل ورونه لرې فقیرانو ته

خپل زړه ته چه ګورم یارانو نه
ګورم نه شم ونیلې رقیبانو ته

دومره خو اشنا را ته سیک مه ګوره
ښیني به دي حاجت شي فقیرانو ته

ما سره خلوص دې چه قبلیږي نه
بیا قلم ورځم د وخت خدایانو ته

"ګلګ"! اشنه لوکې مسلمانی زما
ستادعه کافرو اداګانو ته

زاره یم د سیلئ نه چوی بې کړی
ګورم چه محفل کښې رنډانګانو ته

څه غم خو به وی زاهده تا سره
او ښکې هیس نه راځي چشمانو ته

ځان چه کړم لوګے د اشنا سترګو ته
بیا به شم کښے د اشنا سترګو ته

هیر دے کړ ځوانی م شی په دار لوګے
شم چه ورنزدے د اشنا سترګو ته

ګوره دا بانړه له چیر اد ب ځنے
لښئ پا سیدے د اشنا سترګو ته

ځان ے کړ و په او ښکو بانړ پاک اوّل
سترګے چه ورتلے د اشنا سترګو ته

پام ئے دے نظره ! د بنړو بل څوا
هله که ورځے د اشنا سترګو ته

څیر مجبور وی کړ په کتو م نړه
لښم نیغ کتے د اشنا سترګو ته

سترګے م نړاهده! څیرے و لیدے
لوے شه لوګے د اشنا سترګو ته

خیر دے یو ځل خو په خوبو سترګو
اوګوره زما ته په زړو سترګو

ستا د محفل نه په زړه ماتی لاړم
چا زړه ته نه کتل په پټو سترګو

د خپل د ستړي نه اشنا مې چاړې وخوړه
زړه ته کړه او تاړم په سرو سترګو

د خپلو سترګو خو مې قدر نه کړو
اوس ارزومند شوم دیر دو سترګو

ساقي منت مې د جام پاتې نه شو
زړه ته چا او کتل په مړو سترګو

چیرې مې اولیدې زاهده! سترګې
نیشته مثال د لیونو سترګو

دَ عمرم سودا ده سترګکې سرې راواړه وه
زما بیدارو سترګو ته نشې راواړه وه

ګمراه او ښکې تلې کوې د سترګو نه په بله!
اشنا! هلته د وښکو قافلې راواړه وه

چې شوې راته مسکې کړه توجه زما خانه
نو راشه اوسم شوخې تلوسې راواړه وه

کعبې پله سجدې کول دَ خوار تندي دستورے
انسانه! خپل تندي له دې کعبې راواړه وه

اشنا! پکښې زه ګورم خپل نیمګړي ارمانونه!
دا مټوکې دې زما سترګو ته ښې راواړه وه

آشنا چې په لاسو نو کښې ګلونه لوبوے
په ویښتو کښې لړمے دَ ځانړونه لوبوے

رقیب سره چې ځي نو رانه مړګوره آشنا
دا غلیم زخمونو کښې درد ونه لوبوے

ګړے
آشنا په خوږو زلفو کښې دِ بربښنې غلے ستر
کړ دا نورو تیرو کښې چراغونه لوبوے

ي
مجال دَ سترګو څه دے چې بریزو سترګو تر دِکو
آشنا چې په ځمبا ئې ځپانونه لوبوے

بیا ولے وارخطا شوے دَ طوفان سېکو چېوته
ناهدہ! چې په زړه کښې طوفانونه لوبوے

ژ به یم پرے شوه دَ رڼا په ذکر
خوښتل تیارو کښې د سحر ظلم دے
هر وخت ګیلو باندې خوځت ښېړ نه ښکاري
ګټه دا ژوند خوسرس ظلم دے

ستا د زلفو حسرتونه ارمانونه
راته پېغلې! شو په پښو کښې زنځيرونه

د زړه وینې م ساقي واخله چه څړک شي
میخانه کښې به ښکاریږي تشې جامونه

ماوې دغه دے اسمان ښکته راولويږي
ستومانۍ له چه دې پورته کړل لاسونه

تا بیا زیرے د سپرلي نسیم! راوړو!
لا ورغلي خوږم نه دي پرهرونه

ډیر څه شته زما وړوکي عزیز زړه کښې
ستا یادونه ، ارمانونه، حسرتونه

چه کمسو ته دِ دَ خیال په نظر کوم
تصور شي زنځیرونه، زنځیرونه

که پیدا کړے خودداري ګمان کښې زاهده!
دا وختونه به درنسیو کښې بدي سرونه

ژوندیم خزان شو د بهار په طمع
سا ئمه ~~[illegible]~~ ورته لار په طمع

ستوری شرمیږی په وریځ د ننه
سپوږمۍ ولاړه د سنګار په طمع

قفس کښې ګرانه ده لحظه د ژوندون
وخت می تیریږی د ګلزار په طمع

د زړه تار و تو کښې اخر غلی شوی
ویښې نغمې د موسیقار په طمع

د سترګو رپ کښې شو [illegible] مونه کنګال
ناست یو نی دی لا د دار په طمع

ګوم دی؟ ملګرو! چه زیارت ئې اوکړو
[illegible] نږه خوږمره شو د بهار په طمع

شاره میره کښې د سپوږمۍ په رڼا
زاهد ولاړ دی د نګار په طمع

غم چه مې غمونو ته همدم اووې
اوس مې بس ایله چه غم ته غم اووې

هلته کښېنې ولاړه دلته کښېنې کړ چې بُت
څه کړ بُت خانې ته مې حرم اووې

تا د ئیل آشنا چه مطلب اوۀ یه
دے شوے خفه چه تن مې سم اووې

مخکښې څو یو تا وے څه د ر تلم به ژه
"مړ را څه" څونږ راته ټول غم اووې

نۀ مې وے راهشه ده! حیا ته حال د زړهٔ
څه اوکړم چه سترګو کښې مې نم اووې

خدایگو اشنا زړهٔ مې څوریږي چه ځې
کله په زړهٔ زما ځائیږې چه ځې

د زړونو حال څوک د ویلو نه دی
زمکه اسمان اشنا رپیږي چه ځې

ستا د خفګان په خاطر غږ و نکړم
ګنې قیامت په ما تیریږي چه ځې

کښینه اشنا په تا د څهٔ تادی ده؟
در سره جوړ محفل خوریږي چه ځې

کړهٔ زهٔ د ډیر وایم چه به نهٔ ګورمه
سترګې مې تا پله کږیږي چه ځې،

د ډیر ادب نه په چمن کښې اشنا
سر د ګلونو ښکته کیږي چه ځې

زاهده! ښدائے خبر چه څهٔ وجه ده؟
بے مخې ځان سره ګوریږي چه ځې

اشنا بیا مې په زړهٔ باندې ورېږي ستا خبرې
دَ وخت سرهٔ ګردش کښې نوې کېږي ستا خبرې

چې کښې دَ نسیم چې څنګه راځي دَ ګل پاڼې
اشنا داسې په شونډو کښې جوړېږي ستا خبرې

دانه چې ګنډ کوړې مخامخ راته اشنا
لږ هسې مې په شونډو کښې زېږېږي ستا خبرې

هر څو کړې پریشانه کړي غمونه دَ روزګار
بیا هُم دَ تصور نه مې تاوېږي ستا خبرې

اشنا خیر څو دې! بیا دَ کوم ستم کېږي اغاز
په شونډو کښې له ورایه چې مُسېږي ستا خبرې

ګردش حُلدې قصد دهیریدو وکړې اشنا
ناهد نه په سجدو کښې لږ یادېږي ستا خبرې

دَ سترګو او ښکے چه م نهٔ پریوتے
دَ ډیرو سترګو نه پرے تهٔ پریوتے

د زلفو خیال م سر ته او نهٔ رسو وا
چه توره لړے م په زړهٔ پریوتے

سترګے راواړوله ما ته آشنا
ستا نه ساقي پیالے په څهٔ پریوتے

عشقه! سجده د په قسمت کښے نهٔ وه
چه پریوتے په نمر خاته پریوتے

مرګ باندے ستا زاهده خلقو وئیل
د خوب ارمان د کړو او ده پریوتے

خوږه خطرناکه یم آشنا د منزل لارې دي
ګوره! وار خطا نه یې خدا د منزل لارې دي

شیخه! چې د صبر ورته هم نیمه کېښې ملا ماتې شي
دا یې په ایمان چې د چا د منزل لارې دي

خیر دے کهٔ ازغي دي ورته مهٔ کښېنه په څنګ!
هر څهٔ په راځي مخې له دا د منزل لارې دي

ستا د منزل لارې یم آشنا څنګه وهلے وے
شا به کړه را چاق شه اوس زما د منزل لارې دي

چېرې کهٔ ورته تښتمه وهې منږے مانهٔ بربېږي
خوږه وفادارے یم الله د منزل لارې دي

واه! بیا ساه نیولے شوے په نیمه د یوے لارے
دا څو لا آشنا مونږ ته بلا د منزل لارې دي

خیله په قدم لیسې قدم زړه او چیټېږي ټک
ګوره چې زاهده! په رښتیا د منزل لارې دي

اشنا چې مې زړګونه ستا بڼو وته په خندا شو
ګلونه بې اختیاره نن ازغو ته په خندا شو

بې ځې که چمن کښې بلبلو ته په خندا شو
صحرا کښې لیونی هم بڅرکو ته په خندا شو

ذرې د تصور مې په څوپونو دي ګل رنګه!
داغونه د ځیګر مې ستارو ته په خندا شو

اشنا که دې ګام پټ کړ و په جلوو کښې د خلګو
خاپونه د قدم دې لېونو ته په خندا شو

اشنا چې ته کتې شې رقیبان او چپې سترګې
مینځ چې دې د زلفو زولنو ته په خندا شو

ناسا یې چې دې سترګې کړې راپورته نشه ورې
محفل کښې پتنګان تتو څپو ته په خندا شو

تېرې دې خوږې شو یدې د ژوندیه روڼ سحر
ناصحه! څوک چې دلته ژړیږي ته په خندا شو

پښتو چه نه لري جانانه زړه ته نه پرېوځي
ښکلي که هر څو شي د کنعانه زړه ته نه پرېوځي

زما د زړه ورېځې لاړې په رقیب ورېږي
ستا دا ستم به هم اسمانه زړه ته نه پرېوځي

ازغي با نرم شي دِ تمتور کړي څنګښې د بېخ و بېخ
د سترګو خیال دِ په اسانه زړه ته نه پرېوځي

واخله ساقي بیرته په خپلو لاسو راکړه شراب
جام چه هم و اعشقو د تانه زړه ته نه پرېوځي

څو چه د سترګو نه بهیږي اسوېلي او نه داني
څه ښکلا ده زما ځانه زړه ته نه پرېوځي

تورې ورېځې د بهار په موسم جام او هوائي
دا ده وختونه هم بې ستانه زړه ته نه پرېوځي

ناصره داد شاعرۍ کوم یو مقام ته رارسېدلم
غزل هم یو بې د مېنې ځانه زړه ته نه پرېوځي

خوږه یم په سترګو کښې ګرځلای د آئینو
هر وخت چه حیرے کوی یار د آئینو

بیا دی آئینې مخې ناورکاره دبښیو بے نه
بیا دے ګکیدلے لوئے بازار د آئینو

هسے نا آشنا پکښې خپل مخ او وینی حیر
ګرد نهٔ شم زغځلے په رخسار د آئینو

مانځ ئے کړو غرور دی دپے محمود بنالست
ځان او خوالی دواړه یم شه زار د آئینو

خلقو چه شروع کړے سجدے د تور وکانړو
مونږ کوه زاهده کاروبار د آئینو

★

د وخت بهار ته بد و بچلے نهٔ شم
ځکه چه دا د ژوندګلونه سپړی
آشنا تا دے ته چرته سوچ کړے دے
چه دا ورغنی پرهر ونه سپړی

ستا جوابونه د قیامت څرک دی
زما سوالونه د الفت څرک دی

وګورې او ژاړې ورځ شپې شتو
دا منونه هم د شرارت څرک دی

لمن تر نیسې چه وربینې شي میلمه
ازغي یارانو د غیرت څرک دی

د رفتار د وخت لیونۍ به پېژنی
نه کوی عزت د شرافت څرک دی

او هم یو ته چه کوم زړه را ښکون وی کښې
په مخ تول د نزاکت څرک دی

هم چه آشنا را سره سم دی روان
د چم کر دو نه دِ د بیت څرک دی

نا هسه نور کله وو تنی جامو نه
دا نن زمونږ د قسمت څرک دی

نورے تیارے ته د صبا مخه کړه
زما ژوندون ته لږ اشنا مخه کړه

اوده زخمونه شو د خوږه بیدار
تیرو یادونو ته بیا مخه کړه

ناست وومه کټ کښې د محفل په غلي
ځانته یې هیله د دنیا مخه کړه

تا ما کتل کتنه ما ته پیش نه دے
ځانته بخیله دِ زما مخه کړه

ژوند چه یې یار وو په دنیا ناشاده!
په مجبورئ یې د صحرا مخه کړه

کوم دَ رقیب خوږم ودان پاتے شو
خیر دے کړهٔ زړهٔ زما ویران پاتے شو

په آئینه کښې دِ تر سترګو شو څوک
ځان ته چه ځان دِ هُم حیران پاتے شو

دَ وخت سپیرو رنابه هر څهٔ کړل هیر
ګردش مې یاد کښې دَ اسمان پاتے شو

په ځنکدن کښې چه ګُسکے نهٔ شوے
دا مې په زړهٔ کښې یو ارمان پاتے شو

ستړی آشنا چه ستومانی وُښکله
په تماشه ئے ټیټ آسمان پاتے شو

قفس کښې طمعٔ دَ سپرلی مهٔ کوه
اوس خو زړهٔ ګیره! ګلستان پاتے شو

دے
ناصحه! دے کښې دَ جنت ته څهٔ قصور
دَ رانه په خپله چه خپل ځان پاتے شو

هر یو قدم په امتحان تیریږی
دا په کوم دور کښې انسان تیریږی

نه هم استاد محفل د زینت وو م
خنګه زر عمر د دوران تیریږی

ستا په پریشانه زلفو لاس مه لږه
خیر دے که ژوند نه ما پریشان تیریږی

ستا تصور د مخ اسان خو نه دے
د سحر خیال په شبستان تیریږی

اے د زړه سره! بے د مینې نه ژوند
تیریږی وے نه! خو ګران تیریږی

د دا په سر چه زما مینه وینی
تل به کوی سترګے د رقیبانو تیریږی

ناصحه! چې کړے د منزل په لوری
شا به سر منزل کړه کاروان تیریږی

په اودو سترګو کښے نشے د خوبه پاسیدلے
بیا هم په زړه کښے تاو سے د خوبه پاسیدلے

نسیم په غلا غلا د جا زلفو سره لوبے وکړے
کړ ماښامے شو تورے شپے د خوبه پاسیدلے

د محفل سترګو کښے غم پلے کړے د اوښکو څړیوے
چه په تارونو کښے نغمے د خوبه پاسیدلے

خیال د کمسو غوټے را پرانستے فضا پیغله شوه
کړ په ګلونو کښے وګلے د خوبه پاسیدلے

ساقي چه را کړل په سرو لاسو راله سره جامونه
د خیال په ګټ کښے هم توبے د خوبه پاسیدلے

آسمان چه بل کړل د سپینے داغونه شپه کښے آشنا
په تصور کښے هم وعدے د خوبه پاسیدلے

بیا د زاهد نه څه خطا خبره اوشوه آشنا
په انګو چه دِ طبے د خوبه پاسیدلے

د بڼړو اوښکه چه ګرېوانه ته ورته غاړه وځه
خو سو غورسے بیا بانه ته ورته غاړه وځه

د وخت مګرې چه شو بیل ساه په سینه راکه
بے اسرے اوښکے ستارمانه ته ورته غاړه وځه

د هغو خیالونه چه د زلفو په زنځیر کښے شو کېږی
ورځے د زوند دیم شبستانه ته ورته غاړه وځه

ساته محفل کښے نن په مینه چه آشنا د کښل
نه رتے د ز یکے کهکشانه ته ورته غاړه وځه

ستاد وعدو ماځیګرې دم خیال ازغی ازغی کړم د
سرے لو پتیه چه شینه آسمانه ته ورته غاړه وځه

د ژوند میره کښے خاپیروم د خیال و نه موندے
په بے خودی کښے آشنا ګانه ته ورته غاړه وځه

د وخت ځامی به و زاهده! بیا هم نه کړی ځنه
دوړے د فن کړه د آسمانه ته ورته غاړه وځه

د سترګو د رڼا سره دې زړونه ځوړي جوړې
اشنا چې میخانې د لبو د خمو نه ځوړي جوړې

خیالونه ارمانونه حسرتونه ځوړي جوړې
ستا یاد کښې لا تر اوسه خوګلونه ځوړي جوړې

د تلو به دې څه وایم چې ته څنګه څې اشنا!
قدم سره دې پو نشان اسمانونه ځوړي جوړې

ستا لاسي له زما څخه چې تا لیږې ورکړې رقیب
زخمونو کښې بې واره زم د هر دوونو ځوړي جوړې

قیصره چې زم څوک اوډي د زړونو د هاډونو
د غم نه به محفل کښې چراغونه ځوړي جوړې

تا لیږلي دي چې د زلفو ماښامې کښې شي یادې
پریشانه تصور کښې زنځیرونه ځوړي جوړې

نا اهده! جوړ غزل دې د حمزه په رنګ کښې اوینې
محفل کښې چې بې واره ټول سرونه ځوړي جوړې

ګوري چې څوک بل ته د خپل ځان په آئینه کښې
"ځان" ور ته ښکاریږي د ګمان په آئینه کښې

هر سحر چې ګوري سپینې ښانې په آئینه کښې
حُسن دے یارانو! بدلوان په آئینه کښې

شیخ! کړه دا غوږ نه د الفت ښکاري بېکاره
شپه کښې ور ته ګوره د آسمان په آئینه کښې

خدائګو چې آشنا راپېښ وکړے آمالونه
ځان تکړ دے بام شو د دوران په آئینه کښې

سېزي راله زړه د غنه ملې د سرو ګلو نو
چې ته شم کتے د ګلستان په آئینه کښې

ستا د تورو زلفو داستانونه پېدیږي راغږي
ګورم چې آشنا د شبستان په آئینه کښې

ځانته چې ته ګوري څوک آشنا په لویه در ځ
بد ور ته ښکاریږي زاهدان په آئینه کښې

ستا چې په شونډو بهارونو ستومانۍ وښکله
زړه کښې د خوبه ارمانونو ستومانۍ وښکله

اشنا چې پام یې شو ناساپه ویرانئ ته د زړګي!
ستا د ځوانۍ رنګین یادونو ستومانۍ وښکله

د کمو لحظو ګرده شوې د خیال چمن کښې
که ښاپېرو په سرو لاسونو ستومانۍ وښکله

خدای ئې دې مل شي د توبې چې نه کښې ماته نه شي
د ساقي لاسو کښې جامونو ستومانۍ وښکله

یادونه تېر شو ښکاره د تصور ائینې کښې
د زړه پر کاله پرهرونو ستومانۍ وښکله

ناهده! خود به دې غزل دې د ژوندون ائینه
چې په ځوانۍ د حسرتونو ستومانۍ وښکله

شو گیرے ئے زالہ راکړه پریشانی ئے راله راکړه
دے چې محو مینه بنه ده! شاعری ئے راله راکړه

خه سزا به نوره راکړی د کاسے په سر واعظه!
زندگی م ارمان نه وه زندگی ئے راله راکړه

پښتون زور نه منی ګله! په رضا اړ وی عزونه
کړم خوئی کښے خاکساری ده سرکښی ئے راله راکړه

داغصه وه او کړ مینه د ساقی د محفل ستورو
لاس م او نیوه کاسے ته صراحی ئے راله راکړه

کړم ژوند خوله خوله دے خیر دے عشق ضرر ده
چه ستا مینه م کړه خپله بادشاهی ئے راله راکړه

ژوند تسکین نه دے زړه کیه! اضطراب د ژوندون نوم دے
بیا به هم خفه خفه ئے کړ خدائی ئے راله راکړه

دے چه ستا یمه زاهده! خو رقیب م هم اشنا دے
تصور که م چمن شو ویرانی ئے راله راکړه

په مخ د اشنا زلفې دي پرتې خورې ورې
اکثر د صبا ګلشنې دي تيارې خورې ورې

ښکاريږي چې کمسۍ د حورې پريشانې ترې
فضا کښې چې نا سا په شوې وږمې خورې ورې

د سترګو چې رم زړه په څپا او نه خو يارانو!
کنډر کښې د زړه پاتې شوې ګيلې خورې ورې

خبره هم د ژوند د پريشانۍ نه ده ډيره ګلې
چې زلفې دي په لاسو را ته کړې خورې ورې

ملګرو! څو به ساقي د مخه لرې کړو نقاب
پرتې چې ميخانې کښې دي کاسې خورې ورې

اشنا چې د حيا شوله مسکۍ په دوه ننګو
فضا کښې شوې رنګينې لوپټې خورې ورې

محفل ته "ځا" راوړې وې څړيکې د دواړو ننګو،
پرتې چې دي زاهده! څړيکې [illegible] خورې ورې

چه یادوته یم را شي ستا یادونه ستړي ستړي
د مینې ښکاري یې یې پسې زړونه ستړي ستړي

ښکار یې ی جوړ سپر سے د رستو دوا ګنې پرېښو
بې د مینې شان پرانه چه دی ګاونه ستړي ستړي

د اغونه ورته والی تصور کړ په تنده تړ به
ګناه د ته چه د زړه داشي غمونه ستړي ستړي

قیصه د لیونی یکښې چا تیره کړه ملګرو !
محفل کښې چه بلېدی چراغونه ستړي ستړي

شي غلے په کاسو کښې یم غمژن تصور کلو !
زخمونو کښې انځي چه شي درد و نه ستړي ستړي

د اخځه بنه عکاسي یم کړے د ستړي زړونو ننداشتا !
په حرز دے نور سے زلیخه خوږي پالونه ستړي ستړي.

قلم او تصور یم د وړه ستړي دي زاهده !
دا خکه حتو لیکمه ! غزلونه ستړي ستړي

ډېر د خیاله مهٔ خانده سحر نهٔ شي
بیا یم به خندا چېرته پرهر نهٔ شي

ژړلي دې څوزرې کړه چې لا ړ نهٔ موږي
ځکه دې آهو نه آشنا در نهٔ شي

لېږې کړي چې وینې در ته واچوم
شا به کړئ ګلونو څوک خبر نهٔ شي

خیال ته دې آشنا وایه چې نهٔ راځي
شپو کښې د ژوندون په بله ور نهٔ شي

ورک دې په لټون کښې اشنا شۀ یمه
خضر دے زما صحرو د صبر نهٔ شي

ډېرے کهٔ کعبې ور ته څوک مخکښې کړي
تهیت د پښتنو به ور ته سر نهٔ شي

هسې نهٔ زاهده! څوک لوحزه کړي
زړهٔ نه دې بخړي چې پهر نهٔ شي

بې به شفق کښې شي ے چې یوے د ماښامي
بیا ونیشي ساقي جوړے کاسے د ماښامي،

زړهٔ کښې ارمانونه کړي پوره لاّرشونې ٢ نهٔ
خومره ښکلے وخت وي دا پوهے دَ ماښامي،

غاړے چه شي نور ے سمانن پهٔ سیاحئ
ما ته دِ را ښکنبې شي وعدے د ماښامي،

ستاد تورو زُلفو غمازي کوي اشنا!
ځکه رم تندے کوي سجدے دَ ماښامي

ناز به د ژوندون تر سحره نه کړي په مینه
چا چه وي اغستے خوٚ مزے دَ ماښامي،

ټول عمرے لاسي وي د سینې د پاٚرسه ٢ لینې
ښخ چه د چا زړهٔ کښې شي ازغے دَ ماښامي

یو الله خبر وي د زړهٔ کي نه دَ ښ ٢ هـ
کله چه اشنا ور نه تهٔ حے دَ ماښامي

په مخ دې له حیانمه ګنګو نو نوبې وکړې
سینه کښې یې د ننه طوفانونو نو بې وکړې

اشنا چه یې ناساپه رنړو ستورو ته شه خیال
پر ښنا نه تصوّر کښې ستا یادونو نوبې وکړې

معصومې ارزوګانې لوعړنې شوې د ژوند
ملګرو! په ځوانۍ یې حسرتونو نوبې وکړې

اشنا! ته په نشه کښې د ځوانۍ او سې پرکاله
صحرا کښې لیونۍ باندې ګردونو نوبې وکړې

پرکاله تلو سې د خوبه و یښې شوې ناساپه
اشنا چه دې په سترګو کښې خوبونو نوبې وکړې

وعده ئې د صبا راسره څه وکړه ه یارانو!!
په زړه یې تو له شپه بیګا غمونو نوبې وکړې

زاهد چه راته بحث کړو د نه شکلو برسیره
ملګرو! تصوّر کښې یې جامونو نو بې وکړې

هلته چمن کښې په ګلونو باندې اور اوګی
دلته زړه کښې ارمانونو باندې اور اوګی

تا ته به هیڅ وي نږدې زمانه کی ته آشنا!
ته څه خبر يې ارمانونو باندې اور اوګی

زمونږ پر څه چې وچې شونډې لا تراوسه ګرځو
کړه میخانه کښې په جامونو باندې اور اوګی

څه به غوټۍ د ژوند ګلونو شي په تشه پرخه
چې د ځوانۍ په بهارونو باندې اور اوګی

پام کوه پام چې په محفل کښې د جام وانخلې نوم
زاهده! بیا به د چا زړونو باندې اور اوګی



واخله ورته دغه تیار سر ا کړه
ماله د زلفو تورې شپې سر ا کړه
چې د منصور نه ورستو پاتې نه شم
شا به په زلفو کښې جوتې سر ا کړه

یار په ۲ منګو د حیا بل کړهٔ چراغونه
ځکه خو ردیف م د غزل کړهٔ چراغونه

نیمه کښې د لارے چه شو بېل رانه ملګری
ځکه م ملګری د منزل کړهٔ چراغونه

ساه دِ ساقیؔ څه وه په کړه جوړ جنیال دَ تورو زلفو
بل دِ چه بے وخته د محفل کړهٔ چراغونه

لارے د ژوندون م کړے رڼا ډیرهٔ دا غونو
مړهٔ چه په تیارهٔ کښې رانه غل کړهٔ چراغونه

هغه چا ته ناوے د ژوندون ورغا ړوځي
چا چه د ځیګر په وینو بل کړهٔ چراغونه

بیا هم په زړهٔ کښې تلوسه ده ستاد سترګو
بل کړې م په شپه کښې پل په پل کړهٔ چراغونه

او ویل زاهد ته روپه عوږ کښے اشنا یا لو!
بچ دِ دَ طوفانه په کوم چل کړهٔ چراغونه

قفس کښې م زړګے د ګلستان خو بو نه وینی
زړے د زمکے هُم د کهکشان خوبو نه وینی

تنور کښې د وختونو د باراندان خوبو نه وینی
د عقل بنا پېړۍ م خوږمره ګران خوبو نه وینی

صحرا کښې د ژوندون چرته کښې نشه دے مګر ے
ناپوهه تصور م د کاروان خوبو نه وینی

شب رنګې زُلفې ستا چه تصور ته دې راغلے
شبګیرے تلوسے د شبستان خوبو نه وینی

اشنا چه راشې ته م لیدلے دے حیران
تر اوسه تصور م لا حیران خوبو نه وینی

ګستاخه نسیم بیا جوړ . دچا زُلفې کړے پریشانے
مګرو! تصور چه م پریشان خوبو نه وینی

د ژوند په ګلستان کښې جوړ لا لوڼے دے زاهد
موسم کښې د سپرلی چه د ګریوان خوبو نه وینی

نن یې چې مخ ته نو پټه نزدے شوه
تا به وے زړه ته مې ملبه نزدے شوه

واعظه! تنده به دے ماته شي اوس
شايد ستا ځاى ته ميخانه نزدے شوه

ساه مې شوه لنډه زړه هو پو نه وهي
را معلومېږي ستا کوڅه نزدے شوه

چه دے کاسے کړے راته سترګے ساقي
بيا ماتيدو ته مې توبه نزدے شوه

ستوري ښکاره شو د بڼو سوکو کښې
ملګرو! بيا د هجر شپه نزدے شوه

دوړے ښکاره شوے لږ شان صبر اوکړه
دادے زړګيه! قافله نزدے شوه

شمع سلګۍ شوه د محفل نه اخوا
جوړ ختميدو ته د قيصه نزدے شوه

څه به مونږ تېر يږی اشنا تا ته څه معلومه ده
سترګو نه يم او پښتنه دنيا ته څه معلومه ده

"کو ښپې د سحر" "د تورې شپې" په زړه کښې اوګوره
داد رنځالی قصه صبا ته څه معلومه ده

"يره" په ماشومو وار خطا سترګو کښې ښنائی ځان
يه! د عقل نا وے دا بلا ته څه معلومه ده

هغه دی ورځې پښتا بيا د زلفو لاړ سے
چې ته به ورېږې تا او ما ته څه معلومه ده

نخښته د منزل د تلو وينو کښې ځلا کوی
راوګه مسافره! لار صحرا ته څه معلومه ده

ورشه چه ساقی دے ته واعظه ګناه ونبائی
هيره کښې د څکاو ګناه ما ته څه معلومه ده

والی به مغرور چه دا شاهی راته عرض کوی
څومره مجبوره يم دی اشنا ته څه معلومه ده

شوې په بڼړو کښې څڼې نیوې او ښکې
غم چې د سترګو نه شړے او ښکې

ځکول دې اونیوه روان ولے شوې؟
ما ګډا کړه! درګوے او ښکې

چې بې اسرې به شوې دهره دره!
پښتون ګرېوان به څیروې او ښکې

سترګو دې ځا نه کړل چا پېره ازغې
چې اننګو ترې پټو لے او ښکې

ځکه ګرېوان ته یې استوګنه را غلې
بڼړو! چې تا سو څوګو لے او ښکې

د غنم خوشې پېغله ده چې سره خوره وي
کټ تیاره شپه په سحر خوره وي

مګودې کره راشي په دې لاره اشنا!
هر وخت مې سترګې خپل نظر خوره وي

ماځو آسمان ته هیڅ وېلي نه دي
ولې مې وینې په ځیګر خوره وي

ګل چې غوړېږي په سپرلي کښې اشنا!
داسې ظلمونه دې پرهر خوره وي

په ګټه د شکر دې ساه لاړه له
زاهده! خوله به دې خبر خوره وي

هسې په دُنیا کښې څوک بلا د قدم نښې دي
هغه زما نښې دي چې ستا د قدم نښې دي

تا ته څوک رقیبه! دَ اشنا د قدم نښې دي
یام کوه چې ور نهٔ ښئې زما د قدم نښې دي

هسې څوک تندې زما په خاوړو چې نهٔ لګي
ښهٔ مرا ته معلومه ده چې ستا دَ قدم نښې دي

خیر دې بیا به نهٔ راځم چې تا ته پرېږدهٔ رسي
څهٔ وکړم کوڅه کښې دِ زما د قدم نښې دي

یام کوه نظر دِ پرې ګمان دَ کعبې او نکړي
دا کوړې واعظه! دَ اشنا دَ قدم نښې دي

ورستو به زما نه ستا په نوم بانډې روښانه شي
خیر دې کړم ستې په دُنیا د قدم نښې دي

نهٔ کوړي زاهده! ورته د لستوڅوک یه ښهٔ نظر
خدائے خبر چې زړهٔ کښې دِ دچا د قدم نښې دي

دا زړونه مې باندې څه اشکو چه شي يار کله نا کله
عجزونه مې په زړه چه شي د يار کله نا کله

ناصحه! دا ته خله کړې چېړې د دوزخ،
مظلوم ته جنت کېږي سوړ انګار کله نا کله

يادونه را ته کوري په ديوال د تصوير،
تېرېږم چه اشنا ستا سو په لار کله نا کله

رېباره! خود داري څو په ديدن نشم با ټيللې
جوړېږي بې دارو نه هم بيمار کله نا کله

دوه رنګه زمانه ده کړي سجدې د نوي نمر،
مړ څي په غوږ زيږلو خلقو وار کله نا کله

د ټوټې ټوټې ستا د حسن بلې کړې دې په دېنو
تبوس د ليونې څوکه "يار" کله نا کله

زاهده! ليونيه! د سپرلي مه کوه غم
خزان شي سرو ګلونو له بهار کله نا کله

تا کړې واعظه! په توبو اونیځل
ما لغزشونه په کاسو او نیځل

د زړه غبار مې څې د سترګو پر لار
زړونه د "ښکلو" ناکړه دوا ونیځل

وې خندل وې ویل" تا نه پېژنم"
څومره خوا بدې ئې په ترخو اونیځل

پېغلو چه خوښې کړل د وربل په خاطر
شبنم ګلونه په سلګو او نیځل

زاهده! ځان ته خوشې قسمة وایه
ستا ګناهونه ټول پر دوا اونیځل

ما ته دي وښيل ور ته څه ګران د چا د مخه
دلته کښېنه راځي دا رقيبان د چا د مخه

تا وې ساقي ګرځې راته سترګې په تندي کښې
مونږ دلته راغلي يو قربان د چا د مخه

ښير کړه قاتلان د ارمانونو پکښې اوسي
زړه ته يم نزدې د ګلستان د چا د مخه

مينه کښې رقيبه! قرباني ده د سر ګرانه
څه کړه دې نثار کړې دين ايمان د چا د مخه

څه رشته لري په منځ کښې او په! زاهده
ګلې کړې لمنې سره ګريوان د چا د مخه

*

په ورځ خلاص په څه لوی لوی وايم
ستا زلفو اوږد دوالې چه پر ستايم

ليونتوب ته يم د مينې، کوتې نيسي
خاوندا نو ته د مخ په خندا يم

په چمن کښې بیا سپرلے دے په چمن کښې بیا بهار دے
دګلونو وار خطا دے هر قدم قدم انګار دے

ګلدستی د چا نه نهٔ ګیږم ، کهٔ ملګرے م څوک نهٔ شو
زهٔ په خپله په ژوند تنګ یم ژوند په خپله ځما بار دے

دا په مخې خو د وخت دی اوس ځما دی اوس به ستا شی
په دے خلقو څهٔ باور دے په دے خلقو څهٔ اعتبار دے

بیا دې تیر یاد و نه راغلهٔ ، بیا زړهٔ نه خندلے شو
بیا م سترګو کښې دی او ښکے بیا م زړهٔ باندې غبار دے

که شراب څکښمه لو څکښم به، میخانے ته که ځم، ځم به،
ته م څهٔ کوے واعظه! ستا ځما سره څهٔ کار دے

زهٔ دې هسے کړم پریشانه ځانه دې هسے مرور کړو
بیا دې ما سره یاری ده بیا دے ما سره روزګار دے

په هر در نهٔ ښکته کیږی خو شرمنده د چا نهٔ کړی
زاهد څومره عنت کا فرد دے. زاهد څومره ګناهګار دے

د خُلې نه چه ېم او خته خطا یو دوه خبرې
په مخ د آشنا وکړلې حیا یو دوه خبرې

یادونه چه بیا تیر اد بې وفا یادو ته راغلهٔ
په خُلهٔ کښې د پرهر اوکړې خندا یو دوه خبرې

کاته ئې کړې څو چه وګورم کړې سترګې په زړ بل خوا
په سترګو کښې ېم څو بڼې دی لبی دا یو دوه خبرې

آسمانه! کهٔ وچت ئې د نظره ېم ئې سنګته
نن کړې دې آشنا راسره بیا یو دوه خبرې

ناصحه! که خبرې کوې ښېخ رقیب خیر دے
وې کړې به آشنا ورسره بیا یو دوه خبرې

تل چه را ورېږي اشنا کانړي دَ یادو نو
خدائے خبر چه پرېږدي روغ ما کانړي د یادو نو

پاتے م بښېنه لښتوه، د خیال د شیش محل
څه په زور ورېږي الله کانړي د یادو نو

شابیے بے مخو لیونے او لږی په کښتو
بنهٔ په لیونو کړي د ا کانړي دَ یادو نو

سترګے کړ شي ور چرته ایله د تصور
نیغ را ته نیولی دي جا کانړي د یادو نو

ما چه د زړګي غوږ بښتنه او کړه له ملګرو
راغے کړل بدل کښے بلا کانړي د یادو نو

زهٔ غمت ګنهګار یم یاران بنهٔ دے چه او شي
ونیځي ګناهو نه اشنا کانړي د یادو نو

خدائے مهٔ کړه کړهٔ مړ شي ! اهد دبل وژن
او نو لږی په قبر کے بیا کانړي د یادو نو

یو څو کسو له جنت دے یو څو کسو له سزا ده
عذر ئے مه کوئ ملګرو! دا دنیا خو سزلیه ده

ستا د زلفو په څه وایم دا صفت ئے اشنا پریږده
دا چه ژوندم تورماښام دے دا چه ودرځم توره شپه ده

په سپرلي کښې چه رنګ نشته د چمن څه چه سپیره دے
نه څو بهار باده سروره، نه څو بهار خفه خفه دے

ټول دا غونچه دی دا غونچه د چمن هسے ګلونه
ترهغه مې څه پوښتئ یارانو! لبی د پیغلے نو تږه ده

پښتو کښې دا صفت دے چه اشنا بادِ ځان وژنی
میړولے دِ نه ده نه شم زمانیه پښتنه ده

په ساده شکلی میئنی شوم د مکار قاتله زیاتی شو
دا زما د ژوند داستان دے دا زما د ژوند قیصه ده

هوله شپه دِ ستوری شمارم دا څوک نه مني زاهده
دا هر څوک مني زاهده! چه اشنا کړے وعده ده

وښکې دِ سترګو کښې کجل رنګه ! چه بهېږو اونیوے
بیابیا نیوے شوم چو لیدې ما ژاړه ازغو او نیوے

داچه حیران يې یوه بل ته اواشنا بله ۲۳ خکلې
بې کچه حسن کښې خامېې دِ ائینو ۲ و نیوے

مغل دِ خنده وګړه خوښې کړے مونږ ته څهٔ ګناه ده
ستا دِ پلوٴ لا ړے کوڅې کډ نئ پر دو ۲ و نیوے

داڅهٔ د وخت زو لئے نهٔ دی چه لر کیږی به زود
په ځائې به اود ړیږے واعظه! کډ مکسو او نیوے

ملګرو ! بیا د چا یاد و نو ېم د ړه دو نه ولېنی کړل
دا په محفل کښې چه خبرے ېم سکو او نیوے

شراب ېم واړه ول په زمکه هډو بوهه نهٔ شوم
"عجزے" سترګے ږاته جام کښې چه توبو ۲ و نیوے

زاهده! اوس هو د اعتبار لمنے یاسے نهٔ دی
صفه چه مونځ به پر کیدهٔ لو ادیرو ۲ و نیوے

بې لارې مله ! ته په لار نه شوې
زړه په دینوم هم یار نه شوې

په نیمه لار کښې ګرېوان او خټکې
او ښکې م ستا د غاړې هار نه شوې

خوږه زړګی دې د قدم لاندې کړل
هیڅ ته د ځانه خبردار نه شوې

د ژوند منزل ته رسیدل نهٔ دي ګران
که د وخت لاسو کښې ایسار نه شوې

داسې دې آزاد دې زمانې ځانه کوې
ده په خپل قدر و مدار نه شوې

خوږه د خزانې نه شو بدل را بدل
د ژوند خزانه ! ته بهار نه شوې

زاهده ! داسې بېر سړې سینه شې !
ته د پردي غمه، اوزګار نه شوې

د باغ ګلونو یم چهرے ته په حسرت وکتل
سرو انګارو نو ا ګیتے ته په حسرت وکتل

شوم ستومانه په توبه مړے یم عزیزو اونیو
ساقی چه ماتے پیمانے ته په حسرت وکتل

بیګا محفل کښے چه خبرے ستا د مینے کیدے
سترګو یم رو غونډے سینے ته په حسرت وکتل

ساقی ور مخکښے کړه پیاله خو واعظ واند خسته
ګکنے نو چرے پیا ځاسے ته په حسرت وکتل

پښتو را مخکښے شوه خو مینے ورته ورنکړو لاس
په شا یم بیرته ستا کوځے ته په حسرت وکتل

زړه یم تینګ نشو ړنړے و ښکے چه د سترګو لاړے
ورځے چه ستا د زلفو شپے ته په حسرت وکتل

د سمندر چپو چیره کړلو د ما نه سره
ناصحه! چا چه ... ته په حسرت وکتل

جو لئ کښې د ژوندون یوه ذره نه پیدا کیږي
تسکین چې څهٔ ته وائ زړهٔ راحت ! نهٔ پیدا کیږي

واعظه ! خود به څهٔ اشنائے ته د      بې محو
سجده له د تندي چې بې کعبه نهٔ پیدا کیږي

ساقي مینه د ختم شوه که کښې جوړ سترګو
سرې کښې چې په څکو هم نشه نهٔ پیدا کیږي

حق ! اوګوره ګکو کښې مے د سترګو خپلے سترګے
اشنا د لته سنګار له آئینه نهٔ پید کیږي

حق دا خند شرم مهٔ کوه زاهده ! جام د مینو
دا رو له به بیا هُم کورے زړه نهٔ پید کیږي

د قامت عنبرے پریده، په زلفانو پسې مه ځه
د منصور غوندې ازاد شه په قیدیانو پسې مه ځه

په زړه ټول سوري سوري دي خو د ژوند لمنه نښي
اے د ژوند په رنګ مینه سرو ګلانو پسې مه ځه

کښې
عبادت به دې لاهو کړي د عمرو نو به یې جام
په جنت ورک لیونیه! دے رندانو پسې مه ځه

د ژوند زړه به دې سوری کړي ساه به نښتے اغستلے
په بڼړو باندې مینه! سرو چشمانو پسې مه ځه

ستا د مینې خریدار یم، په خلوص دے اخستے شم
اے بې مخې سودا کړه! بادشاهانو پسې مه ځه

رڼړا دې به د ژوند بیلے د محل په رڼړا ورکه!
خپل داغونه ځان ته بل کړه رڼړاګانو پسې مه ځه

ترخې ورځې که زاهده! خوږول د ژوندون غواړې
میخانې ته ځه بې فکره، واعظانو پسې مه ځه

لاسونه چه یم ښکته د دُعا نه پاتې کیږی
سرې ورستو په ژوند بانډِ ستومانه پاتې کیږی

ښکاریږی ستا په سترګو کښې قیصه د چا د ژوند
اشنا چه ائینه دې ته حیرانه پاتې کیږی

چمن کښې که اَزغی دی د سپرلی نه مخ په دیخوا!
تیارے عیش په ورستو د رڼا نه پاتې کیږی

دا نه چه یم اشنا ګنې څه نیشته دے په زړهٔ کښې
خبرے یم په خُلهٔ کښې د حیا نه پاتې کیږی

سوالونه خلق غله د بهار کوی له خدایه!
ګلونه چه پرې وروستو د خپل ځانه پاتې کیږی

ګناه شمع ته نشته که سلګئ کوی خاموشه
قیصه د لته نیمګرے د هرچا نه پاتې کیږی

زاهده! که ژوندون دے ملمیتوب کښې شته لمبه
ګلونه په سپرلی کښې د خندا نه پاتې کیږی

څه ازغي ازغي ژوندون دے څه نا ترسه زمانه ده
په خوږه د کښې تراخه يت دی دغه جام او ميخانه ده

خلق هر څه، هر څه وائي، چې يې خلے چې يې خبرے
د ازله تبان م خوبي دی زړه م لو يه بتخانه ده

ژوندم څه دے تپوس مکړه د خواشے خبرے پريږده
د دوړو نو حسرتو نو، يوه چکه پيمانه ده

ساقي د ينے زمونږ تو ے شي نوم پر ستا اوشي محفل کښې
دُعا کانے کوه مونږ ته چه د چکه ميخانه ده

نه مونږ کوے پښته، کړم زلفې زيب دے مکړه
دا يو ترينې شان حقيقت دے يوه ستره افسانه ده

يو څو اُو ښکے څو غمونه، اسويلي يو څو شعرونه
ستا د مينې برکت دے، ستا د حسن نذرانه ده

نه يتا باندے زه پوهېږم، چه ديدن له د يار څے ته
دا کاروانه څه دے هسے اے زاهده بهانه ده

محلونه په چمن کښې ځا ته جوړ شي
د چا "وینه" د ګل حُسن له نخوړ شي

کړې په زړه کښې د چړیو هسې بلیږي
اورونه میلنې هغه نه دي چه به سوړ شي

د کوثر ارمان بیا نهٔ کوي واعظه
د غمونو په شرابو چه خوک موړ شي

ستا د یاد کاڼي م خدائے خبر چه پرېږدي
محلونه د شیشو کړم ما له جوړ شي

د ډوند چړ ورته ته مهٔ بنایه زاهده!
د وختونو په تنور کښې چه خوک زوړ شي

○

شي چه راوالوزي زما په قبر
لښتي نیشي د میخانې کس دو نه

شونډے چه د ما ته شوے ګفتار کښے په خندا
غنچه دے سرخی شوے رخسار کښے په خندا

زړه کښے م ازغی شی تیر وختونه ستا د مینے
چرته چه څوک اوینم ګلزار کښے په خندا

پوهے شم ملګرو چه اقرار کوی په پته
څیره را نزدے چه شی انکار کښے په خندا

ځاړی غوښتی ځاړی د ژوندون په ناکردو
هسے د ناکامه سخ بهار کښے په خندا

زړه م بدګمانه شی سینه کښے ستا په ذات
ستوری چه راکوری انتظار کښے په خندا

بیا م زړه تنګ نه شو درته ادریدم اشنا
مخے له چه راغلے پرون لار کښے په خندا

خیر دے که د سترګے وی راضه ! او ښکے او ښکے
نه تیریږی ورځے دے بازار کښے په خندا

اوړ به ساقي په میخانو پورې شي
نن کړۀ ورونه دَ لوّ بو پورې شي

دَ محل حوا کښېږي د پېڅو په سر
باده! خندا دې په چړیو پورې شي

ورستۍ سلګۍ یم ده بڼ اخوا ګوره
هسې نهٔ لوړ د په بڼړو پورې شي

یو ځل به واړه وی دنیا دَ عقل ،
ستا سو خندا په لیونو پورې شي

چه ماشوم زړهٔ وی پښتې وینې وینې
اوږ دے د ژوند په رنګینو پورې شي

لوړ ګوی هوّل په بے ژبے خزان،
ګوټے بهار کښېږي په غوټو پورې شي

زاهده! مهٔ خانده رندانو پورې
هسې نهٔ، اوږ دے په سجدو پورې شي

اشنا رختو چه دِ کوخته سره ته معلومه نهٔ وه
ووم مُسلمان و لے کعبه سره ته معلومه نهٔ وه

د زړو نذرخوا بدهٔ م شو تول زهر د اعتبار لاسو کښې
اشنا در غلط زمانه سره ته معلو مه نهٔ وه

ستوری م او پیښل بنږو کښې تول شپه دا دمان
د خولا تار دِ وه وعده سره ته معلومه نهٔ وه

بنه ده چه ستر کے د قاتل شوے راهبرے اشنا
کنے د عمر پیمانه سر ته معلومه نهٔ وه

زهٔ خهٔ خبر ووم چه ملبه به وی غوټیٔ دَ چمن
د سرو کلونو نیند سره ته معلومه نهٔ وه

خدائے دِ ستا زلفو سره بنهٔ وکړی چه غلے شوم
کنے بدرنے د شپے نښته سره ته معلومه نهٔ وه

نهٔ به جنت ته ووم در غلے اے زاهده منروړ
د عاشقانو معتبر ه سره ته معلومه نهٔ وه

چه ستا د سترګو په بڼو پوهه شوم
اشنا په ښخو د ازغو پوهه شوم

چه په سرخئ د اننګو پوهه شوم
اشنا په ژبه د ځیوو پوهه شوم

چه دې راواړول د سترګو په جام
ایله ساقي په خوند د څکو پوهه شوم

زړه مې راوینی شه ناڅاپي په هیبت
څنګه دې غله! په ښکالو پوهه شوم

زه څه خبر ووم چه سجدې دې ټکینې
نن په قانون د میخانو پوهه شوم

ځان چه ساده کړې ورته ګورې ښکلې
نن زه په چل د اشنو پوهه شوم

ناهډه! هر څه داو کوې په حسن
نن ده دې محفل کښې په کتو پوهه شوم

سوړ د ژوندون په نیلي یم، د پرېوتو یره ده
ما سره خدائیګو د زړګي د خوږېدو یره ده

ته راروانه ئې بدرګې د تصور لاره کښې
څوک به راویني شي د بازیو شړېدو یره ده

زړه د مخفه شوے چې پېره ساه یم څو به شوله
بیا به وریځ کښې د سپوږمۍ د ورکېدو یره ده

دَ وخت غمونه یم را پېنځ شو په معصوم تصور
ما سره ستا د ماشوم خیال د وېرېدو یره ده

مخے له راغلے آشنا چې یره موده پسې لاره کښې
دَ پښتنو او ښکلو د ستر ماتېدو یره ده

ستا تصور سره ناڅاپه یم آزمې شو را یاد
زړه یم د ړ زېږي ګلړ ستا د خوګېدو یره ده

نړاصد د بېخو په سر څې د پیمانو لوړی له
ورسره څوړه د ساقي د پېښېدو یره ده

ستړګې دې آشنا نه پرې بدې کړې
لاړې، تا په ما وعدې بدې کړې

شونډې چې مسکې د رقیب سترګو ته
خندګه دې په لعل ایرې بدې کړې

تور به لیونتوب دد ې نه غوځه وي کل؟
نن رم په یو جام توبې بدې کړې

ته او سې خوشحاله زه غمژن بنده یم
تا سره ورځې شپې بدې کړې

راغلې چې مزار ته په لمدو سترګو
ما ته دې زړې ډیوې بدې کړې

ونکړې سجده زاهده! یا م کوه
بنګلو د نظر کعبې بدې کړې

خیال ته چې یم را غلے ، د یادونو ښاپیرئے
و ښیښې یم شوے زړهٔ کښې د دړه دونو ښاپیرئے

ما چه د چمن ارزو ته اوکتل په مینه !
شوے مړاوے د ګلونو ښاپیرئے

ښار ے جزیرے د تصور یم شوے اباد ے
خوا له را نزدے شوے د خیالونو ښاپیرئے

تا چه د هم څولو سره او ویښ بیده ړئیے
ما ته شی را یاد ے د خوبونو ښاپیرئیے

بلې چه تړلوے یم وی د اوښکو په بڼړو
زړهٔ کښې یم اوسیدی د غمونو ښاپیرئیے

لاړو کښې پراته په وی ملګرو چاودے د زړونه
پیغلے شوے بیا د بهارونو ښاپیرئیے

غم خو را له کم کړی څه نه څه اخر زاهده
خدائے د ښې کړی د سرو جامونو ښاپیرئیے

یار که همیشه په وعده پاتې دے
بیا یې هم اعتبار د راتلو پاتې دے

حال به در ته وایم د زړه وار اوکړه
لا خو دې اثر د راتلو پاتې دے

زړه هم دے موړ شوے د ښځو نه
هسې هم عادت د کتو پاتې دے

عشق هم د پښتو په وقار وژني ځان
مانه دې محفل په سجده پاتې دے

ژوند چه څوک راکاږي د دوزخ په لور
ستا منډۍ زاهده له هغو پاتې دے

★

ساقي لښتې، څو بو نه ځان سره کړه
د ویښو څک جامو نه ځان سره کړه

کړې دې پیرزوستي لږ په سترګو کښې را
داذ بنیښې جامو نه ځان سره کړه

چا وئیل چه نشته ګلستان زما په زړه کښې
شته دے پرهرونه د دوران زما په زړه کښې

هر وخت را سره کوی خبرے د بے محوٗ
خدائے خبر چه څه کوی یاران زما په زړه کښې

څه د آشنا را شه، رهبر شه د غمونو
هسے نا ګراه شی کاروان زما په زړه کښې

مړ نو یوځے اوښکے په ځوانئ م آشنا یانو
نیشته د ژوندون یوهتے ارمان زما په زړه کښې

ستوری د شی بل په توره شپه کښے د یادونو
راشه لږ شان وګوره آسمان زما په زړه کښې

خیر دے که خفه ئے نو بیا لاړه شه بیشکه
مخکښې لږ شان وګوره خیل ځان زما په زړه کښې

هسے د نا کامه درته او خادم راهده!
لاړے جوړے کړے دی خفګان زما په زړه کښې

۲۱ / کړه زما نه صبر توبه نهٔ کیږی
ساقی په تنده یا نډ زور نهٔ کیږی

عقله ! ته ما ته لاره مهٔ سمه وه
د جنون عقل سره کور نهٔ کیږی

تهٔ چه ئې نهٔ پیژنې څېره بنه ده
خانیه ! کلی خو په زور نهٔ کیږی

شمعې ته ګوره، څنګه غلې سوزی
رقیبه ! مینه خو په شور نهٔ کیږی

وی پاکه مینه تر قیامته پیا که
زاهده ! داد چا په تور نهٔ کیږی

تۀ زما د ترخ ژوندون ملګرے نۀ شوے
کۀ م واندے د زړۀ تا پسے اوبۀ شوے

ستا ارمان وو چې رقيب په کفن شوم
تماشے له خو بيا راشه کنه څۀ شوے

دَ ځوانۍ شيشه م ماته شوه سپرليه!
د ژوندون کلۍ م هغسے وانۀ شوے

تصور ته يې دې عمر دَ حُسن راغے
نو وريځے دے د زلفو راپه زړۀ شوے

د آشنا خوږۀ يادونه راته هير شو
بختوره سپرليه! ماله خو سپيرۀ شوے

دَ صبا ستوريه! ستا په اسرۀ ناست وم
زۀ دِ دغه شانے پريښودم اودۀ شوے

تۀ زاريږے د دے ښکلو نه زاهده
ولے خدائيګو که د چا نظر کښے بند شوے

اشنا چه ځان ناجوړه کړي تیږیږي غلې غلې
سینه کښې م پخپله زړه دوړیږي غلې غلې

اشنا! جوړے خفه شو رقیبان م په رالو
خبرے اشارو باندے چه کیږي غلې غلې

وعدے دے تیر ندي شي د راتلو م تمتو له
محفل د رڼو ستورو چه خوریږي غلې غلې

اشنا! "چه د یادونه هم اوس نه راځي شریږي
محل" دے راشه اوګوره نړیږي غلې غلې

دا نه چه په جفا م کړے اوس مړ شو د مینے
خو دومره قدر ے ده چه اوس بلیږي غلې غلې

"یادونه" د زړو سوکو له راځي ستا د مینے
ډیوے د ځا په قبر چه بلیږي غلې غلې

ښکاریږي جوړ غمونو پرے زور کړے دے منګرو
ځواني کښے چه زاهد عزیب دوړیږي غلې غلې

ماتم چه په زړهٔ کښې شو ازغی ستا د بڼو
پوهه شومه چه ګرانه ده یاري ستا د بڼو

یاد دې یم دې چیرې ولې څه وکړم آشنا
هیرې کړي خبرې سرکشي ستا د بڼو

خهٔ نن خو ما وګوره په سړهٔ شي رقیبان
څه به یاد درومونږه ساقي ستا د بڼو

ځان له په خندا اشي ټول ورغلي پرهرونه
ما ته چه خبرې څوک کوي ستا د بڼو

هر وخت تصور زخمي کول دې په ازغو
ګرانه ده زاهده ته شاعري ستا د بڼو

★

څوک عبادت کړي د جنت په طمعٔ
څوک د آشنا په سرو ونو خوب غواړي

زاهده عقل په زور هیڅ و نکړل
اوس په آخر کښې لیونتوب غواړي

ملګرو! وېښ کړه اوده تيرے شي
د ژوند دوه ورځې دي چه بېنے تيرے شي

هره شپه نه وځم اشنا ستا په تکل،،
حرم شي پاتے ميخانے تيرے شي

ديدن دې کم شه د قيامته نه وي
په زړه مې څومره زلزلے تيرے شي

"ګورمه شاته" د حسرت په نظر،
ځمه په مخه" ستا کوڅے تيرے شي

پښتنے بيا هم پښتنے وي اے حزه،
پټے په څه او ښکے ولے تيرے شي

ستا د ديد ارمان په زړه کښے راوړم
په دے لاره چيرے قافلے تيرے شي

زاهده! ستا يم ځکه څم او زلفے!
شپے کړه په دے رنګ ورځ شپے تيرے شي،

همیشه تږې کړې په هغې لارې
کله مړا چې اشنا په دې لارې

کله نا کله چې په پسینه ور شم
"خمه" یاد دی مړا ته نږدې لارې

خوږه نا ترسه دې موږ تیر و بېړ کړې
ستا سو د چم کږې وکې لارې

د ژړه م مخې سره خیال او نکړو
عبث م روستو بیا کې لارې

ستا سو د چم خلق ته مترکو کېږي خوږې
د زاهد خوښې دې تیارې لارې

ستا چه منګلې د بنګړو ډکې شي،
شپې م د خیال د زولنو ډکې شي

ته چه کاسه په لاس ساقي اودرېږې
سترګې دې ماته د نوټو ډکې شي،

زه په نن دَ رشم خو آشنا یرېږم
چه ستا کوڅې به د پردو ډکې شي

ماته کاسې دَ اوبو هُم کمرانې دي
خو چه ساقي په لاسو سرو ډکې شي

ماته پښتو او قسم هیر کړی آشنا
سترګې چه ستا د اوښکو سرو ډکې شي

ته ماته لاره دَ میخانې سمه کړه
شپې م دې خیر دے د ازغو ډکې شي
زاهده! خدائ کو چه دُنیا واره وُه
کنه آرادے موږ پښتو ډکې شي

نن مې دې زړهٔ کښې ميلمانهٔ يادو نه
څو پښتانهٔ د ډانهٔ يادو نه

شوې زړه غوښې اسويلې دې وکړه
تا به ککو کښې مې ليدهٔ يادو نه

دَ اشنا خياله! تصوّر ته مې را شه
ولېتې وخت نه چرې تراخهٔ يادو نه

سيک به آو نهٔ کوم ستا خيال ته اشنا
دې کړ بلا زما په زړهٔ يادو نه

ملګرى نهٔ يې پرېږدى په نيمه لار کښې
دَ پښتنو دى پښتانهٔ يادو نه

شم خنده نيوے چه په پښه ورشم
ستا په کوڅو کښې دى پړانهٔ يادو نه

زاهده! ګمان مې کړو ناجائزه په قصد
اشنا مې ستر کو کښې کاته يادو نه

# اعتبار

عبد الرؤف زاهد
ثمینه لاج T.84
شیخ ملتون ټاون مردان

خورونکے: پښتونخوا کتاب خائے شمسی روډ مردان۔

# اعتراف

دواړه راته ګران دي ، قلندر دے ، که حمزه دے
يو مې قافيه ده د غزل ، بل مې ، رديف دے

# اعتبار


د کتاب نوم: اعتبار

مصنف: عبدالرؤف زاهدؔ

د چھاپ کال: جولائی ۲۰۰۲ء

تعداد: ۵۰۰

کمپوزنګ: ګرافکس ورلډ ایم سی پلازه

بعیه: ۱۵۰

د چھاپ ځائے: پښتو نخوا چھاپ ځائے شمسی روډ مردان

"عبدالرؤف زاهد" د پښتو د جدید غزل یو معتبر نوم دے۔ د منفردې لهجې او د خانګړي اسلوب خاوند زاهد د پښتو غزل ته یو مخصوص نوې رنګ بخښلے دے۔ لب و لهجه ئې د انفرادي خصوصیاتو حامله ده۔ ځکه نو د جدید پښتو غزل په استاذانو صنعتکارو فنکارانو شاعرانو کښې ئې هم ځان ته شناخت پېدا کړے دے۔ د پېشې په لحاظ وکیل دے۔ خو د شهرت سبب ئې وکالت نهٔ دے۔ په تولهٔ پښتونخواه کښې د دانشور او شاعر په حېث پېژندګلي لري۔ کمال ئې دا دے چې د هېڅ قسم ادبي پروګنډو قائل نهٔ دے۔ کهٔ هر څو یوه نظریه لري۔ نظریاتي ترون ئې کلک دے۔ خو په ادب کښې دړله بازي قائل نهٔ ښکاري ګني سخن فهم هم دے او دغالب (ستر حمزه شینواري) طرفدار هم دے۔ دا ئې د فني فکر د عظمت نخښه ده۔ او په خپل ځان د اعتماد مظهر هم۔

زاهد د شاعرۍ په هر صنف قدرت لري۔ ولې غزل سره عشق لري۔ ځکه نو د غزل په باره کښې ډېر سنجیده دے۔ د غزل د صنف په خلاف وړه خبره هم نهٔ زغمي۔ ددې سبب شاید دا وي چې زاهد پخپله پخپل غزل کښې ډېرې نوې تجربې کړې دي۔ هغه د نظم په مقابله کښې غزل زیات مؤثر او د ابلاغ د کمال وسیله ګني۔ او رښتیا هم دا دي چې غزل ډېر "ظالم" صنف دے۔ د ګلونو د خوشبوئې د سپوږمۍ د رڼا نه۔ د نغمې د سرود نه د مازیګر د ارمان نه، د غم لذت نه۔ د وصال د سرور نه او د میو د خمار نه رنګونه اخلي۔ د فطرت د جمال نه ښکلا کشید کړي۔ د زلفو په تیارو کښې د رخسارونو په لمبو د شونډو په انګارونو د نظر په غشو د ښنو په نېزو کښې د زیست لارې ګوري۔ دلبري او دلربائي د غزل صفت دے۔ ولې د ژوند تراخهٔ هم چې کوم تاثیر لري۔ نهٔ د زهرو نهٔ کم دے او نه د تریاق نه کم۔ د زاهد د غزل کمال دا دے چې پخپله لمنه کښې د ژوند د ترخو، د طبقاتي کشمکش۔ د جبر و استحصال د انسان د لاچاریو او درد د احساس نه اخستے تاثر د ښائست د جمال او د رومان د جذباتیت سره داسې ملګرے کړي چې هم د محب د درد درمان شي او هم د محبوب د مینې خیال شي۔ دا د زاهد انفرادیت دے۔

غزل د زاهد خیال هم دے تخیل او تصور هم، تورې زلفې شنه خالونه او د ګلو رخسارونه د بلبلو نغمې۔ د هجر وصال کېفیتونه او بیا په تېره تېره د عشق آداب چې کومه لهجه غواړي۔ هغه د غزل د تغزل لاره ډېره باریکه او نفسیه ساتي۔ ولې زاهد چې د جدید غزل د استاذ درجه لري۔ هغه درد ته، احتجاج ته، اسوېلي ته تردې چې بغاوت ته هم په دغه لاره د قدم کېښودو چل ښودلے دے۔ او شائد چې د غزل د جدیدیت دا یوه اهمه تقاضا هم وه چې مقصد دې په غزل کښې ځائے پېدا کړي۔ ګني ځان به د چا تر احساس ونه رسولے شي او زاهد مقصد ته په فن کښې د ځائېدو هغه هنر ورکړو۔

وئیلے شي چې دا هنر د اردو غزل ته یو څو شاعرانو بخښلے شوے وو۔ پښتو غزل کښې هم داسې تجربې اکثر شوي دي۔ ولې زاهد په دغه تجربه کښې په فني توګه کامیاب ترین غزل خوان شاعر ښکاري۔ دا به مبالغه نهٔ وي۔ "اعتبار" به د پښتو د سخن فهمو اعتبار ته دا ګواهي پخپله پېدا کړي۔ خو شرط د رښتیاو د ګواهۍ هم دے او د فن د اګاهۍ هم۔

پروفېسر ډاکټر راج ولي شاه خټک
ډائریکټر پښتوا اکېډیمي پېښور یونیورسټي

اوس ستا د درد دا رو، زړګیه، چرته پاتې نهٔ شو
ګوت چې کاسه کښې له ساقیه ، چرته پاتې نهٔ شو

د کلی خلق یو ، د ښار لارې ، موندل عذاب شی
په نیمه لار کښې ، له ښاریه ، چرته پاتې نهٔ شو

په خلقو پانې د ګلاب نولی، چې خوښ ئې نهٔ دے
مونږ له ازغی هم له " ګل خویه" چرته پاتې نهٔ شو

مونږ به دې څهٔ رنګه خوشاله شو راتلو ته اخر
ستانه دوه ګله هم سپرلیه چرته پاتې نهٔ شو

تاسره غم دے چې به څهٔ وائم زاهده، یار ته
ماسره غم دے چې سریه ، چرته پاتې نهٔ شو

انتخاب۱۰-۱۱-۲۰۰۱

مابنام . کور (شیخ ملتون تاون مردان)

O

لاس چې له روزګاره سرے وُباسی
ژوند کښې به څه لاره سرے وُباسی

ستا د محفل خلق رېښتیا نۀ زغمی
هېڅ بې هېڅه یاره سرے وباسی

ستا زړۀ کښې اشنا لاره موندې نۀ شی
غر کښې خو به لاره سرے وباسی

ستا د زلفو سېورے کۀ ورځې په لاس
لاره به تر داره سرے وباسی

ظلم ته زاهده! ظلم نۀ وائې
تا خو چې له ښاره سرے وباستی

۸۴/۷ مردان

په تلو کښې سړے وژنی ، په راتلو کښې سړے وژنی
بېرې د انتظار مې دی په پښو کښې، سړے وژنی

دا څنګه خوارۀ زهر لری شونډو کښې ګل مخی
پوهېږې پرې څوک ناء، خو په وعدو کښې سړے وژنی

دا چاوې چې ساقی ، تلے څوانی راولی ، بېرته
ارمان د یو نظر ئې مېخانو کښې سړے وژنی

مُسېږې کۀ هر چاته ، خو خاموش اُوسی پئی مخی
دا څۀ رنګه هُښیار دی په خوږو کښې سړے وژنی

ارمان مې د پښتون نظر کوؤ ، سره د ژونده!
اوس یو دوه کښې حېران یم ، په کتو کښې سړے وژنې

هر څو ئې کۀ زۀ مړ کړمه زاهدهٓ! خو مړ نۀ یم
د یار د کلی خلق په پښتو کښې سړے وژنی
۱۹-۱-۸۴

پښتور ۸ بجے د شپې

O

نهٔ پرېوځی زمکې ته ، اشنا ، ورته لاس نیسی
اوبنکې ملغلرې شوې زما ، ورته لاس نیسی

هر بنکلی ته گورۍ چې شېوه لری د ظلم!
هر مئېن ملگرو ! په دُعا ورته. لاس نیسی

شور ورسره مهٔ کړه شکست وُمنهٔ واعظ !
خېر دے ساقی ورکړه ، په رضا ، ورته لاس نیسی

دواړه خُبنو ملگرو ! کهٔ "واعظ " دے اؤ کهٔ "زهٔ"
"یو" ورته بنکاره اؤ" بل" په غلا ورته لاس نیسی

تانه به رقیبه زاهدّ څهٔ رنگه سوال وُکړی
دۓ داسې" سائل" دے چې " باچا" ورته لاس نیسی

۱۶-۲-۸۴ سحر ۔ مردان

O

زما په خُلهٔ کهٔ ستا ، اؤ ستا په خُلهٔ زما نامه ده
بیا هم زما اؤ ستا په مېنځ کښې لویه فاصله ده

مونږ ځله ویروی خلق ، د مرګ د دبدبې نه
د ژوند د لاسه مړو له خو مرګ ، هم یوه بانه ده

د زمکې آسمان فرق دے زما اؤ ستا په مېنځ کښې
ستا سل کعبې واعظه، خو زما یوه کعبه ده

اشنا! تهٔ مې پښتو ، زهٔ دې غرور ماتؤل غواړم
ستا دغه فېصله ده ، زما دغه فېصله ده

سؤونه لېونی دی خو دوه سترګې د یار نشته
کوڅه کښې بلا خلق دی، زاهده ، خو سړه ده

۱۸-۲-۸۴

غرمه په لاړه مردان

O

چې دیدن دې کور له راؤړو، د وعدو عمر دې کم کړو
شاعرۍ مې شوه نیمګړې، د خوږو عمر دې کم کړو

خدائې خبر چې به ترکومه، اشنا ما دې انتظار کړو
چې د نۀ راتلو دې وُوې ، د سلګو عمر دې کم کړو

دا تۀ چا کړې له نظره ، مُسېدل چې درته ګران شو
د خزان عمر دې ډېر کړو، د سپرلو عمر دې کم کړو

هریو تن دې په دیدن شۀ، چې دې وکتل محفل ته
شرابي نظر دې څۀ وو ، د کاسو عمر دې کم کړو

لکه شمع چې بلېږې، د زاهد روښانه فکره
کور د زړونو به رڼا وی د تیارو عمر دې کم کړو

۹ . ۳ . ۷۴ مردان



ستانه چې د سترګو په انکار کښې دېوې مرې شوې
مانه د ژوندون په هره لار کښې دیوې مرې شوې

ښکارۍ چې پیرزو دې په ما ګوتې نۀ شی د منیو
څۀ رنګه ساقی! زما په وار کښې دیوې مرې شوې

ما ورته د اُوښکو چراغان وکړو راځی ـ دې
خبر دے کۀ زړګیه ! په ټول ښار کښې دیوې مرې شوې

نور کله خو بلې وې ملګرو ! په خزان کښې
دا کوم یو ستم دے چې بهار کښې ډیوې مړې شوې

ډېرې مې بنو په اهتمام وې بلې کړې
رانغلې اشنا، په انتظار کښې ډیوې مړې شوې

نۀ قبلیږی سوال دې د دیدن ښکاری ، زړګیه!
نن چې بې بادونو په مزار کښې ډیوې مړې شوې

خلقو ته زاهدهؔ ! استاذ ښکارے د " بیان "
ولې دې اشنا ته په اظهار کښې ډیوې مړې شوې

۱۹-۴-۸۴ د پنډۍ په لار

O

ګورو کۀ یو بل ته خو نیتونه مرور دی
خنکه به څۀ وایو چې مو زړونه مرور دی

ښکاری ستا یادُونه مې د زړۀ نه پورې وځی
نن چې مې د سترګو نه خوبونه مرور دی

سوال دې د دیدن په یو زیارت هم پوره نۀ شۀ
تۀ یوازې نۀ ئې ، جهانونه مرور دی

ژوند به مې ژوند پاتې ، ګله ! نۀ شی چې خفه ئې
نن خو لږ مسکے شه بهارونه مرور دی

تۀ مرور نۀ شې ګنی ساه به ترنه وځی
خبر دے! له زاهدّ کۀ علمُونه مرور دی

۲۳-۷-۸۴

د پېښور په لار

O

هغه خلق هم زما په زړۀ کښې وسېدۀ کړی
زۀ چې په قبله خمه ، دوی تلۀ په نمرخاتۀ کړی

خدائے خبر ، د کوم ستم آغاز دے ستا د لوری
نن چې مې سینه کښې زړۀ بې واره درزېدۀ کړی

خکار د زړونو ښنکه په هنر کوی ګل مخی!
ګوری مُسېدو کښې ، خو په خلۀ خبرې نۀ کړی

هرڅو کۀ اشنا ګرمی مې نیشته په نظر کښې
بیا هم چې در وګورم ، ستا زیړ اننګی سرۀ کړی

دا خو یو زاهد دے چې بې غمه دے ، له هر څۀ
چاته چې مزل پروت.وی هغوی خوبونه څۀ کړی

۸۴ - ۸ - ۵ سحر بجلی ګهر مردان

O

یو زما کیله ده ، پوره کیږی نا
بله ستا وعده ده ، پوره کیږی نا

ډېر څۀ دي راوبخښل ، د زړۀ سره
بیا هم تلوسه ده ، پوره کیږی نا

عمر وشو ستا د زلفو ذکر شے
دا خنګه قیصه ده ، پوره کیږی نا

سترګې کۀ مې ستا انتظار سپینې کړې
بیا هم نیمه شپه ده ، پوره کیږی نا

عشق کښې کۀ زاهده! لرې لارمه
لاره یو په دوه ده ، پوره کیږی نا

۸۴ ـ ۱ ـ ۲۷ غرمه مردان

ښاوی )

O

مقتل کښې کۀ مې شپه راشي ، په ګور کښې کۀ مې شپه شي
منزل به مې سحر وی په هر کور کښې کۀ مې شپه شي

ستا زلفې سپينې مۀ شۀ ، په پېغور د رقيبانو
هر څو کۀ د زړۀ سره! په هر تور کښې کۀ مې شپه شي

رقيب ته به مې سر خکته وُنۀ وينې په ژوند کښې
اشنا! لکه "خوشال" په رنتمبور کښې کۀ مې شپه شي

څهره دې شفق خېزه ، هېرېدې نۀ شي لۀ مانه
د وخت د سمتونو په سور اور کښې کۀ مې شپه شي

ستم د اشنايانو ، به مې هېر نۀ شي تر عمره!
زاهده! د ژوندون به هر بو لور کښې کۀ مې شپه شي

۸۴ - ۱۱ - ۱۷ مردان

ال حان ختړک

O

ستا د ځوانۍ په رنګینو کښې رانه ځان ورک شه
حیرت اغستې آئینو کښې رانه ځان ورک شه

ماخو وې زړهٔ کښې ، چې آسان به وی ستا نخښې موندل
ستا په تکل خو ویرانو کښې رانه ځان ورک شه

عقل مې ګله ! وار خطا شهٔ ، یوه لار نهٔ وینی
ستا د پلوُ په لېونو کښې رانه ځان ورک شه

نهٔ مې طبعیت کښې سجده شته دے ، نهٔ مې زړهٔ کښې صبر
خدایه! دا کومو استانو کښې رانه ځان ورک شه

یقین مې نهٔ راځی زاهده! چې څهٔ راشی په لاس
ستا د جنت په افسانو کښې رانه ځان ورک شهٔ

۲۳ - ۱۱ - ۸۴

ماسخوتن مردان

هيڅ خبره نۀ ده ، کۀ تراخۀ راته تراخۀ شو
مړ به شم یاران کۀ مې خوارۀ راته تراخۀ شو

دا پوښتنه وکړه اے بې لوظه! د خپل خوئی نه
ستا خوارۀ یادونه ، چې په څۀ ، راته تراخۀ شو

زړۀ مې تکور وموند ، په لمبو کښې د حالاتو
ستا د زلفو خوا کښې وسېدۀ راته تراخۀ شو

ښکاری ، چې تلخی ماحول خوره کړه په هر څۀ کښې
نن دې چې خوارۀ کاتۀ راته تراخۀ شو

دمره تراخۀ راکړل ، د اشنا خندا، زاهدۀ!
نن د هریو ښکلی مُسېدۀ راته تراخۀ شو

۱۲-۱۲-۸۴

درې بجې مازیګر (مردان)

هر ځائې چې قیصه د خپل پردی ده ، په دے وجه
تاسره مې ګله! اشنائی ده ، په دے وجه

.

یو غوټۍ مې ګل ، د ارمانونو چرې نۀ شوه
هېره مې نامه د پسرلی ده په دے وجه

تل چې د نفرت په لارو کر کړو د مینې
مونږ سره د "خلقو" دشمنی ده په دے وجه

تا خپله خندا د رقیبانو په نصیب کړه
خواره د میئنو زندګی ده، په دے وجه

ستا هسې زاهده! غُربت هر څوک دے وژلې
ستا قیصه، قیصه، د هر سړی ده په دے وجه

۲۹-۱۲-۸۴

سحر د بجلی کهر په لار مردان

تسلي زړۀ له ورکړ ، خو تسلي نۀ مني
مينه کښې هيڅ څوک هم خبره ، د پردي نۀ مني

بې خُوږولو کۀ په پانو ئې د چا لاس نۀ پرېږدي
څومره بې قدره دے ګل ، بيا هم د ازغي نۀ مني

ستا په ديدن کښې مې ژوندون دے، خو منت هم ګران دے
هر څۀ مني ، خو ولې عشق مې سرکوزي نۀ مني

په هر قدم مې مړ کوي، کۀ په هر دم مې وژني
بس خو طبعيت مې د پئي مخو دُشمنی نۀ مني

تۀ ورته هر څو کۀ قيصې ، د عذابُونو کوې
زړۀ مې خود سره دے ، زاهده! پابندي نۀ مني

۲۷-۱-۸۵

غرمه د بجلي کهر په لار مردان

خندا کښې رانه بیل نهٔ شوے ، سلګو کښې رانه بیل شوے
خفه نهٔ یم د زړهٔ سره ! پښتو کښې رانه بیل شوے

راتلهٔ دې بیا ترعمرهٔ پورې نښته دے ، پوهیږم
هر څو کهٔ په لوظونو ، په وعدو کښې رانه بیل شوې

هر شے به شی بدل ، ولې سڼا خونی به بدل نهٔ شی
را څهٔ د کور او کلی ، په قیصو کښې رانه بیل شوی

را بنه وه ، چې رڼا دې د دوؤ سترګو راسره وه
اشنا ګنی د ژوند به تورو شپو کښې رانه بیل شوې

د ګلو په موسم کښې ، زما ساه وې ، راسره وې
زاهده! د دوؤ ورځو په ازغو کښې رانه بیل شوې

۲.۲.۸۵

د بجلی ګهر په لار سحر مردان

ما په ژړا، تا په خندا فاصله کمه نۀ کړه
دُمره تراخۀ ؤو چې هېڅا فاصله کمه نۀ کړه

ما خو د سترګو تور اُبۀ کړل ، چې مې زړۀ سپینوۀ
لرې شُو پاتې ، چې اشنا فاصله کمه نۀ کړه

خدایه! د کوم کافر په مینه کښې ، مې ورک شو قرار
د شپې اؤ ورځې چې ، دعا ، فاصله کمه نۀ کړه

زړۀ مې نرے شو چې دې وخندل ، خو غلے شومه
د پښتو کلی کښې خندا، فاصله کمه نۀ کړه

منم زاهده! تشه مینه، د. خلوص پیکرئې
چا زړۀ کښې ځائے نۀ کړې تۀ، چا فاصله کمه نۀ کړه

۱۷-۳ - ۸۵

ماسخوتن ۱۰ بجې مردان

O

اشنا! سترګو دې ډېر ښهٔ وې ، خو ګران وُو، پوهه نهٔ شوم
وختونه کهٔ هر څومره مهربان وُو، پوهه نهٔ شوم

بې ځایه مې ځان مړکړو په قیصو د سحرونو
ملګرې مې مئین ، په شبستان وو پوهه نهٔ شوم

ماوې چې ښهٔ یوازې یمه، حال مې د زړهٔ وُوې
ډېر خلق دې د سترګو په ارمان وو ، پوهه نهٔ شوم

منم دستور به نهٔ وی ، بې پوښتنې پاسېدل
محفل کښې دې راتول چې رقیبان وو ، پوهه نهٔ شوم

ما وې انصاف به وکړی ، خو دوی زهٔ کړمه مجرم
ملګرې د یو جرم ، زاهدان وو پوهه نهٔ شوم

۲٦-۷-۸۵

مردان په لاره لاره

O

اشنا ستا انتظار کښې مې کلونه دی لمحې
تېرېږی نا يوازې قيامتونه دی لمحې

ما تاؤ په محبت کښې د هجران نۀ وو ليدلې
ورتېرېږمه د زړۀ سره ! اوروونه دی لمحې

بې ستا نه رنګينی ، پيکه پيکه دی د ژوندون
د ګُلو په موسم کښې انګارونه دی لمحې

بې ستانه په ګلونو کښې نۀ رنګ شته دے نۀ بوئين
ستا خوا کښې د زړۀ سره !بهارونه دی لمحې

هر څۀ چې دی محفل کښې د يئے مخو موندې کيږی
زاهده! تنهائی کښې خو دردونه دی لمحې

۸۵ ـ ۹ ـ ۲۹ مردان

) آوازخيال محمد



تهٔ رانه لرې، ستا يادونه دي ، يوازې يمه
د انتظار لوبې مابنامونه دي ، يوازې يمه

ستا د راتلو په طمع طمع ، ستورى هم پرېوتل
مرۀ په هر لورى چراغونه دي ، يوازې يمه

لاړې ته ګورمه ، وعده ستا د راتلو ده ، اشنا!
سترګو نه تلې مې خوبونه دي ، يوازې يمه

هره بنکالو راته ستا وبنکارى ، خو رانهٔ شې تهٔ
د انتظار لمحې کلونه دي ، يوازې يمه

زاهده! نور راسره څهٔ دي ، په دے توره شپه کښې
بلې ديوې د يار لوظونه دي يوازې يمه

۸۵ - ۹ - ۲۹ مردان

دوى)

ساه چې مې بې واره نن ډوبیږي تنهائي ده
ډېر چې مې په زړهٔ باندې ، وریږي تنهائي ده

ستا په ښار کښې وسم ، خو څوک غږ راسره نهٔ کړي
ستا خوږې خبرې مې یادیږي تنهائي ده

هېڅ مې هم د زړهٔ ، په هدیره کښې پاتې نهٔ شو
شمعې د یادونو دې بلیږي تنهائي ده

ستا د انتظار لمحې له مرګه نهٔ دي کمې
وار چې مې بې واره خطا کیږي تنهائي ده

ښه ده ، چې زاهدؔ سره دې شته یو څو یادونه
هر څوک تربنه لرې لرې کیږي تنهائي ده

۳۰-۹-۸۵

(وی)

○

ساقي! څۀ راکوې کۀ مې شرېږ پۀ نیمه شپه کښې
دیوې چې بلوې اؤ مرې کوې په نیمه شپه کښې

واعظه ! شک د خلقو دې بدل کړو په یقین کښې
چې څې په نیمه شپه کښې، هم راځې په نیمه شپه کښې

اے شمعې! تۀ جوړ هم لکه رقیب، له مرګه ړېي
دا ولې د سحر له ویرې مرې ، په نیمه شپه کښې

اشنا! زړۀ راکښې نشته چې بېړۍ کړوُ له پېښو لرې
بیا څله کړوُ یو بل سره ، وعدې، په نیمه شپه کښې

باران کښې درته چا وې ، چې ساته د بنګلو لارې
څادر دې چې زاهدۀ! وچوې په نیمه شپه کښې

۱۴-۱-۸۶

غرمه او ماسخوتن مردان

O

تکے مې زده نۀ کړو چې د زړونو له کتابه
ځکه مې زړۀ تور شو د مخونو ، له کتابه

څو چې دا "الف ، الف" ازغی ، زړۀ کښې "ب" نۀ کړې
څنګه به څۀ ذده کړې ، د ګلونو له کتابه

غوارۀ چې په ژوند کښې دې ، نۀ جبر نۀ ستم وی
پانې شلؤول غواړی د وختونو له کتابه

تا خو وې اشنا چې تر سحره به دې اؤره
ولې دې زړۀ تور شو د دردونو له کتابه

هسې به لمن خپله داغونه کړې زاهده
څۀ به په لاس درشی د خالونو له کتابه

۸۶ - ۲ - ۱۰ مردان

O

غواړی له قاتله زندګی ، په زولنو کښې
روغ راته ښکاره شو لېونی ، په زولنو کښې

هسې خو تیارې ملګرو ! نهٔ دی رنې شوې
زړونه ځنې خلق بلوی ، په زولنو کښې

دلته کښې مجرم د محبت هم قاتل ښکاری
اروی ترې سترګې ، خپل پردی ، په زولنو کښې

څهٔ رنګه به ګل ، مړه کمځی کښې خلق وینی
دلته بندیوان چې دی سپړنی ، په زولنو کښې

"چا" دې د ارمان پوښتنه ونهٔ کړه زاهدهٔ!
تېره دې بې ځایه کړه ځوانی ، په زولنو کښې

۸۶ - ۲ - ۱۳ مردان

O

غوارې لنډۀ کۀ مزل ، مۀ کېنه
اخله دې بس پل پسې پل ، مۀ کېنه

خلق دې ګُل چینه ! سرۀ لاس پېژنی
خوا کښې د ګلونو ، په چل ، مۀ کېنه

پاڅه! کۀ پښتو رقیبه ! پېژنې
ستا دے په ما پورې بدل ، مۀ کېنه

ژوند ئې دے په سترګو کښې ، ستا ، پوهه یم
غېږه کښې خو زړۀ ! د اجل مۀ کېنه

ځائے مې نن زاهدهٔ! په زړۀ نشته دے
نۀ شم اؤرولې ، غزل ، مۀ کېنه

۲۰-۲-۸۶ ماسخوتن مردان

ـړۀ ته دې په لنډه لاره تلۀ غواړو
ـونږ چې دې اوږدۀ اوږدۀ بانه غواړو

ـستا د مخ ، میړی میړی خط ګران نۀ دے
ـونږه له هر داغه ، لرې تلۀ غواړو

ـمینه اؤ نفرت د ژوند دوه لارې دی
تلۀ په یوه غواړو، بله نۀ غواړو

نۀ راته مقتل ښکاری نۀ دار وینو
ـونږه خپل منزل ته رسېدۀ غواړو

ـهسې د دې خلقو اشنا بدی شو
ـونږه زاهدانَ ، د چانه " خۀ " غواړو

۸۶ - ۵ - ۱۸ سحر

O

دا موسم په تلو دے ، ماته پته ده
وخت په بدلېدو دے ، ماته پته ده

نۀ راځی زړګیه ! تر قیامته یار
ژوند دې په وعدو دے ، ماته پته ده

نوره باچائی د تیارو ختمه ده
نمر په راختو دے ، ماته پته ده

نبض مې ډوب شوې په "تپوس د یار"
بیرته په راتلو دے ، ماته پته ده

اور کښې زاهدؔ لاس ته ، د چا نۀ ګوری
ژوند په حوصلو دے ، ماته پته ده

۲۰-۸-۸٦

سحر کچړی مردان

O

زړهٔ مې غوښتې ، ښه ده چې زړهٔ له راغلې
مينه کامله شوه ، پخپله راغلې

زمونږ پلوْ کښې بې تيارو نه څهٔ دی
لار دې غلطه کړه ، په بله راغلې

ماسره کېناستې ، رقيب ته ګورې
تهٔ ماله راغلې ، کنه دهٔ له راغلې

ستا بې رُخی خو يم ، تردې راوستې
اوس مې د قبر خواله ، څله راغلې؟

سترګې دې سرې رنګ دې تک زيړ زاهده!
دا تهٔ له کوم رنګين محفله راغلې؟

۱۵-۹-۸۶

سحر ۱۰ بجې کچرۍ مردان

O

په ژمي کښې مې وليدل مخونه ، په څادر کښې
خزان کښې دی راغلی بهارونه په څادر کښې

بې ستا نه زندګی مې د ازغو په څوکو خوب د ے
کوې شي څوک په ژمي کښې ، خوبونه په څادر کښې-؟

شمله مې د پښتو رقيبه! ښکته نۀ کړه وخت
منم چې مې ښکاريږی ، پيوندونه په څادر کښې

ستا"خال" چې چا ليدلې د ے ، د سرې لوپټې ميرې!
ټول عمر ګرځوی بيا ، کتابونه په څادر کښې

د مينې مېکده کښې وېش ، په يو پيمانه کيږی
تا يورل لوپټه کښې ، ماغمونه ، په څادر کښې

ښکاريږی جوړ زاهدهٔ ! ازغی څُويه له روان ئې
نن بيا چې دې پند کړې دی ګلونه په څادر کښې

۱۰-۱-۸۷

O

په خُلهٔ باندې خاموشه په نظر کښې داستانونه
دا ښکلي زمونږ اخلي په څهٔ رنګ امتحانونه

د ژوند په مېخانه کښې ويش ، په يو پېمانه نهٔ د ے
چا پنډ د ازغو يوړهٔ چا دلي دلي ګلونه

ما وې چې بې غمي کښې به مې خوب د اُوږدو پښو وي
ستا څنګ کښې مې له سترګو تختېدلي دي خوبونه

ښکارېږي په ټول عمر کښې دې نن ، جوړ ريښتيا وُوې
د زړهٔ سره ! په مخ دې ، چې ښکاره نهٔ شو رنګونه

رنګونه د ژوندون دې خدايه ! څهٔ رنګه پيکه کړل
هر لوري ته چې ګورمه ، نو الوزي کردُونه

ښکارېږي ازغي خويهٔ له ، جوړ بيا ورځې زاهدَه
په سر دې چې پنډ کړيدې نن بيا بلا ګلونه

۱۴-۲-۸۷

۳ بجې د پېښور په لار

په خلهٔ باندې خاموشه په نظر کښې داستانونه
ساتلی دی مئینو په ځیګر کښې داستانونه

هر کانې ئې مهین شو ، هره تیګه ئې هواره
اوس ګوری به څوک څنګه ، په خبېر کښې داستانونه

مبله د پېغلو غوارِم د منګو په قطارونو
ورکیږی مې نن خدایه! په ګودر کښې داستانونه

لوستې دې خط د مخ نهٔ شم ، حېران یم په یو دوه کښې
تیارهٔ دی پراتهٔ څنګه؟ په سُور نمر کښې داستانونه

زاهده! په اسانه دې څوک نه شی هېرولې
پراتهٔ دی ستا د فن په هریو در کښې داستانونه

۹-۳-۷۸ کجری

O

وخورو ، تیارو ، د دې تیارو ، څۀ بند پکار دے
"ناوې د رڼا" له د ورتلو، څۀ بند پکار دے

دواړه ماتول کوؤ ، وعده ، اؤ کۀ توبه ده
ګله ! د وعدو اؤ د توبو څۀ بند پکار دے

ماته آئینه د پښتو کربښې کربښې ښکاری
اوس د یو کېډلو پښتنو، څۀ بند پکار دے

مخکښې مې یو زړۀ وو ، اوس د زړونو شوې قاتلې
ستا د دې دؤو سترګو لېونو، څۀ بند پکار دے

ستا د اداګانو په پایو باندې پوئې نۀ شوم
اوس په دې ګودر د ډوبېدو څۀ بند پکار دے

لاس دې چې وزګار شو، اوس زمونږ لمن رانیسې
تاله خو زاهده! د تسبو څۀ بند پکار دے

۱۱-۳-۷۸ مردان

O

هريو زرۀ تکور دے، د ژوند لارو کښې
رنگ دې د مخ خور دے ، د ژوند لارو کښې

هر قدم پېغور دے د ژوند لارو کښې
دا څۀ رنگه اور دے د ژوند لارو کښې

مانه پکښې ورک شو د خپل زړۀ آواز
خدایه! څومره شور دے د ژوند لارو کښې

وائی ، چې دے مړ ، خو یذید مړ نۀ دے
جام ځکه نسکور دے د ژوند لارو کښې

پوئې شه خاوندان ، دسپینو زړونو دی
رنګ چې د چا تور دے د ژوند لارو کښې

مرګ ترې ګورې هم زړکیه! ډیه کړی
ناست چې په خپل زور دے د ژوند لارو کښې

هر قدم په پام شو هر نظر په خیال
دام د ښکاری خور دے د ژوند لارو کښې

ورکړلې زاهدؔ پګړی ، ملګرو له
خپله کۀ سر تور دے د ژوند لارو کښې

۷۸-۸-۴ مردان

) آواز- زرشادؔ

O

عمرونه وشو ناست دی لیونی د ژوندانهٔ
یقین نهٔ دې چې راشی اوس سپرلی د ژوندانهٔ

شدت زمونږ د تندې د پښتو په ورانډې هېڅ دے
جام څله کړنګوې راته ساقی د ژوندانهٔ

بې شمېره دی ، غمونه ، حسرتونه ، اندېښنې
لمحه ده د زړهٔ سره ! خوشالی د ژوندانهٔ

ازغی درنه چاپېره دی ، خندا دې د څو ورځو؟
کوې به ګله ! څهٔ رنګه سیالی د ژوندانهٔ

تهٔ اوس هم ځان ځلمے ګنې زاهده! خطا کېږې
پخوا درنه الوتې ده ځوانی د ژوندانهٔ

۲۴۱۱-۷۸ کچړی مردان

O

نشته مې باور په قسمونو ، په رشتو
خو به څوک تېروځی ، په خوبونو، په رشتو

تاته خو زړګيه ! هريو کار د لحظو ښکاری
لړی زمانې ګورې د زړونو په رشتو

عمر وشو کېږ يُو په دلدل کښې د ګمان
بيا مو هم يقين دے د دردونو په رشتو

وينه کښې اور پاتې شو ، نۀ مينه کښې څۀ تاؤ
څۀ رنګ لوبې وکړلې وختونو په رشتو

اوس به درته خاندی ، اوس به وُريږی زاهدهٔ!
څۀ اعتبار پکار دے ، په ګلونو ، په رشتو

١٦-١٢-٧٨ کچړی مردان

O

خلقو له اشنا ستا انتظار ، سرونه سپین کړل
مونږ له خو غمونو د روزګار سرونه سپین کړل

څوک دې دی مئین د سترګو، څوک د لویو زلفو
چاپه مېخانه کښې ، چا په دار ، سرونه سپین کړل

نوره په معنٰی د وفا نه رسُو ملګرو.؟
مونږ ئې د وعدې په هره لار سرونه سپین کړل

ګرانه شوه ملګرو! اندازه ئې اوس د عمر
چاله چې وختونو په ناتار سرونه سپین کړل

کوم دے چې راځی زاهدّه ، هسې دروغ وائی
مونږله خو خوبونو د بهار سرونه سپین کړل

۲۳-۶-۸۸

کچړی مردان

O

سوال کۀ مې کوو نو قبلېدۀ ، ولې ما نۀ غوښتل
يار راته په لار کښې ودرېدۀ ،ولې ما نۀ غوښتل

څه رنګه به وايم ، چې ساقي سره انصاف سته د ے
جام ئې چې رقيب ته کړنګېدۀ ، ولې ما نۀ غوښتل؟

ماسره دې غم د بدنامۍ وو څکه غلې شوم
نوم دې تولو خلقو پېژندۀ، ولې ما نۀ غوښتل

څومره دې منئين په ځان د جبر عادت کړې دې
ډېر کۀ مې زړۀ تا پله کږېدۀ ، ولې ما نۀ غوښتل

مرګ مې د پښتو وو ، پاتې ځکه په مقتل کښې شوم
وخت د سترګو رپ کښې بلېدۀ ، ولې مانۀ غوښتل

ماګرو د لمنې نه راتيېنګ ، خبره پاتې شوه
تاسره زاهد هم پاسېدۀ ، ولې ما نۀ غوښتل

۲۹.٦.۸۸ کور مردان

O

وبنکه چې بنو ته شوه ، نو پاتې شوه
شپه چې رنبړدو ته شوه نو پاتې شوه

مۀ راؤله مئېنځ ته د پښتو تکے
مینه کۀ پښتو ته شوه ، نو پاتې شوه

تا پسې مې ساه خته په هر قدم
ښنګه چې ختوته شوه ، نو پاتې شوه

دا هم غنیمت دے، چې وعدې کوی
خدائېګو کۀ راتلو ته شوه ، نو پاتې شوه

غږ خو کوی ، خبر دے ، کۀ ، پوهېږی نا
دا کۀ پوهېدو ته شوه ، نو پاتې شوه

مینه ئې په سمه کړه زاهدؔ سره
غږ ته چې ختوته شوه ، نو پاتې شوه

۲۷ / اګست ۸۸ء

کچری مردان

O

ستا د پلوْ لار مې په وینو باندې سره شوه کنه؟
ستا اوْ زما د محبت قیصه پوره شوه کنه؟

اوس به قاتل د محبت رقیبه چرته اوسی!
دستور کښې خنکه د پښتو ختمه دره شوه کنه؟

ګلاب ته پته ستا د زلفو د مزل نشته دے
ګومنځ ته وګوره اشناء اره اره شوه کنه؟

ما درته نهٔ وې ، خوشبوئی د مینې نهٔ تینګیږی
د زړهٔ خبره په قدم ښکاره شوه کنه؟

تا خو د فن کرامت نهٔ منهٔ زاهده ! په ژوند
د مرګ خبره دې په ټول وطن خوره شوه کنه؟

۸.۹.۸۸

مازیګر خلور بجے کور



ما وې یوازې جوړ د زړهٔ وینې لمانه غواړي
خو نا ځوانی دې خراجونه له هر چانه غواړي

نهٔ مې د سر سېورے شو پاتې، نهٔ د پېښو لاندې ځائے
اشنایان خڼکه امتحان اخر زمانه غواړي

نهٔ د مقتل په لاره تلې شي ، نهٔ د دار په لوری
بې صبره زړهٔ مې ستا دیدن څهٔ په آسانه غواړي

قاتل نه سوال د زندګۍ دے ، له تا مېنه غوښتل
ډېر لېوني زړونه همېش ، ژوند د قضا نه غواړي

زمونږ د دور ده دا لویه حادثه زاهده!
ورک په رڼا پسې ارمان اوس د رڼا نه غواړي

۸۸-۱۰-۱۰

غرمه کور

O

ماله د زړۀ له غمه خوب نۀ راتۀ
تاله د خلۀ له غمه خوب نۀ راتۀ

وعده ئې خلۀ وه ، ورۀ له تلمه راتلم
زړۀ درزېدۀ ، له غمه خوب نۀ راتۀ

نمر ئې تر پښو راغې ، خو پا نۀ ښېدۀ
ماله د ددۀ له غمه خوب نۀ راتۀ

خلق ودۀ شو ، په صحرا، بې غمه
ووم په کالۀ ، له غمه خوب نۀ راتۀ

ا وې زاهده! نظر وانۀ روی
ۀ راکاته ، له غمه خوب نۀ راتۀ

۸۸-۱۰-۱۰

ماسپخین کور

O

ما ئې دیدن وکړو، ما په زړهٔ غمونه راوړل
راغې ، خو له ځان سره ئې څهٔ غمونه راوړل

هر نظر کښې غم دے ، هره سترګه کښې دی اُښکې
باد له کوم طرفه داسې سرهٔ ، غمونه راوړل

ډېر ئې کهٔ درد راکړو، خو لذت هم ورسره وو
یاد دې د زړهٔ سره ! څهٔ خوارهٔ غمونه راوړل

ډېر کهٔ وو نزدې ، ولې تا بیل کړو له یو بله
وخته په لمن کښې دې دا څهٔ ، غمونه راوړل

نهٔ تېرېږی ژوند جوړ د زاهدٌ بې له غمونو
ډېر ئې د خاتهٔ ، د پرېوانهٔ ، غمونه راوړل

۳۱-۱۰-۸۸

سحر کچړی مردان

تول عمر مې درکړل د ځيګر ، خوارۀ
شومه ! تا رانۀ کړل د نظر ، خوارۀ

ما له کړې دشمن ، زما د زړۀ مينې
عمر له بيل شوې دی ، اکثر ، خوارۀ

ماته ئې قسم ، د ترخو کړې دے
ويشی کنی ، هر وخت ، دز په در، خوارۀ

چاله دشمنی ، چاله ياری بنه شی
ځنکه خُوری رقيب ، زما په سر ، خوارۀ

سترګې دې کږې برندې ، د مسکا په وخت
هر دې زاهدٓ ته کړل په شر ـ خوارۀ

۱۰-۱۱-۸۸

ماسخوتن کور

O

تاماته کړه خبره ، کهٔ ، ما تاته کړه خبره
دا څوک موشو تر مئېدځه ، دوارو شاته کړه خبره

اشنا وئېل ، چې وایه ! هیڅ مې ونهٔ وې ، زړګیه!
بې وخته درزېدلو دې ، میراته کړه خبره

انکار دے کهٔ اقرار دے ، زما دواړه په سر سترګو
زهٔ مرم کهٔ پاتې کېږم خو یو خواته کړه خبره

ښکارېږی چې دې زړهٔ د راتلو نهٔ دے ، رابه نهٔ شې
اشنا چې دې نن بیا ماته ، راماته ، کړه خبره

تر عمره اذیت د تنهائی کښې به اوس کرځے
زاهده! چې په مخ به دې هر چاته کړه خبره

۸۸-۱۱-۱۸په لاره مردان

O

دے شارې ته له کوم لوری راغلی مسافر دی
اوتر اوتر چې کوری د کوم کلی مسافر دی

ملګرو! هسې نا چې قات سالی د محبت شی
نهٔ تلی مسافر دی ، نهٔ راغلی مسافر دی

ن بیا به توله شپه له غمه زړهٔ خورمه یارانو!
ن بیا راته خوارهٔ کتلی مسافر دی

زړکیه! توله شپه وهی توپونه له دردونو
دا ستوری جوړې ستا هسې داغلی مسافر دی

بیا هم د کور په لار پسې خفه لکه ماشوم وی
هر څومره کۀ درانۀ درانۀ بناغلی مسافر دی

وریځې میاشتې وشوې چې دېره دی په آسمان کښې
بنکارېږی په وطن پسې ژړلی مسافر دی

ترعمره بیا له ځایه خوزېدې نۀ شی زاهده!
یو ځل چې د نظر پۀ تار تړلی مسافر دی

۹-۱۲-۸۸

په لاره لاره مابنام

O

چاله محفل ، چاله کوڅې وُخکلم
ستا محبت خو زۀ له بنې وخکلم

پرون مې وُخکې وه له څښلو توبه
نن خو د څښلو نه توبې وخکلم

ما چې د زړۀ نه تۀ ایستلې نۀ شوې
خلقو د کلی نه په دې وخکلم

د ورځې هم چرته له کوره نۀ ځم
لوظ ، پښتو ، د نیمې شپې وخکلم

ادمؑ زاهدۀ! په غنم وُتې وو
زما قصور څۀ وو ، په څۀ ئې وخکلم

۱۶-۱۲-۸۸

په لاره لاره مابنام

ټی وی (آواز انتظار علی)

O

څومره د قاتل نظر کښې زور دے ، ورکتې نۀ شم
مرګ ئې جوړ د سترګو په ما پور دے ، ورکتې نۀ شم

ډېر کۀ مې زړۀ کېږی د کتۆ لمن مې سپېنه ده
دلته خو په هر يو قدم تور دے ، ورکتې نۀ شم

سېزی مې اشنا ستا د نظر پښتو مې ياده ده
ماته د هر ښکلی نظر اور دے ورکتې نۀ شم

اوسی پکښې هغه، چې پرې سېورے زما ، بد لږی
هر څو کۀ زړګيه! زما کور دے ، ورکتې نۀ شم

ماته ئې کړو په ګوته زاهد وې وئېل ، دے پېژنې
ا ورته وې دا سړے ډېر سپور دے ورکتې نۀ شم

۳۰-۱۲-۸۸ ماسخوتن په لاره مردان

ستا په رقیب ده ، خو د دهٔ د کور په ما لار ده
چرته نا چرته خو اشنا د چا په چا لار ده

ستا د قدم په نخښو تلم همېش ، نن څهٔ چل وشو
تهٔ راسره ئې خو بیا هم له ما خطا لار ده

تهٔ بیا شلوې وریسې پړی ، په ټوپونو سر ئې
د یار کوڅې ته خو زړګیه ! لا بـلا لار ده

تا پرې له مانه جوړ اول اشنا قدم ایښې دے
نن چې له ورایه راته داسې په خندا لار ده

اوس به دې څوک ازغی زاهدهٔ ! له تلو وباسی
منم شیشے هسې پرته نن د صحرا لار ده

۸۹-۱-۲ په لاره لاره ماہنام مردان

رنګ د محبت اشنا بدل شی ، چې تهٔ راشې
وی کهٔ یو مصرع ، پوره غزل شی ، چې تهٔ راشې

وار به مې خطا نهٔ کړی د مرګ ویره ، ګلرنګه
هسې بس غلطی مې پل په پل شی ، چې تهٔ راشې

ماله دې دیدن آب حیات دے ، بې رقیبه
دهٔ سره اشنا راله اجل شی ، چې تهٔ راشې

ماته سپوږمی ښکارې د رڼو ستورو په مېنځ کښې
زړهٔ کښې مې داغونه اشنا بل شی ، چې تهٔ راشې

بې له تانهٔ خدائېګو یو قدم اخستې نهٔ شم
اوږد وی خو لنډ راته مزل شی چې تهٔ راشې

ستا په لمن مونځ منم چې کیږی به زاهده!
هر کار کښې زما هسې خلل شی چې تهٔ راشې

O

تاپسې له سترګو څڅېدې ، زړهٔ ته مې پرېوتې
اُښکې ، چې تهٔ راغلې مسېدې ، زړهٔ ته مې پرېوتې

ستا به دا ګیله وه چې له زړهٔ نه مې وخکلې ئې
مانه هنګامو کښې ورکېدې ، زړهٔ ته مې پرېوتې

ډېر وو کهٔ پئے مخې ، خو اشنا د زړهٔ خبره وه
ټولو کښې تهٔ ښکلے ښکارېدې زړهٔ ته مې پرېوتې

عشق عجیبه شے دے ، خپل اُصول اؤ خپل قانون منی
خومره چې له مانه تختېدې ، زړهٔ ته مې پرېوتې

دا دې هم زاهده! جوړ اثر د نصیحت ښکاری
مانه ستا خبرې هېرېدې زړهٔ ته مې پرېوتې

۸۹-۱-۲۰ په لاره لاره مابنام

O

موج د ځوانۍ ئې نن په سر اوړی
لکه په بله سمندر اوړی

کورته راغلې سپرلے بیا واپس شو
څه غریو نیولې په خیبر اوړی

وائی مئین وُسه ، خو مۀ راګوره
د زورور اُبۀ په غر اوړی

مسلمان کله بدلوې شی کعبه
څنګ به مې بل پسې نظر اوړی

اخر به وکړې خوشحالی زاهده!
اخر به خاوړې مې په سر اوړی

۲ / فروری ۸۹ء کچړی مردان

ګهړۍ نیمه کښې ځوُ د مرګ په لوری ، زمانې
دمې ته ـمو لړ پرېږده په یخ سېوری ، زمانې

په کرښو د لاسونو کښې څۀ ګورې د نجو
ډوب شوی دی زمونږ د قسمت ستوری زمانې

شاهان ئې چې سجدې کوی عظمت ته لر اؤ بر
یادیږی مې د ژوند هغه سرتوری زمانې

وفا، مینې ، پښتو ، پسې مې سترګې شوې ړندې
کتاب نه د ژوندون څۀ شوُ ، دا توری زمانې

ښکاریږی نا خو تاؤ ئې کړو، ژوندون پورې حېران
دا څۀ رنګه اوړونه په مونږ اوړی زمانې

۸۹-۳-۱۲ د پېښور په لاره مانښام

O

هغه نور خلق دی، ترعمره چې پالی ، اشنائی
زما اؤ ستا خو ده بس ګله تر سپرلي اشنائی

زۀ هم ولاړ په خپله لار ، تۀ هم خو ئي نه بدلوې
اشنا سوچ وکړه چې به څۀ شی ، اشنائی، اشنائی

زړونه له يو بله ماړۀ شو؟ کۀ د زرو زور دے؟
څنګه شوه ختمه! د دے دور ، وروړولی ، اشنائی؟

څنګ د رقيب کښې ماته ګوری د خندا په نظر
څنګه يئے مخی په هنر کړی ، د شمنی ، اشنائی

يا به يارى کوې ښکاره او يا به زړۀ صبروې
په يوه لار نۀ ځی زاهدّه! ، مجبوری ، اشنائی

۲۰-۳-۸۹ پېښور کښې

چې بې له تا زاهد له کوره وځی
والله چې تو له ورځ پرې سپوره وځی

د زلفو سپوری ته بیا کله کېنی
وخت چې د چا د ژوند له اوره وځی

زمونږه زور به کړی ابۀ ، ملګرو!
دریغه ! چې دا ښکلی د زوره وځی

تاته کتل زما په لوری ګران دی
زما خو ساه دریسې ګوره ، وځی

څو چې تور زړے رقیب شته زاهده!
مینه به څۀ رنګه له توره وځی

۲-۴-۸۹ مردان کچری

خپل لرې ، پردو ته دې نږدې کړمه
وخته ! څۀ ازغو ته دې نږدې کړمه

را دې کړل ګلونه د رقیب په لاس
ګله! سرو لمبو ته دې نږدې کړمه

وخته رڼا مانه هېرېدې نۀ شي
هر څو کۀ تیارو ته دې نږدې کړمه

نشته مې نصیب کښې ، دیدن پوهه یم
ډېر کۀ ځان کوڅو ته دې نږدې کړمه

دومره شومه لرې، له پردو ، خپلو
څومره چې لېمو ته دې نږدې کړمه

اوس راته . زاهده! مرګ څۀ نۀ ښکاری
داسې حوصلو ته دې نږدې کړمه

۶ / ۱ اګست ۸۹ کور مردان

( آواز - شبنم



ځوک چې نۀ ما ، نۀ مې نامه غواړی
خانه خراب زړۀ مې هغه غواړی

دار اؤ مقتل کړی ګواهی د څۀ شی؟
مئین په مرګ هم ستا کوڅه غواړی

ځان مو لاهو کړو ، ځوک مو خپل نۀ شو
ژوند تېرول هم تجربه غواړی

خلق د عمر سوال کوی له خدایه
زړهٔ مې اشنا سره لحظه غواړی

رقیب پوهیږی نا، زما په ژبه
ګنی سړے خو اشاره غواړی

بې کسه خلق سوال د مرګ چې کوی
ژوند ستړی کړی دی دمه غواړی

نن ورته بیا وائی زاهدؔ د راتلو
بیا تیږوتل ئې په وعده غواړی

۹-۱۱-۸۹

۱۱ بجی د شپې

O

ستا د سترګو اور ته چې تاؤده شو اوس
ډېر وو دردېدلې ولې ښنه شو اوس

خلق د قاتل د زور خبرې کړی
مونږ کله ژوندی وو ، چې به مړهٔ شو اوس

هېڅ هم نهٔ وو، تهٔ چې ورسره نهٔ وې
لاړل ستا په سر ، رقیبان شتهٔ شو اوس

ژوند چې د چا هم په مونږ پېرزونهٔ وو
وایه هغه خلق اشنا څهٔ شو اوس؟

ولې مې کوز سترګې ولاړ کتهٔ ته ئې
تا چې څهٔ غوښتل هم هغهٔ وهٔ شو اوس

ځکه د زاهدٓ روژې ته. سترګې وی
کال کښې چې دې یوځلې راتلهٔ شو اوس

۲۵ دسمبر ۸۹ء مردان

راځی کۀ په کلوبو هم خبر د مینې نا
زړګے مې پرېښودل غوا‌ړی دا در د مینې نا

اشنا سره مې هېڅ هم پاتې نۀ شو نوم ئې اخلم
زړګیه ! ښکته غواړمه چې سر د مینې نا

سپرلے شته دے خو بوټېن د ګلو نشته دے ملګرو!
لرې چې دا ګل مخی خوږ نظر د مینې نا

ساقي! ډوېډل نۀ غواړم ، بس شونډې لمدؤمه
څو څاڅکی مې پکار دی، سمندر د مینې نا

هنر د شعر ذده مې کړو ، زاهده! بې اُستاذ
منم به اخر څۀ رنګه اثر د مینې ن

۱۲-۱-۹۰ مازیګر په لاره مردان



Scanned with CamScanner

دوړوی مالګې په زخمونو، چرته روغه نشوه
اشنا! زما اؤ د وختونو، چرته روغه نشوه

هر څوک ئۀ لاس ئې ، پرې پردے چرته پرې ابېنې نۀ دے
د دے ازغو او د ګلونو چرته روغه نشوه

هر وخت له یو بله خفه ، په هر موسم کښې بېل یُو
زما او ستا ، د موسمونو ، چرته روغه نشوه

هر ځل نیمګړې صراحی، هر وخت نیمګړې کاسه
برخه زمونږه ، په عمرونو ، چرته روغه نشوه

بیا به زاهدؔ د ژوند په کومه پُوله ، درشی اشنا!
که په جرګو اؤ منتونو چرته روغه نشوه

۱۸-۲-۹۰ په لاره مابنام

O

اشنا د زړۀ خبره ـ نۀ تا وکړې شوه نۀ ما
وه څومره زوروره ـ نۀ تا وکړې شوه نۀ ما

هر څوکۀ وه غوښتنه د وختونو ـ د ملګرو
اشنا د ژوند سندره ـ نۀ تاوکړې شوه نۀ ما

هر څوکه فیصله د محبت وو حق زمونږه
مجبور وو د زړۀ سره ، نۀ تا وکړې شوه نۀ ما

رشته د محبت غوښتله دواړو چې شی پرے
واپس دې شوم له دره ـ نۀ تا وکړې شوه نۀ ما

هر څومره کۀ زاهده! پکښې زېرے د سپرلی وو
قیصه شوه له نظره ـ نۀ تا وکړې شوه نۀ ما

۹۰-۳-۱۲ مازیګر په لاره مردان

شی به هر در رڼا رڼا ـ شی به هر در پلوشې
یو سرے هره ورځ راوړی ، د خپل نظر پلوشې

خلقو د سره پرې لاس ووینځل ، واپس نهٔ شُو بیا
هیچا وُنهٔ موندې ، د مینې ، په سنګر پلوشې

خدایه ! دا کوم سردار د بنګلو په دے لار تلے دے
چې هر قدم دے کهکشان ـ په هر ډګر پلوشې

دا وېش د خدائے دے ، کهٔ زما د زمکې خلقو کړې
چرته تیارې تیارې ژوندون ـ چرته اکثر پلوشې

زاهدهٔ ! تا چې ورته شپې د ځوانۍ روڼې کړلې
اخر به ووینې یو ځل د هغې نمر پلوشې

۱۰.۵.۹۰ ماښام په لاره مردان



هره سلګۍ او هره ساه ـ تنده ده
زندګي څۀ ده؟ خو اشنا ـ تنده ده

ګناه ثواب د واعظانو کار دے
مونږه ساقي تږي يُو ـ را ـ تنده ده

ستا د نظرِ سيند مې ـ په زړۀ کښې خائے کړو
شونډِې مې وُچې دی ـ بـلا ـ تنده ده

هره وعده ئې ، لکه شږې - برېښي
د بنکلو مینه د صحرا - تنده ده

بیا څوک یزیدؔ د حسینؔ لارې نیسي؟
د فرات غاړه - کربلا - تنده ده

ماته د ژوند هر سمندر سراب شو
سترګې مې وربې شوې ؟ کۀ دا تنده ده؟

زاهدؔ چې مینه وکړه دومره پوئې شو
ابتدا لوږه - انتها - تنده ده

۹۰ - ٦ - ۲ غرمه دوه بجې کور

O

ناوّ ستا د نظر مې زړۀ ته پرېوتۀ
ور د لروبر مې زړۀ ته پرېوتۀ

ورک مې شو د ورځې ، هم د شپې سکون
بت د کوم اذر مې زړۀ ته پرېوتۀ

ور مې د زړۀ هر ښکلی ته پورې وو
یار په کوم هنر مې زړۀ ته پرېرتۀ

تت شو د پی مخو د وعدو ستوری
یاد دې لکه نمر مې زړۀ ته پرېوتۀ

ځکه خو مې جام ته کړو زاهدهٔ ! لاس
ذکر د کوثر مې زړۀ ته پرېو تۀ

۹۰-۸-۲٦ سحر کچړی


ا کۀ له مانه ـ ماله تانه ـ لمن خلاصه نۀ کړه
ینه کښې چا هم په آسانه ـ لمن خلاصه نۀ کړه

ښنګه به ختم کړو دردونه ، د دے زمکې په مخ
ونږ لاتراوسه له آسمانه ، لمن خلاصه نۀ کړه

بلا موده مې مینه وکړه ـ بلا ښکلو سره
ما ستا د مینې له ارمانه لمن خلاصه نۀ کړه

ډېر نفرتونه ـ ډېره مینه ـ ډېر دردونه د ژوند
ما د یارانو له احسانه لمن خلاصه نۀ کړه

زړۀ کۀ مې تول اربې اربې ـ زړۀ که مې تول کربنې شو
ما د پی مخو له خندانه لمن خلاصه نۀ کړه

تندے دې تول ، منم چې تور دے د سجدو په نخښو
زاهده! بیا دې هم ریانه لمن خلاصه نۀ کړه

۱۳-۱۱-۹۰

کچړئ مردان

ماته راګوری چرته نا ـ مانه نفرت هم لری
څنګه ظالم دے چې دعوه د محبت هم لری

څومره شدید احساس ـ واعظ ته د تضاد شوېدے
لاسو کښې جام ، په شونډو ذکر ، د قیامت ، هم لری

ماته کۀ غږ کوی ـ نظر ئې د اشنا په کور دے
امریکه خوُیه رقیبان دی ـ څۀ حاجت هم لری

دانه چې خوښ مې دے ـ خو مرګ ته مې هم نۀ زړۀ کیږی
څنې خویونه دا رقیب ظالم د پت هم لری

د ښار امیر بېګاه زاهده! په محفل کښې وئېل
زما د ښار خلق په سر باندې لا چت هم لری؟

۵-۱-۹۱ ماسخوتن کور

په زړه مې څومره غني راځکې څومره لرې لاړم
پښتو چې مڼښځ ته شوه . له تا هم . بې خبرې لاړم

لاس چې دې نشم نيوې . ناسته هم ساقي ښه نه ده
چاله کاسې پسې کاسه . چاله بخرې . لاړم

چې پرې به تول عمر کښې نه تلم . په قسم هم اشنا
په هاغه لاره مجبورى ، چې مرور ئې، لاړم

د مرګ په وخت ئې دومره ووئېل زاهد ته پردن
زما ارمان وو ستا سندره ، بې سندرې لاړم

د ژوند په لارو کښې ملګرى کۀ بې شمېره مې وو
د مرګ په لار کښې چې څوک نۀ وو . يوه زرې لاړم

۸-۱-۹۱ سحر کور

ستا د دېوالۀ په سېورى ـ څۀ ته سرې کېنى؟
تلۀ چې کرې په هغه لُورى ـ څۀ ته سرې کېنى؟

نۀ راځى محفل دې څوک ستا به دا ګيله دى
اور له هر نظره اورى ـ څۀ ته سرې کېنى

ماخو وئې لوظونه به دې شمارم تر سحره!
پته شو په وريځ کښې ستورى ـ څۀ ته سرې کېنى

نشته دے زړګيه ! پښتو ـ ښېنه ـ وفا ـ پت
ورک شو په کتاب کښې تورى ـ څۀ ته سرې کېنى

لاړ د اُبو مئينځ ته د رقيب سره زاهده!
اوس زما په لورى ـ ګورى ـ څۀ ته سرې کېنى

۹۱-۲-۲۰ غرمه د کور په لاره



ببکا کۀ مې په زړۀ راوريږي ـ خو نۀ راتلې
رقيب سره زمونږ په کوڅه تلې ـ خو نۀ راتلې

انصاف شو ـ کنه ويره د ساقي زړۀ کښې پيدا شوه
راتلے ـ خو دومره ډکې پيمانې خو نۀ راتلې

دا لارې د سپرلي وې ـ د گل مخو پرې راتږ وړ
قيامت شو په دے لارو ـ جنازې خو نۀ راتلې

ویریږم جوړ بیلېږي رانه - داسي رانږدي شوي
دا ورځي د سپرلی به په ما بني خو نهٔ راتلي

ستا مرګ خو د زړهٔ سره کړم - کوز سترګي په محلت کښي
بي ایمانه اُبنکي سترګو له راتلي خو نهٔ راتلي

پی مخی دي د میني په بوئی پوئی شو جوړ ګل رنګه
کندر ته مي د زړهٔ دا قافلي خو نهٔ راتلي

زاهدهٔ تندي واغښتي کهٔ هېره دي ګناه شوه؟
ستا تړ په نورو لارو وو - تر دي خو نهٔ راتلي

۱۱-۳-۹۱ د کچړی‌په لار سحر

O

نۀ چې وربل - نۀ دې نظر ته کښنی
په دے موسم کښې سرے چرته کښنی

داسې دې مخ ته کورم نۀ مړېږم
لکه چې ژمی کښې څوک نمر ته کښنی

کۀ د مقصد شیرین ورځی په کوتو
لکه فرهاد به سړے غر ته کښنی

د نظر تږی په ولاړه مړۀ شو
د اُبو تږی سمندر تۀ کښنی

تۀ اوس هم شک کړې د هغۀ په مینه
زاهدّ چې ستړې شی ستا درته کښنی

۲۶-۴-۹۱ سحر په لاره

تي-وی-

(اواز- انتظار علی)

ما ستا د غم اؤ له سواد نه - سترګې پټې نۀ کړې
تا چې ببيګا ولې جانانه - سترګې پټې نۀ کړې

دا دې په ما باندې زړۀ وسو - کۀ زړۀ وره شولې
نن دې پړونی کښې له مانه ، سترګې پټې نۀ کړې

منم! چې مينه مې غربت کښې ، هم پرې نۀ ښودې شوه
خو ما د ژوند له امتحانه سترګې پټې نۀ کړې

ديدن دې وشو خو ارمان ، مې په سلګو پاتې شو
نن دې اشنا راله د شانه - سترګې پټې نۀ کړې

مونږ سره مينه کۀ چا وکړه کۀ نفرت ئې وکړو
زاهده! مونږ ئې له احسانه - سترګې پټې نه کړې

۱۹-۵-۹۱ سحر په لاره مردان

کوز مې کړې زړګی ته په دے ویره ښاریه کېښې
مانه ورکېدې چې ، د زړۀ سره ، ښاریه کېښې

ستا د هر یو ضد مخکښې سر خم لرم ځه ، ورشه
خدائے دې بچ ساته له بد نظره ـ ښاریه کېښې

مونږ چې احتلاف لرو امیر سره ملګرو!
خامخا به وینځو لاس له سره ـ ښاریه کېښې

هغه محفلونه ، د شپو چرته دی زړګیه؟
نۀ شي کرځېدې ځوک بې خطره ، ښاریه کېښې

زړۀ د ښار په ښکلو پسې مۀ تره زاهده!
خلق ځان ساتي له هریو شره ښاریه کېښې

۵-۷-۹۱ په لاره مردان

O

ژوند مې سراسر دے الزامونه ـ راته مۀ ګوره
ستا سپينه لمن به شي داغونه ـ راته مۀ ګوره

ما تراوسه مونديې لاجواب د يو نظر نۀ دے
تلی مې له سترګو دی خوبونه ، راته مۀ ګوره

تۀ د"خيال په سپوری" د "بادرو هوا" ته ناست وُسه
ماته دی په سر لا مزلونه ـ راته مۀ ګوره

ما د هجر اور په اُښکو اوس ايله مړ کړيدې.
نۀ بلؤوم نور په زړۀ اورونه ـ راته مۀ ګوره

تاته چې له عشقه مې خطره نۀ ده ـ نو بيا ولې
تا د کور وُچت کړل ديوالونه ـ راته مۀ ګوره

زۀ لرم زاهدهٓ! هر بشر سره د زړۀ مينه
تۀ په هر نظر کښې نفرتونه ـ راته مۀ ګوره

۹۱-۸-۱۰ سحر کچړی:

ستا یو موټے خاورې د قدم - زما په لاس کېښې دی
نخښې نښانې دې د کرم - زما په لاس کېښې دی

واخله که زینت دې د ورَ بل شی ماله ډیره ده
دا یو دوه ګُلونه - د شرِشم - زما په لاس کېښې دی

هره یوه پانه مې د ژوند - ورسته په اُښکو ده
خدایه څنګه کړېښې د ماتم زما په لاس کېښې دی

نور به ستم څهٔ وی ، چې اختیار ئې زما خپل نهٔ دے
واګې کهٔ د ژوند په هر یو دم ، زما په لاس کېښې دی

بیا مې هم زاهدا! له قیمته بچ ساتلې دے
نخښې کهٔ د جبر د قلم زما په لاس کېښې دی

۳۰-۸-۹۱ سحر کور

اشنا چې خواله راغلې د کاسې - څۀ ضرورت وو
شوه تنده زما ماته - اوس د دې څۀ ضرورت وو

په مينه کښې يو زړه وی - هغه هم د نظر
اشنا چې رقيبان وو ، نو په خلې ، څۀ ضرورت وو؟

سجده چې د سر هره ستا په لوری وی خالقه!
بيا ستا اؤ د سر ، مئينځ کښې د کعبې څۀ ضرورت وو

اشنا بيا ئې قسم ، د نۀ تعلق ، خورې راته څله!
محفل ته د رقيب چې تۀ ورتلې - څۀ ضرورت وو؟

اشنا چې نۀ راتلې دغه يوه خبره بس وه
دا دُومره د قسم اؤ د قيصې څۀ ضرورت وو

زاهدهٔ مېکده کښې د رندانو وو څۀ ذکر!
پخپله دې شکی کړل - د توبې څۀ ضرورت وو

۱۰-۹-۹۱ غرمه د کچرۍ په لاره مردان

O

ستا د بېګانی نظر له زوره - مې توبه ده
مهٔ راګوره نور له دغه اوره مې توبه ده

چُپ شه چې مې شونډو ته واپس راشی واعظه!
ډېره ترهېدلې ستا له شوره مې توبه ده

ستا کافر نظر ته بس د تېښتې نهٔ ده ګله!
هسې مسلمانه کنې ګوره مې توبه ده

نهٔ دې مخ روابنود - نهٔ دې زلفې په لاس راغلې
ځکه خو له سینه ، هم له توره ، مې توبه ده

ما خو جام په ژبه صفا کړی وو زاهده!
خدائے خبر چې ولې داسې سپوره مې توبه ده

۱۹۹-۹۱ کچری.مردان

O

وئېلو ته بې شمېره دی قيصې - د ګل په زړهٔ کښې
وخت اېښې دی ناترسه انديښنې د ګل په زړهٔ کښې

رڼا کهٔ په خپل مرګ ساتی - همېش د زلفو لارې
ملګرو چا ونهٔ ليدې تيارې د ګل په زړهٔ کښې

په وينو لمبېدلې - چې په اُښکو کښې ډوب ښکاری
نن بيا جوړې مات شوې دے ازغے د ګل په زړهٔ کښې

مسکا ئې عادت شوېدې چې رنګ لری د ښکلو
دا څکه چاونهٔ ليدې لمبې د ګل په زړهٔ کښې

زاهدهٔ! لکه ستا ئې په خندا نهٔ غلطيږی
دردونه چې ليدې شی کوم سرے د ګل په زړهٔ کښې

۱۵-۱۱-۹۱ ماښام په لاره مردان

زۀ د رقیب او د جانان د لارې ونۀ وتم
د ژوند په لارو د ارمان د لارې ونۀ وتم

چې په ګلونو ووم مئېن ازغی مې پښو کښې مات شو
په وینو سور - د ګلستان د لارې ونۀ وتم

کۀ په نظر مې پابندی شوه کۀ په خُولۀ مې مُهر
زۀ د دوران د امتحان د لارې ونۀ وتم

کله دې لارې تر شپې سارم - کله در نۀ شمه
بس د یقین اؤ د ګمان د لارې ونۀ وتم

ما د پښتو اُبۀ دې څښلي چې یو وار زاهده!
له هر ځۀ وځم - به ایمان - د لارې ونۀ وتم

۹۲-۴-۱۱ ماسخوتن خپل کور



بوئی د گلونو هر طرف ـ ساده ساده ـ تلې دي
د ښار په لارو جوړ د کلي څوک بنده تلې دے

بیا هم ته گوره ـ د سحر خړه کښې تا لټوی
ستا له محفله هر مئین کۀ ژړېنده تلې دے

گلونه پاڼې باڼې الوزی تر لرې لرې
د وینې بوئی دے په چمن کښې ـ درنده تلې دے

زمونږ د کور لارې له خاورو ډکې ـ پرق وهی نن
خدایه ! چې څوک په دغه لارو شهزاده تلې دے

عمرونو وشو خو زاهدؔ ئې نن هم لارې ساری
هغه ظالم د اوس راتللو په وعده تلې دے

۲۲-۲-۹۲ اسلام اباد

O

لاس دې چې د ژوند په لارو رانهٔ کړو
ژوند دې زما کله ! په خندا نهٔ کړو

ښکار دې جوړ د زړونو اوس پرې ایښې دے
غشے د نظر دې چې رسا نهٔ کړو

تا مې بس د کور لارې سهی نهٔ کړه
هر آفت مې کور کښې خطا نهٔ کړ

مرګ دې هم احسان کیم ـ خفه نهٔ یم
مینې ! چې دې نوم زما رسوا نهٔ کړو

ماته ښکاریدهٔ زاهدٌ رقیب سره !!
غرې چې په محفل کښې ورته ما نهٔ کړو

۹۲-٦-۱۰ په لاره مردان

O

چا څۀ په زندګی کښې اؤ چا څۀ په زندګی کښې
ما بائبلې د.زړۀ سره ! ګوره تۀ په زندګی کښې

اوس لاړل کروندې له د سپوږمۍ په لور ملګرو!
کوم خلق چې به ډېر ډېر پرېواتۀ په زندګی کښې

ستا دؤو سترګو ته ناست ووم ـ هغه هم اوس د رقیب شوې
نور پاتې مې اشنا دی ، وایه څۀ ؟ په زندګی کښې

دا تاته خو در پېښه شوه زړګیه ! له نظره
غلطی ده هر یو ښکلی ته کاتۀ په زندګی کښې

اوس خبر دے کۀ په مرګ راته سپک وګوری زاهده!
ما وړې د ملګرو وو درانۀ په زندګی کښې

۲۵-۷-۹۲ سحر کچری کښې مردان

هر بوئی د زندگی دے چې ، هر رنګ د زندګی
د مرګ سره روان دے ولې جنګ د زندګی؟

بنګړی دی - زولنې دی - کهٔ زنځیر دے د جنون
اشنا! زړهٔ ته پریوځی هریو شرنګ د زندګی

جاګیر چې ځوک لری د ساه - ملنګ دے کهٔ باچا
خلاصیږی نه لړ مرګه - دے قلنګ د زندګی

هر تار مې د ژوندون خولې خولې کړو اشنایانو
بیا هم ځهٔ پوهه نشوم په اهنګ د زندګی

دا ستا د پښتنو سترګو ملاتړ چې ورسره وی
زاهدٌ به تل ولاړ وینې په ننګ د زندګی

۱۱.۸.۹۲ ماښام په لاره مردان

O

اوس هم څۀ تلے نۀ دی اوس هم څۀ راغلي نۀ دی
شو به پُخـلا د جرګې خلق کۀ راغلي نۀ دی

دومره زرمانه مرور شوې - دومره زر خفه شوې
د زړۀ خبرې مې اشنا ، په خلۀ راغلي نۀ دی

سترګې مې ژاړي - زړۀ مې ژاړي - جې درد زړۀ کښې لرم
زمونږ ترکوره د سېلاب اُبۀ راغلي نۀ دی

ستا ضد وو ورغلو چمن ته - په قفس کښې کـر شو
ما درته وې سپرلی په مونږه بسۀ راغلي نۀ دی

بيا د بازار په طرف لا نۀ ځي عمرونه وشو
بيا دې زاهده! جور ياران په زړۀ راغلي نۀ دی

۲۲.۹.۹۲ کجرۍ مرغا

O

خدائے خبر اشنا! چې چرته ووتې
اُښکې ښښتنې بهر ته ووتې

یخ شو سبوری - بوئی د زلفو ختم شو
جُونه ، جوړ د ژمی نمر ته ووتې!

تلې نۀ شوې اشنا! د زړۀ له کوره مې
ده گناه زما - نظر ته ، ووتې

بوئی د محبت چا ایسار کړیدې؟
ستا زما قیصې بهر ته ووتې

تۀ خو له خلوته راوتلې ناء
ښناری جوړ زاهده! ښر ته ووتې

۶-۱۱-۹۲ سحر کچری

ولې به زاهدؔ اشنا له تانه خفه کیږی
ووایه چې چرته څوک ، له ځانه خفه کیږی؟

تاته هم تقدیر مې درمعلوم شو معلومیږی
شوندې دې اشنا چې له مُسکا نه خفه کیږی

دومره به ملګرو! په اسانه پُخلا نۀ شی
څومره چې پیٔے مخی په اسانه خفه کیږی

تۀ رانه خفه نۀ شې دا یو لوظ پوره کړه
خبر دے کۀ خدائی توله ، له مانه خفه کیږی

هغه دی زاهدهٔ! د قیامت نخښې ښکاره شوې
هغه دے مئین له خپل جانانه خفه کیږی

۱۰ بجې سحر ۸-۱۱-۹۲

O

خزان کۀ لاړو په ګلونو ویره هٰغسې ده
موسم بدل دے خو په زړونو ویره هٰغسې ده

د شپو مئېن لاړل له دے کلی نه شپې ئې یوړې
بیا هم اشنا! په سحرونو ویره هٰغسې ده

ستا د بڼو څوکې کۀ ماتې شوې څوانی دې لاړه
زړۀ مې رپیږی د زخمونو ویره هٰغسې ده

خوارۀ راوګوری پئے مخی ، خو زۀ ونۀ ګورم
ستا د نظر د قیامتونو ویره هٰغسې ده

څۀ به بدل شی تقدیرونه څوک ریښتیا نۀ وائی
په زاهدانو د وختونو ویره هٰغسې ده

۹۲ - ۱۱ - ۲۰ مردان

O

کله مې سپورمی ته کله ستورو ته کتلې دی
ټول عمر مې ستا په مینه ، نورو ته کتلې دی

زړه مې نۀ ځانېږي په جامو کښې ـ په نویونو د ے
نن یو زورور سرې کمزورو ته کتلې دی

دا دې هم احساس د مخ اؤ زلفو راسره ښکاری
کله چې مې سپینو کله تورو ته کتلې دی

لاس مې د یارۍ مات شو ـ چې مائې زړونه نۀ کتل
ما د ورو خلقو لویو سپورو ته کتلې دی

رنګ دې نن زاهده په مخ خکه پټ پتونې کړی
ښکاری د مدام خلقو ، بې کوره ته کتلې دی

۳-۱۲-۹۲ سحر سردان

O

نۀ کۀ پرې خوک تلی نۀ راغلی دی
ټول عمر مې ستا لارې سارلی دی

مونږ ورپسې مړۀ شو - مونږ چې کروکور
خدائے زده ، هغه خلق چرته تلی دی؟

ستا په تود نظر يخې جزبې زما
اُبنکې شوې له سترګو بهېدلی دی

مونږ ته د قلم د نيوو چل بنائی
هغه کانی مونږه چې تراشلی دی

خدايه يو آواز هم چرته نۀ خېژی
څۀ چل دے چې خلق داسې غلی دی

ستا نه بس زاهدہ پوره نۀ شوله
ما درسره هر څنګه منلی دی

۷-۱۲-۹۲ مردان



د نظرونو کۀ د زړونو جنګ دے
چرته ختمېږی د کالونو جنګ دے

اشنا یقین نۀ دے چې بچ شو پکښې
په دے محفل کښې د نیتونو جنګ دے

رقیبه! دا په جرګو چرته کېږی
زما او ستا خو د عمرونو جنګ دے

د چا شوګير شي د چا خوب وُرسي
د مينې جنګ د نصيبونو جنګ دے

د ژندګۍ مقصد په ځائے پاتې شو
زمونږ د دور په خوبونو جنګ دے

راشه چې زړهٔ کښې دې سنبال وساتم
چرته خُورې نهٔ شې په ملکونو جنګ دے

راځه چې ځو .دا شاعران ښکاريږي
د دوی زاهدهٔ په شعرونو جنګ دے

۹۲-۱۲-۱۸ ماښام په لاره مردان



نۀ مې زړۀ پرېږدی اؤ نۀ مې وځی د لېمۀ نه
خدائے ذده چې دا مینه جوړه شوې ده له څۀ نه ؟

تا د نوی کال سره وعدې نوې شورو کړې
ما د تېروتو ابتدا وکړه ستا د پلۀ نه

داسې معلومېږی چې مېلمه به دې رقیب وی
نن دې خالي کېږی نا بلی چې له کارغۀ نه

چرته چې مې وینې رقیبانو سره راشې
ولې مې ازار اخلې د زړۀ سره ! د زړۀ نه

چا وې چې په تلو راتلو زیاتیږی د زړۀ مینه
ماته خو راپېښه شوه والله د تلۀ راتلۀ نه

ما وې خه زاهدۀ پس له مرګه هم ژوندے شوې
واومې رېد غزل چې د خپل ځوئی اؤ له ورارۀ نه

چرته چې د ښبنو خبره وشی زاهدؔ راشی
خلاص مې کړئ ملګرو په خۀ چل د دے سپېرۀ نه

۸-۱-۹۳ غرمه

اعجاز زاهد ۔ امتیاز عابد

ور ئې په نظر کښې وو قيامت وو لاړۀ تېر شو
دا ئې هم يو رنګ د محبت وو ، لاړۀ تېر شو

نور ئې وو خۀ وس کښې چې زړکيه راکوؤل به ئې
دا نرۍ مُسکا ئې عنايت وو لاړۀ تېر شو

دېر وو کۀ واعظ ترې ، پښتو ئې وه په خوئ کښې
کوره چې کمزورې ورته ست وو ، لاړۀ تېر شو

ماته کۀ په مرګ ئې اشنا پاتې شو ، خفه يم
دېر کۀ مې رقيب وو ، ډک له پت وو ، لاړۀ تېر شو

دېرې کۀ زاهد ته دېوې مړې کړې رقيبانو
ستا لارو کوڅو کښې چې عادت وو ـ لاړۀ تېر شو

۹۳-۱-۳۰ ماښام په لاره مردان

کله د خان کړی سرے ۔ کله د جهان کړی سرے
دا مینه څۀ عجیبه شے دے ۔ سر گردان کړی سرے

نور جادوګر به څۀ وی ۔ نور د مینې زور به څۀ وی
تش په لفظونو د وعدو ، چې بندیوان کړی سرے

په یو نظر مې داسې پوئې شی ۔ چې بیا نۀ ورکوړم
دا دومره پوهه ۔ په دے عمر کښې ۔ حیران کړی سرے

نور کرامت د حسن څۀ وی ۔ معجزه څۀ شے دے
په یو نظر ۔ په یو خندا ۔ ګوره د خان کړی سرے

راشه تۀ هم نن تماشې ته د زاهد ودربږه
په لبونتوب کښې ۔به څۀ فکر د کربوان کړی سرے

۱۰-۲-۹۳ په لاره مازیګر مردان

منم چې زهٔ نیمګړې ښکارمه له تانه بغېر
خو ګورے ته هم پوره نهٔ شولې له مانه بغېر

دا هم د دے وطن د ظلم یو انداز دے ـ اشنا
تهٔ چې له مانه بغېر وُسې ، زهٔ له تانه بغېر

خلق چې ستا قیصه کوی نوم پکښې اخلی زما
هره قیصه نیمګړې ښکاری جوړ زمانه بغېر

ستا د یادونو په نشه خلق ژوندی پاتې دی
پاتې کېدېشی وایه چرته څوک له ساه نه بغېر؟

تاته به هسې ځان وړوکے بې مقصده ښکاری
زاهده! چا هم ګورے شل نهٔ کړې شوه ستا نه بغېر

۹۳-۲-۲۰ په لاره مردان

○

ځار دې له نظره غزلونه چې راسپاری
مزکې چې راسپاری - ردیفونه چې راسپاری

نۀ مې دے ، لیدلې نۀ ئې پېژنم ملګرو!
دغه سړے څوک دے مضمونونه چې راسپاری

ما ترې خوشالی چرته ونۀ لیده په کال کښې
ځار ئې له یارۍ نه تش غمونه چې راسپاری

ګوره ! ژوندے دې په نظر یم - کۀ مې وژنی
مړ یم په خندا دې ، بهارونه چې راسپاری

وې وئیل رقیب ته - چې زاهد ته سلام وایه
ګوره د ازغو سره ګلونه چې راسپاری

۹۳-۱۹۳ په لاره مردان

O

ازغو کښې د ژوندون درنه ریښې نهٔ شی پرونے
بې ځایه دې .له سره پښتنې نهٔ شی پرونے

دا دومره محبت کښې وی زور - ماته پته نهٔ وه
رامخ شوه په کوځه کښې خو نیوې نهٔ شی پرونے

دا ښه ده ترمکیا درسره شته دے چې د اُښکو
نزدې دې چرته مخ سره لمبې نهٔ شی پرونے

تا ډیره خواری وکړه خو ما ولیدې په لاره
ستا سترګې لیونۍ خو پتوې نهٔ شی پرونے

زاهده! معلومیږی مرګ دې ډیره کړه پریشانه
د کتو سره دې ځی ، ولې وړې نهٔ شی پرونے

۵-۴-۹۳ په کچړی مردان

ږېر مې کۀ کوو ورسره کور کلے
اتې د رقيب شو په پېغور کلے

ينه شوله کمه ـ تلۀ راتلۀ شو ډېر
څۀ وشو؟ تر لرې کۀ شو خور کلے

زۀ درته غږ وکړم ـ تۀ مخ واړوې
دے ته جوړ اشنا واڅى ، د زور کلے

يو فتنه کړ خدايه! د ښار څۀ راغے
کوره چې تقسيم شو کور په کور کلے

ښکارى زاهدؔ مړ دے ـ چې غږ نۀ کوى
اړوى کۀ خلق نن په شور کلے

۹۳ـ۴ـ۱۳ ماښام په لاره لاره مردان

O

ځواني ستا په جولۍ کښې زندګی ستا په جولۍ کښې
مئين دې چې څۀ مومی غورزوی ستا په جولۍ کښې

والله چې د زړۀ سره دا خدائی ورته پسخیږی
ما کړې په څۀ شان ده بندګی ـ ستا په جولۍ کښې

بیا دومره شی بې نیازه ، چې نۀ مرګ وینی نۀ ژوند
چا ځان چې غورزولې دے ساقی ـ ستا په جولۍ کښې

ما چرته ویرولې انتقام شی د وختونو
اشنا چې مې زده کړې ده یاری ستا په جولۍ کښې

زاهدؔ خو ستا په مخ کښې چرته غږ کولې نۀ شو
حیران یم کوی څنګه شاعری ستا په جولۍ کښې

۹۳-۴-۲۰ اسلام آباد

O

زړهٔ سره به څهٔ کوې ؟ ځیګر سره به څهٔ کوې؟
ځې د قاتلانو چم ته ، سر - سره به څهٔ کوې

څوک چې خوروی رڼا منم - چې به ئې سر والوزی
ګوره! ستمګره د دے نمر سره به څهٔ کوې

نهٔ راځی اشنا - زړګیه! - دا ماته معلومه ده
تهٔ د خپل یقین اؤ د باور سره به څهٔ کوې

دا خویو ازغے نهٔ دے زړګیه -چې به ئې لرې کړې
وګوره بنیو ته ئې ، لښکر - سره به څهٔ کوې

دا منم زاهده - چې محشر کښې به انصاف کیږی
دے د ګناهونو پنډ په سر سره به څهٔ کوې

۲۰-۷-۹۳ مردان

O

ستا لوظونو ونوستمه ـ ستا وعدو ريزه ريزه کړم
چا چې زهٔ راتولوؤلم هم هغو ـ ريزه ريزه کړم

د دے دور ريښتيا دا دی ـ چې دا دور د چا نهٔ دے
خپلو هم ذرې ذرې کړم ـ کهٔ پردو ريزه ريزه کړم

نهٔ دې مخ زما نصيب شو ـ نهٔ دې زلفې په لاس راغلې
چرته ورخو دړ په دړ کړم چرته شپو ريزه ريزه کړم

د ژوندون درياب دے تږے ـ کوتهٔ اُبهٔ ترينه خښل کړان دی
خواهشونو کهٔ په دار کړم ـ تلوسو ريزه ريزه کړم

زما ژوند هم يو کتاب دے ـ له دردونو ډک زاهده
خپلو اُښکو کښې دوبېږم ـ کهٔ سلګو ريزه ريزه کړم

۲۷-۷-۹۳ مردان

تاسره یاری خو به مې خامخا کوؤله
کله ! شاعری خو به مې خامخا کوؤله

نۀ تړوکېدۀ ګل چې بې له وینو په دے رمکه
داسې ابیاری خو به مې خامخا کوؤله

ستا د کور شراب وو ترمکیا مې کړۀ په خلقو
څۀ نه څۀ مستئ خو به مې خامخا کوؤله

ډېر ووم کۀ مئیُن په تا ـ خو غر مې په خُله نۀ وو
دومره بې ایمانی خو به مې خامخا کوؤله

څۀ رنګه اشنا ته به مې ستا بنۀ وے رقیبه!
دغه دشمنی خو به مې خامخا کوؤله

نور مې چې وس نۀ کېدۀ ـ زاهدۀ زړۀ مې ورکړه
خپله غریبی خوبه مې خامخا کوؤله

٦ـ٨ـ٩٣ کور مردان

O

خلقو کۀ په زړونو د بنو کربنې راخکلې دی
مونږه په سینو هم د ازغو کربنې راخکلې دی

خدائے خبر په مخ ئې ورته څۀ خبره کړې ده
نن چې مې جانان په آئینو کربنې رُاخکلې دی

مینه له پئے مخو ۔ کتبوری غوبنتل له زانو دی
ټول عمر مو هسې په اُبو کربنې راخکلې دی

دا دې هم احسان دے چې مې راغلې د مرګی په وخت
ما دې د ټول عمر په وعدو کربنې راخکلې دی

څۀ رنګه رقیبه! معافی غواړې د اشنا په نوم
ستا او زما مئینځ کښې خو پښتو کربنې راخکلې دی

تاته جوړ زاهدَه ۔ خط د یار بنکاریدو ۔ خُکل دې کړو
دا خو په دیوال چا لیونو کربنې راخکلې دی

۸۔۹۔۹۳ کور ماسخوتن مردان

مینه کښې مئین همېش په زړهٔ لیکی خطونه
ماته مې جانان په دېوالهٔ لیکی خطونه

هسې مې هندکے رقیب تحریر ته ګوته نیسی
ټول عمر له نبغ خلق کاکهٔ لیکی خطونه

نور مې هېڅ ارمان په پښتون زړهٔ کښې پاتې نشو
کله په پښتو به پښتانهٔ لیکی خطونه

پوئې شه بې تپوسه به جنت کښې وی زړګیه!
څوک چې عجمی مئېن له وهٔ لیکی خطونه

هغه خوارهٔ خلق چې لېمو کښې مې وسېږی
څهٔ شو ؟ خدایه ! ولې راته نهٔ لیکی خطونه

یو قلم ئې لاس کښې ؤو سره د لاسه مات شو
تاته به زاهدؔ اخر په څهٔ لیکی خطونه

۲۰-۹-۹۳ په لاره ماښام مردان

O

ستا د نظر لېونې چرته ګرځی
اوتر اوتر لېونی چرته ګرځی

دیدن د یار همېش په شپه کښې کیږی
په مازیګر لېونی چرته ګرځی

سردار د بنګلو کډه چرته یوړه
دی در په در - لېونی - چرته ګرځی

د پُوه دې شپې ته په باران کښې ګوره
چې دا بهر - لېونی چرته ګرځی

د شپو په زور کښې شو زاهدهٓ لاهو
اوس د سحر لېونی چرته ګرځی

۹۳-۱۰-۳ مابنام مردان

سې کتل ماته - تا حېران کړمه
؛ ګوری څوک چاته - تا حېران کړمه

ینه لرې زړهٔ کښې کهٔ نفرت لرې
ېرته کتل شاته - تا حېران کړمه

و نظر کښې درمره قیصې - څهٔ معنٰی ؟
شم کتے تاته - تا حېران کړمه

مهٔ خوره قسم - هسې تعلق قطع کړه
لارې انتها ته - تا حېران کړمه

خلق شو زاهده! ټول حېران تاته
وائې چې هر چاته - تا حېران کړمه

۹۳-۱۰-۲۰ د کور په لار څلور بجې مازیګر مردان

سپوږمۍ ته وګورم اشنا ـ کۀ نمر ته وګورمه
تۀ رانه چرته شوې جدا ـ تا چرته وګورمه

تۀ مې د فکر اثاثه ئې ـ خو لېدې دې نشم
اخر په کومه طریقه نظر ته وګورمه

منم چې ناست ئې مخامخ ـ سود د دیدن مې نشي
څۀ په نظر نۀ راځې ډېر کۀ نمر ته وګورمه

د قاتلانو له فهرسته مې نوم نشي وتې
ذرې ذرې چې د وطن سحر ته وګرومه

مېله د پېغلو راته مخکښې شي ـ منګې رایاد شي
زاهده! کله هم چې ښار ګودر ته وګورمه

۳-۱۱-۱۶ د شپې ۱۱ بجې کور مردان

مونږ ته چې راګورې خوش بختی - به ورته وایو
حق نۀ دے اشنا مهربانی به ورته وایو

کته ئې تاوان دے همېشه چې د زړۀ سره !
مینه - مینه نۀ ده جواری به ورته وایو

ستا هره خبره چې منو د خائېست شمعې
دغه کۀ ده مېنه بندګی به ورته وایو

کله کله مونږ ته چې په ښه سترګه راګوری
ډېر کۀ شوم یادېږی خو سخی به ورته وایو

څۀ د وخت خبرې - څۀ - صفت ستا د ځوانی دے
څۀ چې دی زاهده! شاعری به ورته وایو

نوټ

یو ورک شوې غزل چې به ردی کښې مې بیا موندو

د لیک نېټه پرې نشته دے

○

چا څۀ بانه کړل اؤ چاڅۀ ـ له مانه لرې لاړل
ما ګتې کېښودې په زړۀ ـ له مانه لرې لاړل

زولنې څۀ وی د وختونو ـ هر یو شے بدل شی
ډېر کۀ مې خلق پېژندۀ ـ له مانه لرې لاړل

د چا چې شوق وو د دیدن ـ د مرګ په لار هم راغلۀ
څوک چې په زړونو کښې ووغلۀ ـ له مانه لرې لاړل

ما وې په زړۀ کښې مې وسېږی ـ مانه لرې نۀ ځی
ماته چې ډېر نزدې کېدۀ ـ له مانه لرې لاړل

زاهده! نور به لا اتبار، وایه ! څۀ وکړی سړے؟
زما زړګے ، زما لیمۀ ، له مانه لرې لاړل

۹۳-۱۲-۸ سحر مردان

O

ماله چې راشې اشنا - ماته ګوره
ده ډېره لويه دنيا - ماته ګوره

خبر دے که بنهٔ د رقيبانو غوارې!
غوارې چې کله دُعا - ماته ګوره

اُښکو لمن د ژوند ورسته پسته کړه
کال کښې يو ځل په خندا - ماته ګوره

نهٔ مې په شپه - نهٔ مې په ورځې څهٔ کار
تهٔ په تيارهٔ ، په رڼا - ماته ګوره

په زمکه څهٔ شے دے - چې ښکته ګورې،
کوؤم قيصه د وفا - ماته ګوره

زلفے ئې ويخ کښې کړې قېنچې زاهده!
ورُې ئې کومه سودا - ماته ګوره

۹۳-۱۲-۱۸ په لاره ماښام مردان

نیسی چې لمنې - په ازغو کښې پښتو شته کنه ؟
دوی د مېلمنونه - پښتنو کښې ، پښتو شته کنه ؟

بې له تانه ګډ نۀ شو هیڅاته د مجمر په سر
څۀ رنګه اشنا په سپېلنو کښې پښتو شته کنه

ویلے لکه واوره شو - د وخت لاسو کښې ورک نشو
وګوره - اټک سره - اُبو کښې - پښتو شته کنه

ماتې آئینې شوې - خو ستا عکس پکښې روکیږی نا
وګوره اشنا! راته ، ککو کښې پښتو شته کنه

بل نوم ئې زده نۀ کړې شو زاهدَ کۀ د "پنځوسو "شو
ووایه! اشنا په لېونو کښې پښتو شته کنه

۹۳-۱۲-۲۵ ، ۹:۳۰ ماسخوتن کور مردان

تېرېږي خدايه! ولې نا دا شپه د نوی کال
کالونه محسوسېږی یو لخطه د نوی کال

بلا عمر لا پروت دے د ګناه اؤ د ثواب
واعظه! اغستل غواړی مزه د نوی کال

يقين نهٔ دے چې تږی د عمرونو شی سېراب
زړهٔ چاودې معلومېږی دا کاسه د نوی کال

هر لوری ته بارود دی په هر خوا د وینې رنګ
ښه نهٔ ښکاری ملګرو ـ اندازه د نوی کال

څو اُښکې ـ څو اهونه ـ د دردونو یو داستان
قبوله کړه د زړهٔ سره ! تحفه د نوی کال

بې شماره قیامتونه ئې لمن کښې دی تړلی
زاهده ! استقبال وکړه ورځه د نوی کال

۳۱-۱۲-۹۳ ۱-۱-۹۴

د شپې ۱۲:۳۰ بجی کور مردان

کۀ ستا په وس کښې دی اشنا ـ زما په وس کښې نۀ دی
لمحې دی تاته په خندا ـ زما په وس کښې نۀ دی

زما په وس کښې وې هلۀ ـ چې مې په سترګو کښې وې
اُښکې مې نه ځی اوس په شا ـ زما په وس کښې نۀ دی

ځان به لاهو په سمندر کړم ـ خو تا نشم پرېښوې
دغه مې وس کښې دی ـ خو دا زما په وس کښې نۀ دی

منم همځولو چښې محفل دے ـ خو چې زړۀ مې لاړۀ
سلګی زما دی خو والله ـ زما په وس کښې نۀ دی

بس خو طبعیت کښې مې زاهدهٓ ـ مصلحت نشته دے
ډېر تاوانی ئې کړم "رینبتیا" زما په وس کښې نۀ دی

١٠-١-٩٤ ١٠:٣٠ ماسخوتن کور

O

په تا مئین یم ـ ستا کوڅې ته مې کتلي نهٔ دی
کوږم سجدې ولې کعبې ته مې کتلي نهٔ دی

څومره ساده وی د مئینو زړونه ـ تل تېروځی
ستا انتظار کړم ـ ستا وعدې ته مې کتلي نهٔ دی

خپله څهره کړه رانه هېره ـ د وختونو جبر
عمرونه وشو ـ آئینې ته مې کتلي نهٔ دی

څومره نشه ده ستا د سترګو ـ اشنا عمر وشو
له تندې مرم ولې کاسې ته مې کتلي نهٔ دی

زاهده ! بیا هم یم د ژوند له آسائښ محروم
په مزدورۍ کښې ورځې شپې نه مې کتلي نهٔ دی

۹۴-۱-۱۲ ۱:۳۰ ماسخوتن کور

O

ما درله احساس د حسن درکړو شهزاده مې کړې
هر څوک درته ګوري ـ ستا هیرېږي ـ آئینه مې کړې

ځان ته چې اشنا ګورمه ، زړهٔ مې اُبهٔ ونهٔ څښي
ډېر کهٔ مې د عمرنه ارمان دے چې مېلمه مې کړې

نهٔ درنه تخت غوارم ، نهٔ مې تاج سره خځهٔ مینه شته
خدایه ! چې بلېږم د تیارو په ضد ـ ډیوه مې کړې

دومره مې اشنا د فن کمال دے ، دومره زور د عشق
ګل مې کړې ـ خوشبو مې کړې ـ خائېست مې کړې ـ نغمه مې کړې

تا خو به زاهده! په ممبر هم ریښتیا نه وئېل
څنګه ریښتیا وائې چې په مئیو اوختـه مې کړې

۲۵-۱-۹۴ ماہنام کور مردان

O

مړ به دې کړی زړۀ خو درته ګوری نا
ښکلی دېر نیازبین دی بیرته ګوری نا

لاړ به کړی غلطه - یا به ولویږی
سر ته چې ئې خېژی ، غر ته ګوری نا

څۀ مطلب پرست شو د دے وخت فقیر
سوال ترینه کوی ، خو در - ته ګوری نا

تاته که نېغ نۀ ګورم. - کتې نۀ شم
نېغ خو اشنا څوک هم نمر ته ګوری نا

بیا ئې هم مئین د نظر خېر غواړی
کال کښې کۀ یو ځل هم چرته ګوری نا

غواړی ترې زاهد مینه د خدائے په نوم
څکه خو دا ښکلی ورته ګوری نا

۶.۲.۹۴ د پېښور یونیورسټی په لاړ

۶:۳۰ ماښام



تنده ماتول غواړی - په لاره کښي
نن خو چرته څښبل ، غواړی په لاره کښي

هسې خو سپړلے په وطن نهٔ راځی
وینې تویؤل غواړی په لاره کښي

زړهٔ وی - کهٔ دېوه - چې تیارهٔ کمه کړی
څهٔ خو بلوؤل غواړی په لاره کښي

ستا په لمن تور چې مئين نۀ غواړي
ځان ورته وژل غواړي په لاره کښې

زړۀ مې لېونے شو ځائے ځائے نۀ ګوري
يار ته څۀ وئېل غواړي په لاره کښې

زړۀ مې دے پښتون محفل کښې نۀ ژاړي
اُښکې تويؤل غواړي په لاره کښې

ګوري چې پئے مخو ته زاهدؔ په شا
ځان جوړ روکوؤل غواړي په لاره کښې

۲۸-۳-۹۴

د پنډۍ په لار ۳ بجې ماسخوتن

تاوئېل ، رقيب وئېل ، کۀ ما وئېل
يو بل ته دروغ وو ، چې هر چا وئېل

زۀ خپل اعتماد په تا لاهو کړمه
تاته بې وفا ګڼي دنيا وئېل

راغے د رقيب سره - وې ستايمه
خومزه لوئے دروغ ئې په خندا وئېل

شومه چې په دار ، راته معلومه شوه
دلته دے د مرګ زېرے "ريښتيا " وئېل

ستا خبرې! ستا په مخکښې ! ګرانه وه
څنګه به شعرونه درته ما وئېل

۹۴-۴-۱۲ په لاره ماښام مردان

O

مړ په هغه ورځ شوم ـ محبت چې رانه پاتې شو
کډه مې په سر شوه ستا محلت چې رانه پاتې شو

غوارې مې همځولې د ځوانۍ د وخت خندا ـ مستې
چرته شم خندلې اوس ـ عادت چې رانه پاتې شو

اوس هم لکه ګرد د مېلمنو سره جلب کېږم ځم
هله راته مړ ووائۍ ـ پت چې راته پاتې شو

یُوکۀ شېشه ګر ـ اوسُو مونږ ـ کاڼې په لاس خلقو کېږي
فن کېږي ـ مجبوري ده ـ نزاکت چې رانه پاتې شو

اوس مې هم ملګرې په لمنه باندې مُونځ کوي!
اوس د څۀ زاهدّ یم ـ عبادت چې رانه پاتې شو

۹۴-۵-۱۰ مردان

O

دا چې کله را شم - کله رانشم
وایم چې بل چا سره اشنا نشم

دومره بې وفا لکه د وخت نهٔ یم
لاړ چې شم اشنا او بیا دې رانشم

دومره خوبه وشی زهٔ به زهٔ شمه
خبر کهٔ دې په سترګو کښې مسکا نشم

هر ځل دې تېروځم په وعده د نن
هر ځل کووم قصد چې به خطا نشم

ځکه مې زاهده! دنیا خوښه ده
ستا غوندې بې ایمانه د دنیا نشم

۹۴-۵-۳۰ مردان



وېښې چې نشي - د هېرېدو نهٔ دی
سترګې مېخانې - د هېرېدو نهٔ دی

یو چې هم په ژوند زما پوره نشوه
ستا هغه وعدې د هېرېدو نهٔ دی

دا د ژمی شپه ـ تاودې تاودې خولې
ګله دا لمحې د هېرېدو نهٔ دی

ډېر وؤ کۀ غربت خو امن - مینه وه
تېرې زمانې - د هېرېدو نۀ دی

کانی زړونه هم چې کړی أبۀ أبۀ
دغه نظارې د هېرېدو نۀ دی

ستا د مینې لار کښې مې حاصلې کړې
دغه تجربې د هېرېدو نۀ دی

اوس ئې کۀ زاهده ! وخت تېر شوې دے
بیا هم دا ډیوې د هېرېدو نۀ دی

۹۴-۷-۲٦ په لاره

بې له خوبونو تعبیرونه وېشي
څومره خوارهٔ زهر وختونه وېشي

مونږ ته راګوري په ازغنو سترګو
جانان په خلقو ګلابونه وېشي

څومره هوښیار شُو د دے دور خلق
خپلو کښې کښېنې خېراتونه وېشي

مېخانې شارې کړې ګل مخو د وخت
په هر نظر کښې شرابونه وېشي

وُرې به پخپله د ژوند بار زاهدهٓ!
چرته څوک چاسره دردونه ویشي

۹۴-۷-۳۱ مردان

O

خبر دے اشنا کۀ مې سر پاتې نۀ شی
خو چې رقیب دې په در پاتې نۀ شی

ساقی ستا نوم سره شُومتیا نۀ بنائی
سپرلے دے - پورې دې ور پاتې نۀ شی

چې ستا نظر شوم هر څۀ راغلۀ په لاس
کۀ مې د سترګو نظر پاتې نۀ شی

هېڅ څوک مړۀ نۀ دی د دروغو په سر
هسې سړے معُتبر پاتې نۀ شی

زاهدّ دې ځائے نشی د ژوند په لمن
چې ستا -له سترګو بهر پاتې نۀ شی

۱۷-۸-۹۴ مردان کچرے

O

نن خو مې جانانه - خطا وبخښه
شوې ده له مانه خطا - وبخښه

قصد پکښې شامل د رقيب نهٔ ښکاری
کيږی د خطانه - خطا - وبخښه

راغله په خپل ژوند پورې خندا پرون
لار شوه له خندا نه خطا - وبخښه

زړهٔ کهٔ دې قاتل دے خو معصوم هم دے
کيږی له هر چانه خطا وبخښه

پند په سر زاهد د گناه درغے
غواړی عفوه ستا نه - خطا - وبخښه

۹۴-۸-۲۸ سحر کچری مردان

O

وُدې کړې خبرې بلا - پوئې نۀ شوم
تا په يو نظر کښې اشنا - پوئې نۀ شوم

ژوند دې خدايه ! راکړو اذيت سره
هېڅ دې په انعام اؤ سزا پوئې نۀ شوم

تۀ اؤ کتل ماته ؟ بيا په دے انداز؟
نن دې په مطلب د خندا پوئې نۀ شوم

مېنه کښې سرے مطلب پرسته شی
راغلمه کوخې ته دې بيا پوئې نۀ شوم

بيا دې په ممبر نن زما نوم اغست
څۀ مې ده زاهده! خطا - پوئې نۀ شوم

۱۴-۹-۹۴ ماښام په لاره مردان

ظلم به په تا اؤ په ما - داسې وی
نشو کۀ يوځائے ، تل به بيا داسې وی

لاس دې هسې نۀ ځی - صراحی پله
راکړه چې جام ډک کړمه دا - داسې وی

راغلې لکه ياد اوس اجازت غواړې
وايه تلۀ چاله - د چا - داسې وی؟

دلته په هر ښکلی مخ - خبرن نظر
دلته کښې صفت د ښکلا داسې وی

دا به څۀ خطا وی چې خطا کړی ځان
خلق چې خطا کړی - خطا داسې وی

نۀ تۀ ليونے شوې ، نۀ زاهده! مړ
مينه کښې خو داسې وی - يا داسې وی

۲۸-۱۰-۹۴ مردان په لاره لاره

O

ستا نه بیلېدهٔ مې په قسمت کښې وو
یاره ژړېدهٔ مې په قسمت کښې وو

لاړمه حرم ته په واعظ پسې
خدایه! روکېدهٔ مې په قسمت کښې وو

راغله خندا ژوند پورې اؤ مړ شومه
دومره خندېدهٔ مې په قسمت کښې وو

اُښکو کښې څوک ډوب دی ـ چې زهٔ ډوب شومه
بس خو ډوبېدهٔ مې په قسمت کښې وو

لاړمه یو ګام بس د زاهدٓ په لار
څومره کړېدهٔ مې په قسمت کښې وو

۴-۱۱-۹۴ په لاره لاره مردان

تی وی ـ اواز (انتظار علی)

O

ځان رانه هېر شو آئېنې ته به ځوک څۀ وګوري
دا څۀ وختونه شو ؟ څهرې ته به څوک څۀ وګوري

چې ستا نظر پردے پردے شو ـ ستا خندا د بل شوه
څۀ به څوک درشي ـ ستا کوځې ته به ـ څوک څۀ وګوري

تاخو کړې زلفې د مئېنو په نوم ، مخ دې پټ کړو
چې سحر نۀ لري ـ دے شپې ته به څوک څۀ وګوري

هر سړی تنده د ژوند ماته کړه د زړۀ په وينو
وايه ساقي ستا مېکدې ته به څوک څۀ وګوري

هره سجده کښې شوه ريا اؤ نمائېش زاهده!
ستا کليمې ته ـ ستا سجدې ته به ، څوک څۀ وګوري

۹۴-۱۱-۱۰ ماښام په لاره مردان

چرته کۀ د ځان په تماشه شو نو وریاد به شم
پېښ کۀ د دوران په آئینه شو نو وریاد به شم

تول عمر ئې ما نازونه وړې دی - بې نېازه دے
لږ له رقیبانو کۀ خفه شو نو وریاد به شم

زۀ به ئې ترقیامته انتظار کړم چې مئین ئې یم
یار کۀ په لوظونو شرمنده شو نو وریاد به شم

شاړه مېخانه وه د ساقی - خو ما آباده کړه.
لږ په دغه لوری کۀ ښکاره شو نو وریاد به شم

تول عمر زاهد راسره هسې دشمنی وکړه
پوئې کۀ په شرابو - په نشه شو نو وریاد به شم

۱۷-۱۱-۹۴ په لاره مابنام مردان

O

اشنا کال نوې شو وعدې نوې کړه
زما د ژوند لمحې لمحې نوې کړه

دُعا هم ښه ده اُښکی وُچې نه کړې
زما په قبر دا ډیوې نوې کړه

سترګې زړې ښې دی پښتو چې لرې
بس خو ساقی دا پیمانې نوې کړه

هره ادا ئې شوه مصرعه د حمزهٓ
زړګیه! تهٔ هم تلوسې نوې کړه

زاهدهٓ! لار کړه د غزل بدله
وخت نوې کیږی قافیې نوې کړه

۱-۱-۹۵ ۳۱-۱۲-۹۴



ستا شونډې دی خاموشه ـ ستا نظر کښې خاموشي ده
اشنا ! زما د ژوند په هر ډګر کښې خاموشي ده

اسمان جوړ بيا نيولی دی لمن کښې محشرونه!
ملګرو! تولہ ورځ چې نن په نمر کښې خاموشي ده

دنيا اؤ عُقبیٰ ماته يوه لار ښکاری ملګرو!
دے سر کښې بلا شور دے ـ هغه سر کښې خاموشي ده

حېران یم چې زلمو اؤ پېغلو چرته یوړې کډې
حُجرې شاړې پرتې دی - په گودر کښې خاموشی ده

یو تهٔ نهٔ خښې واعظه - بل ته زهٔ یمه زړهٔ ماتې
شرابو کښې کهٔ شور دے - په کوثر کښې خاموشی ده

ښکاریږی چې گل مخو چرته بل خوا وکړه مخه
دا ولې د سپرلی په مازیگر کښې خاموشی ده

زاهدهٔ! د حمزهٔ د غزل زور کمېدې نهٔ شی
بیا ولې بې سببه په خېبر کښې خاموشی ده

۹۵-۱-۸ کور د شپې ۱۲ بجې
( د حمزهٔ صیب کلیزې مشاعرې د پاره)

O

اوس مې هم زړۀ غواړی تا ـ اوس مې هم نظر غواړی تا
عُمرونه وشو خو بیا هم په هر ډګر غواړی تا

بښرے ستومانه شی د ورځې ، اشنا! ستا په تکل
مازیګر ژاړی په سرو سترګو ګوره! نمر غواړی تا

ستا د نظر د نشو زور ته به څۀ نوم ورکړمه
خلق له خدایه کوثر غواړی ـ خو کوثر غواړی تا

زما د نوم تپوس کوی ـ خو نخښې ستا ورکوی
زما رقیب څومره په چل اؤ په هنر غواړی تا

نه په جنت ئې څۀ کار شته نۀ په دوزخ ئې څۀ کار
زاهد له خدایه هم سحر هم مازیګر غواړی تا

۲۳-۱-۹۵ سحر کچړی کښې مردان

دا خنکه نوې کال دے؟ ستا لیدهٔ راباندې بند شو
د ژوند په هره لاره کښې، هر څهٔ راباندې بند شو

دا "چا" ازار کتلو ژوند ته ـ داسې ښېرې وکړې؟
سلګۍ دی په هر لورې خندېدهٔ راباندې بند شو

ملګرو ښارئې اوس له څنګله شوې بترې
وتې نشو له کوره، ګرځېدهٔ راباندې بند شو

زمونږ د کلي خان پرون دېزال د کور وچت کړو
ستا کور ئې کړو پناه ـ لیدهٔ کاتهٔ راباندې بند شو

زاهده! نهٔ حرم ته شوې نهٔ لارې میخانې ته
خوارهٔ راباندې بند شو هم تراخهٔ را باندې بند شو

د ۹-۱-۳۰ غرمه کچرې مردان

O

خهٔ رنګه سپرلے شو ؟ د راتلو نهٔ وو
یار زما په در د موسېدو نهٔ وو

سر کهٔ مې قلم شو - د اشنا - په سر
وائی به زړګیه ! بې پښتو نهٔ وو

نن مې مُعجزې د نظر ولیدې
مړ کهٔ مې ؤو زړهٔ - د درزېدو نهٔ وو

ووایه ریښتیا چې وینه " چا " درکړه؟
ستا د سر ګلاب د غوړېدو نهٔ وو

تهٔ اؤ مېخانه کښې ؟ د ساقی سره؟
دا کار خو واعظه د کېدو نهٔ وو

غلے مې زاهده! حمزه ولیدو
دغه سمندر د وچېدو نهٔ وو

۵-۲-۹۵ سحر ۹:۳۰ بجې مردان کور

اشنا نۀ شم وئیلے ۔ ستا نظر کښې څۀ کمې د ے
سبزلې چې مې نشی په د ے نمر کښې څۀ کمې د ے

هېڅوک ئې باچا نۀ منی ملګرو ! په د ے زمکه
مونږ تاج ورله پیدا کړو خو په سر کښې څۀ کمې د ے

زړګیه طریقه کۀ د غوبنتو دې چرته زده کړه
هر څۀ به درله درکړی ۔ هغه در کښې څۀ کمې د ے

ملګرو ! رنګ د وینو ئې خپل نۀ کړی شو ۔ تراوسه
سپین رنګے ۔ معلومیږی د ے "سحر" کښې څۀ کمې د ے

په درد دې خبر نۀ کړې شو تول عمر کښې زاهدهٔ
ښکاریږی ستا په فن اؤ په هنر کښې څۀ کمې د ے

۶۲-۴-۹۵ ماښام په لاره مردان

ګوره د دے ګلی خلق ـ څۀ رنګه خاموشه دی
خاورې کۀ پرې نولی خلق ـ څۀ رنګه خاموشه دی

دلته کښې څوک لاس د قاتل نۀ نیسی ـ مرګی له ځی
درد د ژوند ځپلی خلق ـ څۀ رنګه خاموشه دی

خوئی چې د پتنګ لری لمبو کښې هم غږ نۀ کوی
ګوره دا سپېځلی خلق ـ څۀ رنګه خاموشه دی

ستا خندا د سترګو آئینې ګویانه کړې دی
ستا د خُلې رټلی ـ خلق څۀ رنګه خاموشه دی

نۀ دې اوس څوک پېژنی زاهده ـ نۀ دې نوم اخلی
ستا د لاس ختلی خلق ـ څه رنګه خاموشه دی

۲۷-۴-۹۵ په لاره مردان

O

بیا د بنو سبوری ته مې زړۀ کیږی
څم د ازغو سبوری ته مې زړۀ کیږی

شرنګ د زولنو مې زړۀ ته پرې نۀ وت
ستا د بنګړو سبوری ته مې زړۀ کیږی

وریت دې کړمه مخ - زلفې دې غوارمه
یم په غرمو - سبوری ته مې زړۀ کیږی

څومره به د ژوند په اور کښې ځان سېزم
څم د پیالو سبوری ته مې زړۀ کیږی

توان راکښې زاهدهٔ ! د ژوند ختم شو
ستا د تسبو - سبوری ته مې زړۀ کیږی

۱۲-۵-۹۵ سحر کور د اختردویمه ورځ

O

بیا د بڼو سپوری ته مې زړهٔ کیږی

ځم د ازغو سپوری ته مې زړهٔ کیږی

شرنګ د زولنو مې زړهٔ ته پرې نهٔ وت

ستا د بنګړو سپوری ته مې زړهٔ کیږی

وریت دې کړمه مخ - زلفې دې غوارمه

یم په غرمو - سپوری ته مې زړهٔ کیږی

څومره به د ژوند په اور کښې ځان سېزم

ځم د پیالو سپوری ته مې زړهٔ کیږی

توان راکښې زاهده ! د ژوند ختم شو

ستا د تسبو - سپوری ته مې زړهٔ کیږی

۱۲-۵-۹۵ سحر کور د اختردویمه ورځ

O

اوس مې هم زړګے او سترګې "تا" غواړی له خدایه
هغه پخوانی مینه دې بیا غواړی له خدایه

خلقو ته معنٰی د ژوند او مرګ جوړې یوه شوه
کله هغه غواړی ـ کله ـ دا غواړی له خدایه

څومره دې مئین په اداګانو باندې مړۀ دی
ګوره چې خندا دې په ژړا غواړی له خدایه

ښکاری د حسینؓ اؤ د یزیدؔ قیصه زړهٔ شوه
خلق اوس یو نوې کربلا غواړی له خدایه

هیڅ هم ورته یاد نۀ دی اشنا ـ بې ستا له نومه
لاس ئې کړل وُچت ـ زاهدؔ دعا غواړی له خدایه

۲۰-۵-۹۵ مابنام په لاره مردان

O

دیدن د ګل هم غواړو لاره هم ازغنه غواړو
څهٔ لېونی یُو زندګی ځان له سنګ زنه غواړو

هر یو مئین وی د ګمان اؤ د یقین په مئېنځ کښې
تل په وعده باندې راتلهٔ له دروغژنه غواړو

دومره تراخهٔ راله وخت راکړل چې خوارهٔ مو هېر شو
اوس ذائقه د زندګۍ هم زهر جنه غواړو

سپرلے د ژوند د پُولې هاغه سر ته ورسېدهٔ
مونږه لا اوس هم سرهٔ ګلونه له چمنه غواړو

تاته ځان سترے ښکاری ـ تاته قلم سترے ښکاری
مونږ لا بـلا معنې زاهدهٔ ! ستا له فنه غواړو

۹۵ـ۷ـ۱۰ ماسخوتن کور

ستا دړدېدلی اکثر - تاته دعاګانې کوی
اوس مې هم زړۀ او نظر - تاته دعاګانې کوی

هغه مئین چې ستا د زلفو سېورے ئې ونۀ لیدو
اوس هم ولاړ دے په نمر - تاته دعاګانې کوی

ستا ثانی نشته خو مئین دې هم ثانی نه لری
کوره کړی ځان سره شر - تاته دعاګانې کوی

ساقی خفه نۀ شې واعظ دننه هر څۀ وائی
له مېخانې نه بهر - تاته دعاګانې کوی

هغه زاهدؔ چې همېشه دے تا له در شړلې
هغه فقیر ستا د در - تاته دعاګانې کوی

۸-۸-۹۵ ماښام په لاره مردان

ځوک په نمرخاتۀ ځوک په قبله وځي د کلي نه
هر خواته چې ځي - ستا په نامه - وځي د کلي نه

ډېر مې کۀ ښاری رقیب ته وې - چې دلته مۀ راځه
نۀ ئې منل - اوس څۀ رنګه - پیکه وځي د کلي نه

ګوره چې پرون پرې وو ګلونه د سهرو پراتۀ
نن په هغه لارو جنازه وځي د کلي نه

تیک ده چې روزګار له ښاریئې ته ځي ملګری مې
ځومره دی پرېشان - ځومره خفه وځي د کلي نه

نن خو به اشنا لړ.شان راوتې وې - چې څۀ چل دے؟
نن خو دې زاهد په توره شپه وځي د کلي نه

۰۵-۱۰-۷ د پېښور په ډلاره

O

هر سړے خپل یار ته ګوری ټول عمر
سترګې مې ستا لار ته ګوری ټول عمر

پاتې شی رندان تږی - غرِ نهٔ کوی
دا خلق خپل وار ته ګوری - ټول عمر

ژوند د غریب څهٔ وی ؟ د وهمونو ښکار!
رانشی - بهار - ته ګوری ټول عمر

ساه ئې بې قراره د ژوند تېره شی
څوک هم چې قرار ته ګوری ټول عمر

شپه د زاهدؔ ژوند کښې به ، په څهٔ راشی ؟
دے خو ستا رخسار ته ګوری ټول عمر

۸-۱۱-۹۵ مابنام په لاره مردان

ګلو کښې رنګ دے - په غوټو کښې رنګ دے
ستا له نظره - په سپرلو کښې رنګ دے

ستا رنګ کښې رنګ شی - چې دروګوری څوک !
هر یو اندام دې رنګینو کښې رنګ دے

تا ورته خدائے زده دی کتلی - کله ؟
اشنا ٬ - تراوسه آئینو کښې رنګ دے

تهٔ رانه څهٔ خفه شوې - نه راځی اوس
ستا تصور هم - په پښتو کښې رنګ دے

چا در کتلی دی ریښتیا وُوایه!
نن دې زاهدهٔ! اننګو کښې رنګ دے

۳۰-۱۱-۹۵ ماښام په لاره مردان

O

خدایه دوه سترګې دې ژړا له راکړې
ولې صدمې دې څومره ماله راکړې

ستا به څۀ کم شی - مرګه روستو راشه
کۀ دوه څلور ورځې خندا له راکړې

چرته کښې اور - چرته سېلاب اؤ وینې
څنګه تحفې دې نوی کاله راکړې

د ننن وعدې دې راله ساه دوبه کړه
پند د لوظونو به سبا له راکړې

واخله زاهده - ستا سودا وه زلفې
دا زولنې دې اشنا تاله راکړې

۹۵-۱۲-۳۱ ماسخوتن ۱۱ بجې خپل کور مردان

O

ښکلو خندا پرېښوده
زړه مې درزا پرېښوده

راغے جوړ قیامت په سر
زړونو دعا پرېښوده

قدر شو د ژوند بدل
خلقو وفا پرېښوده

مونږ ته سرمایه غزل
لویه - حمزه پرېښوده

هیڅ به هم - حاصل نهٔ کړی
چا چې دنیا پرېښوده

څهٔ به بائېلی اوس خلقی
جُونو مسکا پرېښوده

څهٔ مې ئې زاهده اوس؟
ستا لمن ما پرېښوده

۹۶-۱-۲۷ سحر کور مردان

O

نۀ ستا نه راتلۀ نه مې درتلۀ کيږی جانانه
مينه جوړ کميږی دا به څۀ کيږی جانانه

خدائے راته وختونه رقيبان کړل مړ مې نۀ کړی
نن مې ستا ديدن ته بلا زړۀ کيږی جانانه

ډيره موده پس يو "اکبر" بل امتحان اخلی
هسک به ورته ګورو چې هر څۀ کيږی جانانه

دلته تش خوبونه د جنت خلق ليدې شی
زۀ او تۀ ئې چې غواړو ـ هغه نۀ کيږی جانانه

تا سره مې لوظ د يارئ دے لا تراوسه
بۀ کيږی جانانه ـ اوس کۀ بۀ کيږی جانانه

ښکه خو زاهد له تولو ورستو وی هر څۀ کښې
دۀ نه خوشامندې د چا نۀ کيږی جانانه

۹۶-۵-۷ ماښام په لاره مردان
(مغل اکبر باچا)

په انتظار ولاړ په نمر وچ شو
حمزهٔ په طمع د کوثر وچ شو

څۀ به کمان څۀ په باور وچ شو
د غرۀ ګلاب وو په ډنډر وچ شو

زاهده! ما حمزهٔ خاموش ولیدو
حېران یم څنګه سمندر وچ شو

O

ستا په هر غزل هره مصرعه مرمه
زۀ دې یم مئېن ستا په نامه مرمه

مرګ دے په نیته ـ حمزهٔ ژوندے یمه
ما وې. زۀ به ستا په جنازه مرمه

(د حمزهٔ په وفات)

O

چرته دے رقیب - چرته زېبار - خطا
بس خو شو د مېنې کاروبار - خطا

تا مې تش کتل تراوسه معاف نۀ کړل
خدائے خو هم بخښي - ګوره ! یو وار - خطا

دواړه شُو خطا - چې ساقي څۀ چل دے؟
ستا نه لار خطا شوه - مانه وار خطا

ژوند خو له تیندک نه بغېر هېڅ نۀ دے
خامخا یو ځل خو - ده پکار - خطا

ماته دې خزان د زړۀ معلوم نۀ وو
زۀ دې شوم د شونډو په بهار خطا

تۀ اؤ راتلۀ ، ! دلته په رڼا ورځې ؟
ښنګه دې زاهده! کړله لار خطا

۹۵-۷-۳۱ خېل کور غرمه مردان

O

زۀ د ژوند امتحان اخلم - ژوند زما امتحان اخلی
څوک د "چا" امتحان اخلی - څوک د" چا" امتحان اخلی

د رقیب له محفلونو - نن تر کوره زما راغے
زړۀ مې سر شو په توپونو - په درزا - امتحان اخلی

چې رقیب رانه خفګ وکړو - ورو د ځان سره مسکے شوے
ستا نظر امتحان اخلی ؛ ستا خندا - امتحان اخلی

زندګی هم یو سزا ده - د رنګونو سمندر کښې
هر قدم ئې د مرګ زیرے - هره ساه امتحان اخلی

د سقراط پیاله د زهرو لا خالی نۀ ده زاهده!
بیا دی خلق جمع شوی چې د "چا" امتحان اخلی

۵-۷-۹۶ کور غرمه مردان

O

پوئې شو په هر څۀ - په اشاره باندې پوئې نشو
خلق دې په لوظ - په وعده باندې پوئې نشو

څۀ به امتحان د خلقو اخلُو د نيتونو
مونږه خو د ځان په اندازه باندې پوئې نشو

دا منم چې جوړ به وی په نوم د سحرونو
هېڅ د دے وطن په ورځ اؤ شپه باندې پوئې نشو

ګوره دے قسمت ته چې واعظ راسره کېناست
راکړه يو بل جام - په دے کاسه - باندې پوئې نشو

هره ساه چې اخلُو - د مرګ زېرے ورسره وی
مونږ خو هېڅ د ژوند په تماشه باندې پوئې نشو

کله له محفله چې وځې - درسره لاړ شی
هېڅ دې څوک زاهده! په قيصه باندې پوئې نشو

۲۰-۸-۹۶ مردان

زۀ د رڼا مجرم زندان کښې هم خوشاله يمه
ساه مې ډوبيږی شبستان کښې هم خوشاله يمه

کۀ مې د ژوند هره لحظه ده - بې وسی اؤ جبر
ساه اخستې نشم جهان کښې - هم خوشاله يمه

کۀ مې په سر وريږی کاڼی کۀ ګلونه اشنا
چې تۀ ودريږے - د ے باران کښې هم خوشاله يمه

څۀ وائے ؟ چاته وائے ؟ څنګه وائے ؟ والې وائے؟
ستا نه بغېر به په مردان کښې - هم خوشاله يمه؟

زاهده مينه او سکون مې پکښې ونۀ مونده
د رنګ اؤ بوئی په د ے جهان - کښې هم خوشاله يمه

۹۶-۱۱-۹ مابنام کور

O

ستا د چم بادونه چې رااالوزی
سپږی مې زخمونه چې رااالوزی

شته دے لا د ژوند علامت دلته کښې
ستا د مخ رنګونه چې رااالوزی

ساه هم اخستې نشو زړه وره مونږ
تنګ شو ژوند ـ ګردونه چې رالوزی

ستا د زلفو بوئی پکښې پوتې نهٔ وی
وژنی مې بادونه چې رااالوزی

خدائے زړه چې نن څهٔ چل دے ـ؟ د څهٔ شپه ده؟
زهن ته عکسونه چې رااالوزی

څوان به وی حمزهؔ ستا ، د "زاهد غزل "
ستا د مرګ یادونه چې رااالوزی

۱۹-۱۱-۹۶ د شپې ۱:۳۰ بجې کور

O

ښکارېږي چې پرېوتې دي له زوره پښتانه
بې شانه خاموشي - کښې شو - بې شوره پښتانه

بیا هم د چمن خلقو ته ګډا کړي په لستونو
بې نومه پښتانه دي - هم بې کوره پښتانه

کمځي کمځي وجود ئې که بدلېږي په تارونو
بیا هم په خندا سر دي - ورته ګوره پښتانه

قاتل ته ئې قاتل چې مخامخ وُوې ملګرو
نن ویر ته جوړ تیار شُو په سر توره پښتانه

مجرم ئې چې زاهده! پښتو وائې - پښتولیکي
ویشتې شي په کمرو له هر لوره پښتانه

۹۶-۱۱-۲۲ مابنام کور مردان

ستا په کتو کښې بې له مرګه څۀ دی ؟
اشنا بڼو کښې بې له مرګه څۀ دی ؟

څوک چې ځان وژنی - ساقی تاله درشی
په مېخانو کښې - بې له مرګه څۀ دی ؟

یا به تا مړ کړی - یا به ما ووژنی
کلی - کوڅو - کښې بې له مرګه څۀ دی

د انتظار لمحې - د مرګ په زمکه
ښکلے وعدو کښې بې له مرګه څۀ دی

زاهده! هر وخت تذکرې کړې د مرګ
ستا په تسبو کښې بې له مرګه څۀ دی

۱۵-۱-۹۷ مردان مابنام

O

خلق یوبل ته غږ کوی ـ ګله ! کۀ ـ وی ـ نالګی
زما او ستا مئینځ کښې په څۀ شوه ـ دشمنی ـ نالګی

بیا تر قیامته مې یقین نۀ دے چې لار مویو شی
هسې نا ستا اؤ زما مئینځ کښې چرته شی ـ نالګی

تا خو مخ داسې رانه پټ کړو ـ لکه مړ چې شی څوک
داسې خو ژوند دے ـ خامخا پکښې ـ راځی ـ نالګی

یوه لحظ کښې شې خوشحاله ـ په یوه کښې خفه
په هېڅ دې پوئې نۀ شوم چې څۀ دې دۀ ـیاری ـ نالګی

ښکاری زاهد د ښو تکل کښې چرته لرې لاړ شی
بغېر څۀ وجې راسره کړی په ښپړلی ـ نالګی

۹۷ـ۴ـ٦ مابنام په لاره مردان

O

اسره ستا د لاس ليکلی - يو خط اوس هم شته دے
په اُښکو روست - وينو خوړلې - يو خط اوس هم شته دے

زما د "مرګ په پروانه" هسې جشنونه کيږی
ما شی معصوم ثابتولې - يو خط اوس هم شته دے

کرښې راخکل په لوظ - هسې دے عادت د ښکلو
ستا د لوظونو - ما ساتلې - يو خط اوس هم شته دے

رقيب به څۀ رنګه ثابته کړی دعوی د چمن
زمونږ په وينو کښې لړلې - يو خط اوس هم شته دے

اُبۀ به بيلې کړی په ډانګ - کۀ رقيبان ضد وکړی
تا اؤ ما نشی بيلولې - يو خط اوس هم شته دے

زاهده! چپ شه - ملامته - چې ساقی ته نۀ شې
ستا ميخانې ته - راستؤلې - يو خط اوس هم شته دے

۱۵-۴-۹۷ څلور بجی د شپې کور



چرته چې ته ځې درپسې ځی ـ نظر
خنګه به قابو کړی لېونی ـ نظر

هیڅ نهٔ وینم ـ هر څهٔ شو تیارهٔ په ما
وروک مې شو په تا پسې بېخې ـ نظر

ماله لامبو نهٔ راځی چې بچ به شم
ډوب به مې کړی ستا سمندری ـ نظر

ستا مسکی نظر کښې دشمنی کوم ده؟
غواړی رقیبان ازغی ازغی - نظر

دا د زړهٔ دړدونه - د اختر ورځې
اور دے لګېدلې - په سپرلې - نظر

نهٔ اوسی زاهد - مستقل دلته کښې
اچوی په کلی سرسری - نظر

وې کتل زاهدؔ ته ور ئې پورے کړو
" لګی په هر چا د دے سړی نظر "
۲۰-۴-۹۷ د لوئې اختر دریمه ورځ - سحرکور



د عمر وو شلېدلی ګرېوانونه خلقو جوړ کړل
دا کال جوړ بختور شو چې زخمونه خلقو جوړ کړل

بې وجې رقیبان مې پېدا کیږی ستا په وجه
ته څۀ مې خواله راغلې - چې مخونه خلقو جوړ کړل

نۀ ته راځې څۀ وائې - اؤ نۀ مانه درتلۀ وشو
زما او ستا په مېئنځ کښې دېوالونه خلقو جوړ کړل

اشنا ۔ په عمر پس مې انتخاب ته سجدې کېږی
نن ستا ۔ په دېوالونو ، تصویرونه خلقو جوړ کړل

مونږ ډېر یو جوړ تور بخته چې په هېڅ باندې پوئے نشو
د عمر دشمنو کښې هم کورونه خلقو جوړ کړل

زمونږ په کور اؤ کلی محبت څومره بدنام دے
تا یو خبره وکړه ۔ داستانونه خلقو جوړ کړل

مونږ څنګه به سیالی کښې ولاړ پاتې شو زاهده
مونږ وینو تش خوبونه ۔ تعبیرونه خلقو جوړ کړل

۲۷-۴-۹۷د شپې ۱۱ بجې خپل کور مردان

O

نن دې وربل په اوربو خور دے څۀ قیصه خوشته دے
هر سرے ځان سره په شور دے ۔ څۀ قیصه خو شته دے

نور کله هم ۔ستا د مخ رنګ ته مې رنګ نۀ تینګېدۀ
خو ولې رنګ دې نن ۔ نور نور دے څۀ قیصه خو شته دے

د بنار امیر ډېر دلیلونه پېش کوی د امن
ولې په هره لاره اور دے ۔ څۀ قیصه خو شته دے

ستا په لیدو مې اشنا هر ځل درزېدلے دے زړۀ
نن کېفیت مې د زړۀ نور دے ۔ څۀ قیصه خو شته دے

تا سره هم د "چا" دعا ده ۔ د "چا" لاس زاهده!
رنګ د غزل دې کور په کور دے څۀ قیصه خو شته دے

۱۴-۵-۹۷ ماښام په لاره ۸ بجې مردان

O

مونږ ستا د زړۀ او د نظر په مئینځ کښې ګېر خلق یُو
اشنا! د سپوری او د نمر په مئینځ کښې ګېر خلق یو

مسکا په شونډو ـ خو نظر ئې د ے ـ له زهرو نه ډک
څۀ ازلی د خېر اؤ شر په مئینځ کښې ګېرخلق یُو

ستا د نظر د وسعتونو په پائیو پوئې نۀ شو
هر څوکۀ مونږ د سمندر په مئینځ کښې ګېر خلق یُو

نه اورېدې شُو ستا آواز ـ نۀ د خپل زړۀ درزېدل!
داسې د ژوند د شور اؤ شر په مئینځ کښې ګېر خلق یُو

نۀ تۀ خوشاله شوې زاهده! نۀ ساقی رضا شو
مونږ د شراب اؤ د کوثر په مئینځ کښې ګېر خلق یُو

۱۹-۵-۹۷ د شپې ۱۱ بجې خپل کور مردان

O

په مېخانه کښې منم - هر څۀ کیږی
ولې واعظه ! دا بهر څۀ کیږی؟

یوه نوری شوله د ژوند په بیعه
د سر قیمت څۀ شو ؟ په سر څۀ کیږی

مېنه کوئ ملګرو ! ژوند دے پکښې
شرونه مۀ کوئ - په شر څۀ کیږی

چې د ساقی نظر اؤ مینه نۀ وی
شراب څۀ شے دے ! په کوثر څۀ کیږی

دلته انصاف زاهدهٔ ! چانه غواړې
هغه به کیږی چې اکثر څۀ کیږی

۱۵.۷.۹۷ مردان

O

دا څۀ وختونه شو تۀ ګوره - بهر نشی وتې
هیڅ څوک له ویرې له خپل کوره - بهر نشی وتې

یو ځل هم خوند چې چا اغستې - ساقی ستا د کنډول
تول عمر بیا له دغه اوره - بهر نشی وتې

دومره نازکه ده - چې زور د لویتې نۀ زغمی
چې پښتنه ده - نو سرتوره - بهر نشی وتې

زۀ نۀ مړکېږم خو ته خانده - تر قیامته پورې
په ژوند مئین د ژوند له شوره - بهر نشی وتې

هر کۀ پئے مخی ورته ګوری د مطلب په نظر
زاهدؔ کمزورے - ستا له زوره - بهر نشی وتې

۹۷-۸-۱۸ غرمه ۳:۳۰ بجې مردان

دې ذرې د نمر خو ولې نمر ته واپس کېږی نا
ستا له در شړلی اوس ستا در ته واپس کېږی نا

لارې د منګی اؤ د ګودر قیصې کتاب ته شوې
جُونه د بازار شوې - اوس ګودر ته واپس کیږی نا

اوس نې زندکی د زلفو ولیده د مرګ په لار
ګل اوس په قسم هم خپل ډنډر ته واپس کیږی نا

اوس خو دې یادُونو هم د ښار هنګامې خوښې کړې
اوس خو د مئین زړګی کنډر ته واپس کیږی نا

تاسره نې مینه شته - خو خپل عزت هم نۀ بائیلی
نۀ منی ضدی دے - زاهدؔ - چرته واپس کیږی نا

۹۷-۱۰-۱۴ ۰۱ بجې ماسخوتن کور مردان

O

تا چې راته څۀ وې - ما په زړۀ کړل
نور راسره څۀ وُو؟ ما به څۀ کړل؟

تاچې کوم ازغي پېرزو کړُول په مونږ
مونږ ئکه بانه به په لېمۀ کړل

دلته د انصاف قيصه څۀ داسې ده
ورېبل هغوی - چې - چا څۀ نۀ کړل

بې له دے نه ژوند - کومه معنی لری؟
بس خو بد رېبل - اؤ همېش ښۀ کړل

ځکه مې زاهدهٔ! لاس خالي ښکاری
ما د ځوانی دور کښې څۀ نۀ کړل

۲۰-۱۱-۹۷ ماسخوتن په لاره مردان

O

چرته چې مونږ د مینې کر کړی دے
مونږ سره هر چا هلته شر کړې دے

ستا مئین ستا خلاف ـ څۀ چرته اوری ؟
همېشه شر ئې ـ ستا په سر کړې دے

مئین له سېورے نن د زلفو ورکړه
محنت ئې ټوله ورځ په نمر کړې دے

چرته کښې هم په وعده نۀ ئې راغلې
مونږ دې په هر قسم باور کړې دے

د آسمان ستوری به بیا شماری زاهدؔ
لوظ ئې بیا د مازیګر کړې دے

۹۷-۱۲-۵ کچری مردان

O

مونږه کۀ عشق کړې دے هم کۀ دشمنی کړې ده
والله کۀ يو لار کښې مو چرته بې ايمانی کړې ده

يا خو د زړۀ وينې مو ورکړې يا خوارۀ د ژوندون
مونږ په دے طرز د ګلونو ابياری کړې ده

ستا د لاس درد وو ـ يو احساس وو ـ د غربت راسره
کۀ مې روزګار کړې دے هم ، کۀ شاعری کړې ده

نۀ ستا لمنه په لاس راغله نۀ د خپلو مينه
د ژوند په لارو مې ټول عمر جواری کړې ده

منم چې ډېر دردونه راکړل ـ وخت د ژوند په لارو
نه مې سر ښکته شو اشنا ـ نۀ مې زاری کړې ده

د مرګ په وخت ئې ګوته ونيوه زاهد ته پرون !
ماسره مينه ـ وئې بس دغه يو سړی کړې ده

۲۶-۱۲-۹۷ د موټروې په لار لاهور سحر

O

څوک چې زما ساه وه ـ هغهٔ مړ کړمه
مرګ چې مې سزا وه ـ هغهٔ مړ کړمه

چرته کړی ګُذار رقيب د مخې نه !!
بس خو چې مې شا وه ـ هغهٔ مړ کړمه

هر څوک ئې منين وو ـ ګواهی نهٔ وه
شپه نهٔ وه ـ رڼا وه ـ هغهٔ مړ کړمه

ټول عمر ئې برند هم چاته نه کتل
کوره چې قضا وه - هغهٔ سر درمه

ما پرې د ژوند ټول خوارۀ نوستلی دي
دغه مې خطا وه - هغهٔ مر کړمه

څۀ به جنازه وی ؟ څۀ به خلق وی ؟
څوک چې مې دعا وه - هغهٔ مر کړمه

څۀ به اوس زاهده! څوک اعتبار کوی
څوک چې مې تکیا وه هغهٔ مر کړمه

۹۷-۱۲-۲٦ د موټروې په لار سحر لاهور نه واپس

O

زړۀ رانه پاتې شو بې ځايه - لار کښې
اوس به څۀ کيږي لويه خدايه - لار کښې

زما د زړۀ لار به اخر بنده شي
تۀ رقيبان دغه شان بيايه - لار کښې

په زړۀ دې بل څۀ - په خلۀ وائې راځم
ازغی کره - ګلونه - ستايه - لار کښې

قاتل مې بيا د مرګ بينا - جوړ ترې
راته خنديږې چې له ورايه - لار کښې

په دے موسم کښې - دا خندا - زاهده!
څوک دې لېدلی دی بيا - وايه - لار کښې

۹۸-۳-۸ مابنام په لاره مردان

O

دا غریبی - شراب - شراب - ځوانی
ازغی ازغی ماحول - ګلاب - ځوانی

د حسن قدر دلته وُرېږي نظر !
کله نا کله شی - عذاب - ځوانی

وریځ د نمر پلوشې نۀ شی زغمې
چرته پټیږی په حجاب - ځوانی

ډېر څۀ کۀ غوارم - څۀ کؤولې نۀ شم
زما زړګے - خانه خراب - ځوانی

یو خواته ستا فتوه - زاهدهٓ بل خوا
وریځ - سپرلے - مستی - شراب- ځوانی

۹۸-۳-۱۹ مابنام په لاره

# پښېماني

تاته به یاد وی چې یو ځل مې اشنا!
له خدائے نه ستا د عمر سوال کړې وو

چې زندګی دې زما تاله درکړی
خو دا غلطی وه زما ـ هغه وخت نۀ پوهېدم

اوس چې زۀ فکر کؤوم ـ د ژوند لمحوته کورم
زما په ژوند کښې څۀ دی ؟

بس له سلګو نه ډک دے
ټول د ازغو نه ډک دے

اوس وایم ـ سوال مې خدائے قبول نه کړی
ستا زندګی چرته ـ په نُول نۀ کړی

۹۸-۴-۱ سحر مردان کچړئ



Scanned with CamScanner

هر وخت چې په جنګ یم ستا نظر سره
مهٔ راګوره - نهٔ مې لګی - شر سره

داسې شوم راستون چې - دروایس نشوم
ما یو بل فقیر ولید - ستا در سره

ډېر کهٔ تهمتونه په ما پورې دی
خومره ذرې انښتې وی د نمر سره

ماته خو قابل د عشق ښکاره نشو
څهٔ کهٔ فرهاد سرمات کړو د غر سره

هر څوک مرور - چې سجده نهٔ راځی
څهٔ وکړم زاهده دے خپل سر - سره

۷-۴-۹۸ یوم عارفه ۱۲:۳۰ مردان

مونږ د جانان د زلفو سپوری ته دمه ونکړه
مونږه یو بل ته د ځوانی د دړد قیصه ونکړه

بلا خدایان دی د یو خدائے په زمکه دلته اشنا
شکر دے یو ته مو په هیڅ شکل سجده ونکړه

د ښار امیر پرې شو خفه ، کۀ خلقو زړونه بائیلۀ
د زړۀ له زوره بیا هیڅا دلته تپه ونکړه

کوم انقلاب ئې په طبعیت کښې شو پیدا ۔ حیران یم
عمر شو تیر - ولې جانان نوې وعده ونکړه

دومره مئین دې ووم په جام چې زاهدانو سره
پند د توبو مې کړو په سر خو ما توبه ونکړه

۱۵-۴-۹۸ مازیګر مردان

زما د ژوند کۀ آئینې - آئینې پاتې نۀ شوې
ستا د ځوانۍ هم تماشې - تماشې پاتې نۀ شوې

هغه وخت لاړو اوس - ساقي چې به په لپو وېشل
ګوټ پکښې نۀ وی - مېخانې - مېخانې پاتې نۀ شوې

اوس خو مې هره ساه د بیاج شوه د پردونو په تار
اوس مې د ژوند هغه لمحې هم لمحې پاتې نۀ شوې

خلقې شوې وروکې - پګړې وروکې - شو قدونه واړۀ
زړونه شو تنګ - لوئې حجرې هم حجرې پاتې نۀ شوې

اوس هم ځان وژنې په پښتو اؤ په غېرت زاهدهٔ
چا وې چې دلته پښتې - پښتې پاتې نۀ شوې

۹۸-۵-۱۰ سحر ۸ بجې کور مردان

ما ستا د نامې ګل په کتابونو کښې محفوظ کړو
ما ژوند خپل - د زړۀ سره ! په دردونو کښې محفوظ کړو

پېرزو مې په چا نشی - په دے حقله لږ ظالم یم
ستا یاد مې د زړګی په دېوالونو کښې محفوظ کړو

ملګرو دا تیارې به د ژوند څۀ رنګه رڼا شی
شعور دلته کښې خلقو تعویزونو کښې محفوظ کړو

اوس ټوله زندګی مې عبادت شوه له دردونو
ستا غم مې لکه درد په پرهرونو کښې محفوظ کړو

هیڅ څوک هم د بازار په لوری نۀ ورځی زاهده
هر چا دلته کښې ژوند خپلو کورونو کښې محفوظ کړو

۱۲-۵-۹۷ سحر ۱۰ بجی کچړی مردان

O

خاورې زمونږ به کلے کور جوړ شی
شو چې نزدے نو څۀ پېغور جوړ شی

ستا به څۀ کم شی ساقی ! واړوه پرې
سوې د اور کۀ په دے اور جوړ شی

بس خو یو کور د زړۀ بیا نۀ جوړیږی
نور کۀ هر څۀ وران شی خو نور جوړ شی

د "کالا باغ مئین "په دے نۀ رسی
هغه شے وران شی چې په زور جوړ شی

څوک کار د عقل نه زاهدۀ اخلی
دلته کښې هر څۀ بلندې شور جوړ شی

۲۰-۶-۹۸ سنام په لاره مردان

O

پرېوت اشنا ! هغه دې نمر - مازيګر راونۀ وتې
بې له تا تېر شو - مازيګر - مازيګر راونۀ وتې

جونه بلا وې - دا منم - خو ما پرې اور لګوو
هېڅ رونق نۀ وو په ګودر - مازيګر - راونۀ وتې

هره وعده - په انتظار - دې زما زړۀ شفق کړی
وعده کوې - ولې - اکثر - مازيګر راونۀ وتې

دا ښنکه زُول شو - چرته شور د مرغو پاتې نشو
ټولې مرغۍ شوې در په در - مازيګر راونۀ وتې

په مازيګر مئېن زاهدّ په مازيګر شولو مړ
اشنا ! له قصده - وې خبر - مازيګر راونۀ وتې

۱۷-۷-۹۸ سحر مردان

ص ۱۸۹

اُبنکو ړندې کړې ـ د نظر آئینې پاتې نهٔ شوې
اوس مې د درد ـ د سمندر ـ آئینې پاتې نهٔ شوې

نهٔ ستا د سترګو څلا شته ـ نهٔ مې د زړهٔ درزېدهٔ
دواړه شو ګوره ! سر په سر ـ آئینې پاتې نهٔ شوې

شړنګ د بنګړو د جونو وروک شو ـ منګی شار پراتهٔ دی
مېلې اوس نشته په ګودر ـ آئینې پاتې نهٔ شوې

مانه خو شکل والله هېر کړو د وختونو جبر
زرې ـ زرې ـ شولې ـ اکثر ـ آئینې پاتې نهٔ شوې

څهٔ تن اسانې شو ـ فنکار ـ څهٔ ځان اسانې قاری
زاهدهٔ اوس خو د هنر ـ آئینې پاتې نهٔ شوې

۹۸-۷-۲۴ غرمه ۱۱:۳۰ کچړی مردان

ستا د بنګړو هغه شور چرته ورک شو
زما د زړهٔ هغه زور چرته ورک شو

هغه یو ښکلے - د انګور زېله ؤو
چې خورېده کور - په کور - چرته ورک شو

ماسره ویره شوه - چې ورک نهٔ شو اوس
د پښتونخوا نه پېغور - چرته ورک شو

زمونږ د وخت فرهاد تېشه ماته کړه
خدایه! د مینې نه اور چرته ورک شو

چې صرف تهٔ وې پکښې - بل څوک نهٔ وو
زما د زړهٔ هغه کور چرته ورک شو

د جنت لار د ورکېدو خو نهٔ وه
هغه زاهدٓ په دے لور چرته ورک شو

۲۶-۸-۹۸ د اسلام آباد په لار مازیګر

تبسم له شوره - هر ځائے شور شور دے
بغیر له ګوره - هر ځائے شور شور دے

منم چې شور دے د ژوندون علامت
مرو ئې له زوره - هر ځائے شور شور دے

ستا په خاموش نظر کښې ژوند دے زما
تل راته ګوره - هر ځائے شور شور دے

ماته آواز دې - رقیب واو نهٔ ریدو!
لږ شان په زوره - هر ځائے شور شور دے

د زړونو شور به خلق څنګه واوری؟
ښار نه تر کوره - هر ځائے شور شور دے

"پښتونخوا غواړو" - "کالا باغ نه منو"
زاهدا! روره - هر ځائے شور شور دے

۳-۹-۹۸ سحر په لاره لاره مردان

ړندې شولې ملګرو آئینې د نظرونو
بې وخته رانه پاتې شوې رشتې د نظرونو

هر څومره که پاخه پاخه کاته کوی ګل مخی!
یارانو ! خو کچه ئې وی - وعدې د نظرونو

توبه ! هغه درزا د زړهٔ - ساده ماته - اؤ خولې
دی اوس هم راته یادې زړانې د نظرونو

ستا سترګو ته چې ګورمه - بل سوال نهٔ شم کؤلې
دائمې دې وسېږی سلسلې د نظرونو

والله که په یو تکی ئې پوئې شوې یم تراوسه
ما ولوستې ټول عمر صحیفې د نظرونو

یوځل ورته زاهده! چرته وګوره په غور
قائل به دې کړی خپله معجزې د نظرونو

۲۷-۹-۹۸ سحر کچړی مردان

تا خبره سپینه وکړه ، پوئې شومه
تا سره مې مینه وکړه ، پوئې شومه

لمس ستا د شونډو ! اؤ قیمت ـ توبه!
مینه مې په وینه وکړه پوئې شومه

ستا ذکر پکښې وو ـ کۀ مدهوشه ووم
چا قیصه حسینه وکړه پوئې شومه

خدائیګو کۀ په څۀ باندې پوئېدمه زۀ
تا وعده رنګینه وکړه پوئې شومه

وکړه په خندا زاهد قیصه د ژوند
دېره ئې سنګینه وکړه پوئې شومه
۹۸-۱۰-۱۰ مازیګر کور مردان

# د لور قاتل

پیغلې مرحومې لور ثمینه زاهدؔ په نوم چې اسپتال کښې ناڅاپه وفات شو

زۀ اوس هم کله کله ـ ستا قاتل لار کښې وینم
خو لار بدله کړمه ـ هیڅ ورته ونۀ وایم
دا نا چې ما کښې ګنی ـ لاړه پښتو ختمه شوه
غېرت مې پاتې نشو ـ ستا بدل پور شو په ما
دلته سړے مجبور شی ـ د جبر زور لا شته دے
دلته بېلا قدرونه د سړی لاس ونیسی
ډېر څۀ کۀ وغواړی هم ـ خو څۀ کؤلې نۀ شی
دلته قاتل ته خلق هیڅ هم وئېلې نۀ شی
هېڅوک ئې دلته لُورې ـ لاس رانیولې نشی

o

څکه چې دلته ورته مونږ مسیحا وایو
د بیمار قتل ته هم د خدائے رضا وایو
زۀ اوس هم کله کله ستا قاتل لار کښې وینم
خو لار بدله کړمه ـ هیڅ ورته ونۀ وایم
څکه چې دلته ورته مونږ میسحا وایو
د بیمار قتل ته هم د خدائے رضا وایو

۱۳-۱۰-۹۸

[illegible] کجرئ مردان

O

زما د زړۀ د کور رڼا ختمه شوه
ستا په واتۀ - د کور رڼا ختمه شوه

اوس خو سپين پړق وو - هر يو شے پرقېدۀ
څنګه ؟ په څه؟ د کور رڼا ختمه شوه

تلۀ دې اشنا څۀ وو - هر څۀ مې لاړل
خلقو کاتۀ ! د کور رڼا ختمه شوه

تۀ ترې څۀ لاړې چې کنډر مې شو زړۀ
لاړۀ ليمۀ - د کور رڼا ختمه شوه

زاهدهٔ! څۀ کوې اوس سوال د ژوندون
لاړل - هر څۀ - د کور رڼا ختمه شوه

۹۸-۱۰-۲۲ مابنام په لاره مردان

O

اوس مې هم په سترګو کښې ستا رنګ وسی
ښکلی چې د وخت رانه په څنګ وسی

کُوزې دې پکړی د رقیبانو وی
غرونه دې تل ستا وطنه ! دنګ وسی

ستا د کوڅې خاورې بادوی په ځان
پېژنې ؟ ستا خوا کښې ـ یو ملنګ وسی

هسې نا پیکه دې کړی د حُسن راج
ستا خوا کښې دې هر سړے بدرنګ وسی

ماته د ژوند دغه علامت ښکاری
ستا پېنزېب دې تول عمر په شرنګ وسی

تا زاهدؔ ته څۀ خبره کړې ده
عمر وشو خان سره په جنګ وسی

۲۵-۱۲-۹۱ ۱۱ بجې د شپې کور

O

ستا په ځائے ګلاب خوښ کړو دا نۀ کيږی
ځان له دې عذاب خوښ کړو دا نۀ کيږی

اوس ده "پښتونخوا" د مرګ اؤ ژوند قيصه
بل نوم دې جناب - خوښ کړو دا نۀ کيږی

ستا د سترګو رنګ - چې پکښې نۀ ښکاری
څنګه به شراب - خوښ کړو دا نۀ کيږی

تاسره رقيبه! دوستی ؟ څۀ معنی
کور دې په حُباب - خوښ کړو دا نۀ کيږی

وينې مونږه ورکړې د سپرلی په نوم
ګل دې د کتاب - خوښ کړو دا نۀ کيږی

خلق دې زاهده! مری له تندې نۀ
ځان له دې درياب خوښ کړو دا نۀ کيږی

۲۲-۲-۹۹ ماسخوتن کور ۱:۳۰



اوس خو په څهٔ کار هم ماله نهٔ راځی
هسې په دے لار هم ماله نهٔ راځی

څله غورزوؤم - ازغی د لاسو نه؟
ګل خو د بهار هم ماله نهٔ راځی

څهٔ به کوؤم زهٔ - کهٔ مینه ختمه شی
"خدایه ! بل څهٔ کار هم ماله نه راځی"

بس خو تر سحره په یو نیب ولاړ
چل د انتظار هم ماله نه راځی

خنکه به له داغه لمن وساتم
ستا په شان انکار هم ما له نۀ راځی

تاته مینتونه راته ښکاری مرګ
بے له تا قرار هم ما له نۀ راځی

چاته به زاهدهٔ! حال د زړهٔ وائم
ژبه د دے ښار هم ماله نۀ راځی

۱۹-۳-۹۹

سحر کچړی مردان (مصرعه غلام محمد قاصرؔ مرحوم)

O

ستا د بنګړو شرنګ راباندې ښۀ لګی
دغه یو اهنګ - راباندې ښۀ لګی

دا چنار دې ماته یادوی قامت
خومره چې شی دنګ - راباندې ښۀ لګی

دے خو مې تائید د انتخاب کوی
دا رقیب بدرنګ - راباندې ښۀ لګی

ځکه مې ځوانی مئیو کښې ډوبه کړه
ستا د سترګو رنګ راباندې ښۀ لګی

ستا قیصې زاهده! له ثواب ډکښې
بس خو د جام کړنګ راباندې ښۀ لګی

۹۹-۵-۲۵ ماہنام بازار مردان

O

هر چاته کۀ ما وکړه د زړۀ قیصه
وایه ماته چا وکړه د زړۀ قیصه

غنې مې په زړۀ راخکې - څوک پوئې نۀ شو
نن مې په خندا وکړه د زړۀ قیصه

وې وئېل خندا کښې - هېڅ هم پوئې نۀ شوم
ما که په ساه ساه وکړه د زړۀ قیصه

بس د یو منصور قیصه ریښتینې وه
داسې خو دنیا وکړه د زړۀ قیصه

څه کنه زاهده! څۀ دې وواته
نن دې په ریښتیا وکړه د زړۀ قیصه

۹۹-۶-۸ مابنام بازار مردان

بې له شرابو نه اوده اوده شوې
زاهدهٔ خنکه ؟ دا په څه اوده شوې؟

.

زړګیه ! ځیرې کړې ازغې د وعدې
لکه د اُښکې په بانهٔ اوده شوې

.

بیل شو په خوبنه ـ خو بیا هم تولہ شپه
نهٔ زهٔ اوده شومه ـ نهٔ تهٔ اوده شوې

.

د ارمانونو شور دې چرته ورک شو؟
جانان خو راغے ـ ولې زړهٔ ـ اوده شوې

یار دې تپوس وکړو ـ د حال زاهدهٔ
بې خانه پربوتې ـ بې زړهٔ اوده شوې

۲۷-۸-۹۹ مازیګر بازار مردان

O

دا په خوب ورغلی - خلق نۀ پاڅی
خلق ئې کۀ ولی ، خلق نۀ پاڅی

خور دې کړو محفل - خو چې تا څۀ ووې
ډېر شو ساه نېولی - خلق - نۀ پاڅی

لا خو ساقی غږ د څښلو نۀ وو کړے
داسې خو سپېځلی خلق - نۀ پاڅی

ډېره کۀ شپېلی ورته خوږه کړی څوک
دا د ژوند وژلی خلق - نۀ پاڅی

ووایه زاهده ! غزل شپه شوله
هسې ستا د کلی خلق نۀ پاڅی

۲۴-۹-۹۹ ماښام په لاره مردان

وائی واعظ چې مې بې ځایه بس ستی کړه ځوانی
دے څهٔ خبر دے چې په مئېو مې ځوانی کړه ځوانی

دلته غربت کښې به څوک څهٔ اتبار کوی په ځوانی
څنګه بې وخته پېغلو ختمه په منګی کړه ځوانی

خلق پیری هم د تعویز هسې په غاړه ساتی
مونږه پیرزو په یو "غریب غوندې سړی" کړه ځوانی

ستا د بنو د دې کششه به څوک چرته بچ شی
ستا د بنو سره یاری راله ازغی کړه ځوانی

چې په لاسونو کښې د پېغلو ترقیامته برېښې
زاهده ! تهٔ لکه نکریزې دائمی کړه ځوانی

۱۵-۱۱-۹۹ سحر کچری مردان

د اعتبار نه پس د عبدالروف
زاهد صیب اخری کتاب
(زیرے) چې د هغوی د مرګه
پس چاپ شوې دې . د کتابت
او پروف بې حده ستونزې
لرې . نو پکار دی چې د
دوباره کتابت نه پس ئې
ملګرو سره شریک کړو .
امتیاز عابد
ایډوکیټ
مردان

د کتاب نوم ____________ زېرے
مصنف ____________ عبدالروف زاهد
د چاپ کال ____________ ۲۰۱۵
تعداد ____________ ۵۰۰
بیعه ____________ ۲۵۰
رابطه ________ اعجاز زاهد ( اېډوکېټ )
03025712300
امجد زاهد 03018303515

دوباره نوې املا ، کپوزنګ او
پی ډی ایف ته سمون
امتیاز عابد (اېډوکېټ)
۲۰۲۲ء

# ټرون

د عبدالروف زاهد ( مرحوم )
نمسو عانیه زاهد ، منسا زاهد ،
ثمینه زاهد او  احمد زاهد په
نوم چې د نیکهٔ مینه ئې نصیب
کښې نهٔ وه

کران او محترم اروابناد عبدالرؤف زاهد صیب چې په رشته کښې زما سکه ترهٔ ( کاکاجی) دے .او هم په دغه وجه د هغوی د فن متعلق د څهٔ لیکلو او یا د صفت کولو نه ځان قصدن ژغورم . چې په هغې کښې به زهٔ  انصاف او نهٔ کړې شم . خو د هغوی لنده پېژندګلو او خصوصاً د دې کتاب د پی ډی ایف ته د اړولو څو خبرو اشد ضرورت محسوسوم.
زاهد چاچا  د زوړ هوتي په  نورمن خېلو کښې د اروابناد عبدالحکیم کره په ۱۹۴۰ کښې سترګې پرانستې . خو په سرکاري کاغذونو کښې ئې پېدائش ۱۹۴۴ درج دے . چاچا ابتدائی  تعلیم ،  نه تر لسم جماعته پورې د مردان په علاقائي سکولونو کښې حاصل کړو . او بیا تر پښتو ایم اے پورې سبق ئې د پېښور یونیورسټۍ نه په پرائیوېټ توګه پاس کړې دے . د  تعلیم په  دوران کښې د لسم نه پس په ۱۹۶۱ کښې په واپډا کښې نوکر شو ، او تر ۱۹۸۳ پورې هم د دغه محکمې سره منسلک پاتې شو . خو چې کله ئې په ۱۹۸۳ کښې د ایل ایل بي امتحان د کراچۍ نه پاس کړو ، نو د واپډا نوکرۍ نه مستعفي شو او په مردان کښې ئې  باقائده وکالت شورو کړو . چې ورستو تر مرګه هم د دغه پېشې سره تړلې پاتې شو . دې نه علاوه زاهد چاچا د ۱۹۷۱ نه تر ۱۹۸۵ پورې د PWD عوامی  مزدور فېډرېشن د تولې صوبې ستر سکتر هم پاتې شوې دے . د زاهد چاچا په چاپ کتابونو کښې ، پرخه ، قیامتونه دی لمحې ، حادثې ، اعتبار او دا زېرے شامل دی . چاچا د شاعرۍ ابتدا تقریباً د ۱۹۵۵ نه کړې ده ، او د ۱۹۵۶ چاپ مواد ئې په بانګ حرم او شهباز کښې محفوظ دی . په ۱۹۶۰ کښې ورته د غزل بابا امیر حمزه خان شینواری صیب د پښتو غزل د ( جګر مراد آبادی) لقب

ورکړو . او هم دغه وجه وه چې هغوی بیا توله توجه تر مرګه
غزل له ورکړه . او دا خبره ئې هم ثابته کړه چې . ۶
زاهد چې څو پورې ژوندے وی نو غزل به لیکی .
او کهٔ مونږ د دې کتاب د شعرونو تاریخونه ګورو نو د مرګ په
شپه ئې هم لیکل کړی دی .
دا لوړ او استاد شاعر زاهد چاچا په ۱۸ جولایي ۲۰۱۲ باندې
وفات شو او هم په دغه ورځ غرمه ۲ بجې د پورې هوتي د
شاه ډنډ بابا په مقبره کښې د خپلې مور او لور سره خوا
کښې خاورو ته اوسپارلے شو . ( په ګور ئې نور شه )
او تر څو چې د دې کتاب خبره ده نو زاهد چاچا لا ژوندے
وهٔ ، ماته ئې یوه ورځ وئېل ، چې چرته راشه ، دا نوې
شاعرۍ او ورسره توله زړه درته حواله کوم . چې یو غټ
کتاب ترې چاپ کړو . خو د دې خبرې نه پس هاغه داسې
ناځاپي وفات شو چې مونږ هډو څهٔ ته جوړ نهٔ شو . بیا نهٔ
خو ماسره د هغوی قلمی نسخه محفوظه وه او نهٔ څهٔ نور
څهٔ مواد . نو بس خبره داسې پاتې شوه . بیا د هغوی د مرګه
درې کاله پس د هغوی ځامنو دغه کتاب (زېرے) راله چاپ
شوی حالت کښې راوړو . نو هر څو کهٔ په دې نوم د
محترمې ...س ب ب... کتاب شته ، خو بیا ورکښې ما څهٔ
کولې شو . بحر حال کتاب چاپ شو . او چې چا به کتاب
اخستو نو واپس به ئې ماته د ګیلو او مانو ډکښې ډکښې
رابطې کولې . چې دا کتاب خو د غلطو نه ډک دے . او په دې
خو د زاهد چاچا هغه شتهٔ شخصیت په اوبو لاهو شو . خو
ما څهٔ کړې وې ، نهٔ ئې د چاپ نه خبر ووم ، نهٔ مې پکښې څهٔ
اختیار وهٔ. خو بیا هم د زاهد چاچا د هر لوستونکی دا مطالبه
وه چې کتاب دې په هر صورت ټیک کړې شی . او هم د دغې
په تناظر کښې ما دا تول کتاب د موبائېل په سکرین تائېپنګ
کښې په مزه مزه دوباره تول کمپوز کړو ، چې پکښې راسره

ګران کشر عطاء الرحمان باور هم ډېر کار وکړو .

د کتاب صحت داسې وو چې د املا د غلطو سره سره پکښې نور هم ډېر کمې پاتې وۀ. خو چې کوم کمې ما پوره کولې شو ، نو هغه مې پوره کړو .د غزلو بعضې مصرعې ډېرې غلطې ټائپ شوې او چاپ شوې وې . نو یاخو مې هغه نیمګړې پرېښودې او یا مې ترې حذف کړې . په دې غرض چې کتاب په صحیح صحت کښې لوستونکو ته وړاندې شی . دغه اصلاح هله کېدې شوه چې د زاهد چاچا قلمی نسخه مونږ سره وې .

بل ما چې د دې کتاب سر مخ ټائټل له د زاهد چاچا کوم تصویر خوښ کړے او لګولې دې نو دغه تصویر هم د هغوی له مرګه ورخ دوه مخکښې ایستلې شوې دے.

بحر حال کۀ بیا هم په دې کتاب کښې څۀ غلطۍ راغلی وی نو بخښنه غواړم ، او کۀ ډېره سنګینه غلطی پکښې چاته په نظر راځی ، نو د کتاب په سر کښې د هغوی د ځامنو نمبرې درج دی ، د هغوی نه پاتې غلطۍ معلوملولې شی .

د دې کتاب پی دی ایف ته اړول صرف او صرف د هغوی د کتاب د صحت سمون او د طالبعلمانو او لوستونکو په بار بار غوښتنو اصل مقصد لری .

ستاسو هر قسمه تنقیدي رائې به زما له پاره ډېره د ویاړ خبره وی .

ستا سو

امتیاز عابد

(اېډوکېټ)

۲۲_دسمبر ۲۰۲۲ ء مردان

ستا د نظر خبرې_____ پرېږدمه زۀ
څنګه د نمر_____ خبرې پرېږدمه زۀ

دلته ځوانی زما_____ تیارو وخوړه
څنګ د سحر_____ خبرې پرېږدمه زۀ

ستا د خندا نسبت به څۀ سره شی ؟
کۀ د محشر_____ خبرې پرېږدمه زۀ

ویرېږم_____ تا ته ګوته پورته نۀ شی
دا چې اکثر_____خبرې پرېږدمه زۀ

زاهد چې ذکر کوی_____ ستا د سترګو
د سمندر خبرې_____ پرېږدمه زۀ

۱۹۹۹-۱۱-۳۰ سحر کچهرۍ مردان

رحمة اللعالمین

هغه چې ترینه نمر ______د راختو کوی پوښتنه
هغه چې ترې وریځ______ د وریدو کوی پوښتنه

هغه چې کائینات ئې دی _____له مخه پیدا شوی
هغه چې ترینه زرهٔ _____ د درزیدو کوی پوښتنه

هغه چې کهکشان ئې د پښو گرد دے ____آشنایانو
هغه چې ترینه اور _____ د سوزیدو کوی پوښتنه

هغه چې خداے ئې هم ___ په صفتونو نهٔ مړیږی
هغه چې ترینه مرگ هم _____د راتلو کوی پوښتنه

هغه چې د رنگونو ______ د نسلونو نه خلاف دے
هغه چې زندگی کښې___ د ظلمونو نه خلاف دے

هغه چې مساوات ئې لوئې مقصد ___ د زندگی وهٔ
هغه چې د رسمونو ______ رواجونو نه خلاف دے

هغه چې ورورولي ____ امن او مینه ئې مسلک وهٔ
هغه چې بې مقصده_____ د جنگونو نه خلاف دے

هاغه محمد ________ چې په امین باندې یادیږی
قران کښې په طاحه __ او په یاسین باندې یادیږی

۲۱_۱۲_۱۹۹۹ مردان



چا کړې په سترګو کښې رانجهٔ او چا په سر اونوستې
ستا د کوڅې خاورې وې ___ خلقو په نظر اونوستې

څهٔ ظلم اوشو_____ چې د ښکلو نه خندا هېره شوه
خدايه ! چې بيا وينې چا نن د لار په سر _ اونوستې

ماته ____ قسم دے پلوشې ستا د نظر ____ښکارېدې
خلقو کهٔ ډېر وئېل _ اوبهٔ وې _ چا په نمر اونوستې

څنګه به ستا د مخ مئين په يو ځائې مومی__ قرار
چې دې لمحې _ د ديدنونو در__ په در _ اونوستې

د کانو ښار کښې به زاهده_ څوک پرې څهٔ پوهه شی
ګنی ___ ملګرو ___ ملغلرې ______ د هنر اونوستې

---



مونږ فقیران د ژوند په لار _____ د نظر خبر غواړو
وی کهٔ کوڅه او کهٔ بازار _____ د نظر خبر غواړو

اوس رقیبان ئې هم شو پوهه ___ په انداز او رموز
ځکه په هره ساه __ د یار _____ د نظر خبر غواړو

مینه ده څومره زوروره ____ مونږ مجبور څومره یو
یو د هر چا د سترګو خار ______ د نظر خبر غواړو

زمونږ غوښتنې څهٔ دی ____ بس خو یو د مینې نظر
یو مسافر د هر یو ښار ________ د نظر خبر غواړو

زاهده داسې به رسوا شو _________ ما منله چرته
ځائې په ځائې ګرځو ___ د سرکار د نظر خبر غواړو

۲۸ فروري ۲۰۰۰

---

څۀ نشه _ مستی ___ ستا په نظر کښې ده
مینه او ځواني _____ ستا په نظر کښې ده

مړ دې کړمه ___ ساه دې ____ رانه وخکله
ما وې _ زندګی ____ ستا په نظر کښې ده

څومره لېونتوب دے _ ستا په سترګو کښې
څومره هوښیاري ___ ستا په نظر کښې ده

هر نظر ستا مخکښې ___ اشنا خاورې شی
دا څنګه خدائي ___ ستا په نظر کښې ده ؟

عمر غواړی ________ ستا د یو نظر معنا
څومره ګهرائي ____ ستا په نظر کښې ده

رابه شی سپرلی زاهده _______ دلته کښې
څۀ بې یقینی ______ ستا په نظر کښې ده

۱۳_۳_۲۰۰۰ ماښام په لاره



وائی چې مې نۀ راځی ___ په خلۀ دروغ
وائی مخامخ راته ________ دا څۀ دروغ

شک د محبت نه _______ بهر څرته وی ؟
یا خو زۀ دروغ وایم _______ یا تۀ دروغ

هر څۀ چې تۀ وائې _______ راته اووایه
نۀ وائی د زړۀ سره ________ لیمۀ دروغ

دا زمونږ د دور _________ المیه ښکاری
څومره ریښتیا سپک _ څومره درانۀ دروغ

وې وئېل ___ اشنا مې دے _ بس یو زاهد
دا دی د کچه عمر _________ پاښۀ دروغ

۲۱_۳_۲۰۰۰ مردان



ماله لږه لار راکړئ ______ چې لاړ شمه
پته مې د يار راکړئ ______چې لاړ شمه

ماته د جنت په طمع ____ کران دے مرګ
څۀ نه څۀ اتبار راکړئ ____ چې لاړ شمه

وی دے د ژوندون ____ یا ستا د زلفو ول
ماله خو څۀ کار راکړئ ______چې لاړ شمه

څۀ دی په چمن کښې _ بې له درده اوس
زیړے د بهار راکړئ ______ چې لاړ شمه

بې مینې حرم کښې_____ زاهد څۀ کوی
مینه د دلدار راکړئ ______ چې لاړ شمه

۲۰_۵_۲۰۰۰ ماښام مردان



زړهٔ مې تا اوس هم غواړي _ سترګې مې تا اوس هم غواړي
چرته صبرېږي ستا له مينې _______ سزا اوس هم غواړي

د زړهٔ به څهٔ وايم _________ د مينې اصول څهٔ دي اشنا
دې ستا د شونډو هېره شوې خندا _____ اوس هم غواړي

لمن د عقل چرته نيسي _______________ د دې دور خلق
هاغه د کانو زمانې ____________ په دعا اوس هم غواړي

نهٔ مې په لاسو کښې ساه شته _ نهٔ مې په سترګو کښې دم
څهٔ بلا نوشه دے واعظ ګوره ________ لا اوس هم غواړي

ملګرې لاړل _______________ د تيارو په سمندر لاهو شو
زاهد يوازې شو _____ خو ژوند له رنا ___ اوس هم غواړي

۱۴_۷_۲۰۰۰ مابښام مردان



ما تورو تیارو کښې ____ستا د سترګو رڼا مونده ده
ځکه مې اشنا ______ د ژوند په لارو سزا مونده ده

چا وې چې څۀ وکړی _____ هم هاغه به رېبی سرے
ټول عمر بدل کښې ______ د وفا مې جفا مونده ده

تا ته هر نظر کښې______ محبت او مینه رقص کوی
خداے زده د زړۀ سره __ چې دې کومه دعا مونده ده

اوس خو آئینې هم دروغژنې شوې____ دوه ژبې دی
کومه څهره دلته چا ___بې رویه_____ ریا مونده ده

دا خو بس زاهده __________ د نظر نظر خبره ده
ما خو د صحرا په هر یو کانی کښې __ ساه مونده ده

۲۳_۸_۲۰۰۰ سحر کچهرۍ کښې



زما او د جانان مئینځ کښې___ ښکاره خبره وشوه
له کومې چې مې مرګ وهٔ ___هم هغه خبره وشوه

واعظ اووئېل وخښئ _ چې څوانئ مو ابدی شی
بېګاه په مېخانه کښې ______عجیبه خبره وشوه

زړګیه نور ژوندون دې _____په سلګو رامعلومېږی
د یار او رقیب خپلو کښې___ ,,ښکاره،، خبره وشوه

رېباره قیصې مهٔ کړه___ نور مې زور د زړګی نشته
ستا سترګو ته چې ګورمه __ پرېږده _ خبره وشوه

زاهده هر څوک پوئې شو _____ کهٔ تا دېره پټوله
د لاسو چې دې پرېوته _____ کاسه _ خبره وشوه

۲۶_۱۰_۲۰۰۰ درې نیمې بجې مردان



هر وخت رانه مخ اړوې ـــــ ګران درته ښکارېږم
سوچ راباندې وکړهـــــ چې اسان درته ښکارېږم

نن چې راته داسې په یو نېب ګورې ـــــــ رقیبه
داسې راته ښکارې ـچې جوړ ځان درته ښکارېږم

زۀ خو ستا په شانېـــــ یو بنده یم د دې زمکې
نۀ رانزدې کېږې ـــــ پاس آسمان درته ښکارېږم

وخته دا څۀ لوبې دی راخستې دی ـــ بې وخته
زۀ خو دې تار تار کړمه ـــ ګرېوان درته ښکارېږم

ماته چې زاهده ـــــــد څښکو ست کوې په پټه
ښکارې چې زۀ هم د ځان په شان درته ښکارېږم

۳۱_۱۰_۲۰۰۰ شېخ ملتون تاون مردان



نهٔ مې اول د زړهٔ نه اوتې وې ___ نهٔ اوس وتې شي
نن هم _ یقین وکړه _ زما په زړهٔ کښې ځان کتې شي

خلق دې ډېر کهٔ صفتونه _____ د فیاض خوئ کوی
ماله خو ګله نهٔ اول وې____ نهٔ به اوس سپرلے شي

زمونږ د ژوند خو یوه لار ده _____ستا په کور درغلې
تهٔ چې په کومه لاره ځې _____په هاغه لاره تلې شي

تا کښې خو توان د درزېدو زړګیه ! هم____ ختم وهٔ
خداے خبر څهٔ دې اوربدلې دی ___په څهٔ ژوندې شي

زاهده مونږ به دې استاذ د غزل_________ هله منو
کهٔ د حمید غوندې وېښتهٔ___ د فن په زور څیرې شي

۱۷_۱۱_۲۰۰۰ حمید بابا ماشو خېل ته اشاره ده

دا غزل فنی ستونزې لري . خو ما د چاپ کتاب نه کمپوز کړو . خداے زده چې په قلمی دائېرې کښې زاهد صیب څنګه لیکلې دې ؟ دا به کتل لازمي وی . عابد



چې معجزې___ ئې ستا ليدلې نۀ دي
هسې اوسېږي ___ ستا د کلي نۀ دي

هر څوک زما د وينو__ تږي ناست دي
ما خو هيچا ته څۀ وئيلي____ نۀ دي

دې سلامت ئې____ کړېوانونه څکه
زړونه د دې خلقو ___ شليدلي نۀ دي

خال دې مئينو له _ په لاس نۀ ورځي
ستوري چا لاسو کښې_ نيولي نۀ دي

زاهد خپل لاس __بل چا له نۀ ورکوي
فالونه مونږ چرته ____ کتلي نۀ دي

۲۵_۱۱_۲۰۰۰ ..... لس بجې د شپې
شيخ ملتون تاون مردان



ما تاسره کړه مینه __________ تا زما سره کړه مینه
شریکه دې جانانه _______ اوس د چا سره کړه مینه

ستا مخ ته کتل _______ خلقو ته ګناه ښکارې د کفر
جواز مې د مرګ دا دے _____ ما ګناه سره کړه مینه

بې شمېره یزیدان دی __ خو حسېن به همېش یو وی
هغۀ چې منفرده کربلا ___________ سره کړه مینه

د وخت جبر خو شته دے__ ولې جبر د ځان څۀ وی ؟
دا ما په کوم دلیل ________ اخر سزا سره کړه مینه

پراتۀ دی په کندر کښې د تیارو _____ له هر چا هېر
زاهده لکه ستا ئې چې________ سبا سره کړه مینه

۱۸_۱۲_۲۰۰۰ د شپې لس بجې
شېخ ملتون تاون مردان



لاړ شمه په کومه _____ لاره نشته دے
دلته بې ماتمه_______ لاره نشته دے

ژوند هم ستا د زلفو رنگ __اخستې دے
ژوند کښې یو بې خمه__ لاره نشته دے

چا وې چې غر لوئې دے_ په سر لار لري
کوم دے _ ز ۀ در ځمه __ لاره نشته دے

چرته کښې ازغے ____چرته لمبې د اور
کور ته دې یو سمه____ لاره نشته دے

پوهه یمه _______ستا د آذیت په راز
اې د زړگی غمه ______ لاره نشته دے

هر خوا ته چې ځم _ کور د رقیب ښکاری
تا پله همدمه ________ لاره نشته دے

ما خو درته وې زاهده ______ زر اوځه
کښېنه اوس بې غمه ___ لاره نشته دے

۳۰ ۱۲ ۲۰۰۰ ... ۸:۳۰

# دعا

خدایه ! زمونږه دا دردونه____ کم کړې
دا پریشانۍ او ازمېښتونه ____ کم کړې

مونږه سفر غواړو___ په لور د سپوږمۍ
وزرې راکړه _____نور بوجونه کم کړې

مونږ د ذلت له سمندر ______ بهر کړې
هر یو اندام زمونږ_____  نظر نظر کړې

د تقدیر واګې مو__ د بل لاس کښې دي
تهٔ مو هېر کړې یې ___خالق مو بل کړو

د عقل _______  علم لار مو پرېښودله
لوږې اخستې یو ____ رازق مو بل کړو

اوچ لرګی پاتې یو _ بې مینې شو اوس
نوې ژوند راکړې تول بې وینې شو اوس

۳۱_۱۲_۲۰۰۰_____ ۱۱ بجې د شپې



ما وې قاتل دے____نور مې هېڅ او نۀ وې
ورسره لاړم ______ کور مې هېڅ او نۀ وې

هغۀ وې غم څۀ وی ؟____ درد څۀ ته وايي
ورته مې مخ کړو __ نور مې هېڅ او نۀ وې

د هر قاتل جرم______ مې واخست په سر
ښۀ په رضا ____ په زور مې هېڅ او نۀ وې

د مرګ په لار تېر کړم____ د ګل خاموشۍ
کۀ د بلبل په شور مې ____ هېڅ او نۀ وې

خندا دې اور کړو______ په بدن راپورې
زاهده مرم په اور مې ____هېڅ او نۀ وې

۲۶_۱_۲۰۰۱. شېخ ملتون تاون مردان



پته راته ولګېده ________ زړهٔ چې مې خفه کړې
هېڅوک مې خوشاله نهٔ کړهٔ _ تهٔ چې مې خفه کړې

دا عجیبه ضد دے____ په طبعیت د محبت کښې
دومره دې بیا غواړم _څومره ښهٔ چې مې خفه کړې

دې یوې ادا دې __________ دنیا اورې ده زړګیه
بیا دې په خندا وو هم لېمهٔ ____ چې مې خفه کړې

بیا دې هم دعا د عمر غواړمه ________ له خدایه
کله چې خفه شې رانه____. زړهٔ چې مې خفه کړې

خنګه دې ملګرے __________ د کافرو کړم زاهده
هر څهٔ دې ما خپله اورېدهٔ ____ چې مې خفه کړې

۳_۳_۲۰۰۱. ..... ۳:۳۰ بجې شیخ ملتون مردان



ستا آئینې سترګې ___ دروغ نهٔ وائی
دا پوښتنې سترګې___ دروغ نهٔ وائی

سمندر دوب کړو _ د لوئې والی غرور
ولې ___ ولې سترګې دروغ نهٔ وائی

ژوندون عذاب کړی_ د دروغو عذاب
لمبې لمبې سترګې___ دروغ نهٔ وائی

شراب تضاد دے ___ د دروغو _ اشنا
ستا مېخانې سترګې_ دروغ نهٔ وائی

دروغ زاهده_____ د دې دور دستور
دی ستا زړې سترګې _ دروغ نهٔ وائی

۲۰_۳_۲۰۰۱. ...... ۷ بجې ماښام



زړۀ کۀ مې ژاړی ___خو دنیا ته اوښکې نۀ تویوی
پښتنې سترګې دی ___ هېچا ته اوښکې نۀ تویوی

د دې نه بل جبر___ به څۀ مئین په ځان وکړې شی
ځان سره ژاړی ____خو اشنا ته اوښکې نۀ تویوی

ژاړی هغوی ___ چې حسېنی زړۀ په سینه کښې لری
یزیدي زړۀ خو کربلا ته ______ اوښکې نۀ تویوی

لکه شبنم د شپې ورېږي _______ د ګلونو په مخ
مئین د ورځې___ تا او ماته__ اوښکې نۀ تویوی

۱۶_۴_۲۰۰۱........ شیخ ملتون مردان ( نیمګړے)



څوک د شرابو مئينان _____څوک د ساقی لېونی
کوم خوا چې ځې د ژوند په لارو_ هلته وی لېونی

هر څو کۀ پانه هم چمن کښې _ چرته پاتې نۀ شوه
بيا هم د ګل لارو ته ګوری _____څو ازغي لېونی

کانی راواخلي خو د „ښار سړی ،، پرې چرته اولی
څومره هوښيار دی آشنايانو ____ دا ښاری لېونی

ښکاری ايرو کښې درته اوس هم جوړ بخری د اور
په عمر پس راته نن ګورې _______ لېونی لېونی

زاهده ځان سره څو کانی __ چې راځې _ راواخله
وائی چې بيا په هاغه لار به نن _____راځی لېونی

۱۰_۵_۲۰۰۱....... ۳:۳۰ بجې شيخ ملتون مردان

# ولې ؟

ما خو ليدلې وې پرون __________ په دوبو دکو سترګو
زړهٔ کښې مې نوره څهٔ سودا د ديدن ________ پاتې نهٔ وه

تا هم خوږې خوږې خبرې____________ راسره کړې وې
تنده مې هم هېڅ په رېښتيا د ديدن ________ پاتې نهٔ وه

دېرې کيلې مو وې يو بل ته __________په نظر کښې کړې
دېرې خبرې مو د زړونو____________ وې په خلهٔ راغلې

دېر وو يو بل ته نزدې شوې__________ فاصله څهٔ نهٔ وه
د هر چا خلهٔ کښې زمونږ مينې ته__________ اوبهٔ راغلې

اوس مې هم بوئې ستا د ديدن___ په خواوشا کښې ګرځی
اوس هم دا وايم ______چې په خوا کښې راسره ولاړ يې

اوس هم دا وايم چې دې لاس زما په لاس کښې پروت دے
اوس هم د خيال په دې دنيا کښې______ راسره ولاړ يې

خدائے خبر ولې مې په زړهٔ باندې نن ______ دېر وريږې
په هر قدم ______په هره ساه راته ________ اشنا ياديږې



چاته د ژوند په لار______ پېسه رشته ده
چاته له ځانه هم خوږه______ رشته ده

اوس هم لا وينه کښې شته_ وزن او زور
ځکه زما او ستا________ درنه رشته ده

ستا د وعدو په شان____ کچه خو نۀ ده
چرته ماتيږي _____ دا رشته __ رشته ده

يو په محشر کښې به هم __ دواړه په شر
رقيبه ! ستا زما _____ _ اوږده رشته ده

شوندې دې خاندې __ سترګې برندې لرې
ځومره خوږه ___ ځومره ترخه رشته ده

د مونځ په سر غواړې زاهده _____ جنت
ستا او د خداے هم___ عجيبه رشته ده

۶_۶_۲۰۰۱...... کچهرې مردان

ژوند ؟

ماته د ژوند یوه معنا په کار ده

تول عمر وکرخېدم _ وکړېدم
خو دومره پوئې شوم دومره اورسېدم
چې ژوند یو پل دے اوږد
هېچاته پته نشته
چې کوم ځائې مات دے دا پل
بس د قسمت قیصه ده
څوک په څو ګامو کښې ځی
دغه مات ځائې ته رسی
بیا ئې څوک او نۀ وینی
چې کومې کندې ته لاړ
چې څنګه خداے ته رسی

۷_۶_۲۰۰۱...... ۴ بجې ماذیګر



زړهٔ کښې مې تل د محبت ــــــ مینې ـ خبرې اوسی
حرام ــــــ کۀ زړهٔ کۀ مې نفرت چرته ــ بخرې اوسی

ځکه خو اوښکې مې بهو ته ــــــــ په مشکله راځی
زما په اوښکو کښې ملګرو ــــــــــ ملغلرې اوسی

پښې مې تناکې شی ـ دیدن ئې کړم ــ د مرګ په بعیه
زما په زړهٔ کښې چې اوسیږي ــــ خومره لرې اوسی

د خوشالۍ په لارو ډیر وی ــــــــ کۀ ملګری د ژوند
د غم په لارو کښې سرے تل ــــــــ یوه ذرې اوسی

پیری ځوانی کړی ــــــ مړی هم کړی راژوندی زاهده
د زړهٔ په تار کښې ــــــ د مئین داسې سندرې اوسی

۵_۷_۲۰۰۱........ ماذیګر



خوم کښې دې ساقي _ یو پوټې شته کنه ؟
دلته بې خودي _____ یو پوټې شته کنه ؟

نۀ وي چې انسان _____ د بل انسان غلام
داسې زندګی ______ یو پوټې شته کنه ؟

سترګې د نرګس______ انتظار ستړې کړې
زېړے د سپرلی ______ یو پوټې شته کنه ؟

هر څۀ دي بلها _______ د ژوند لمنه کښې
قدر د سړي _______ یو پوټې شته کنه ؟

پند د ارمانونو په سر_______ ستړے دے
ځائې د لېوني _____ یو پوټې شته کنه ؟

غم چې یو لحظه_______ د زاهد لرې کړي
داسې شاعري ______ یو پوټې شته کنه؟

۱۵_۷_۲۰۰۱....... شېخ ملتون تاون مردان



د چا درد کښې ئې پرېشانه ______د غزل شاعری وکړه
دلته خلقو څومره ګرانه ________ د غزل شاعری وکړه

نۀ دې زۀ په مزاج پوئې شوم نۀ مې تۀ په طبعیت پوئې شوې
مونږه دوارو جوړ جانانه________ د غزل شاعری وکړه

چې ستا رنګ وۀ __ ژوند وۀ درد وۀ خلقو اوپېژندم ګله
ما کۀ پته د دنیا نه__________ د غزل شاعری وکړه

چا د یار خال ته ملګرو _____ د شعرونو سجدې وکړې
چا د ژوند په لار ستومانه _____ د غزل شاعری وکړه

څوک دې لوستې دی زاهده ___ کۀ چا اولیدې په لاره
نن دې داسې په اسانه________ د غزل شاعری وکړه

۲۵_۲_۲۰۰۱ شیخ ملتون تاون مردان

## محمد

هر قدم تیارې تیارې ________ هره شپه وه توره شپه
هر سړے په اور کښې وۀ ______ هر بشر تنور کښې وۀ

هر یو زړۀ بې نوره وۀ ________ هر دښمن تیارۀ تیارۀ
نور نۀ وۀ په سترګو کښې _____ هر نظر تنور کښې وۀ

هېچرته مونده نۀ شو ______ څۀ ته چې سکون وائی
چرته کښې ژوندون نۀ وۀ ___ څۀ ته چې ژوندون وائی

وه کۀ زندګی وه به ________ بیا هم وو د مرګ حالات
...........................؟

هر یو کور لمبې لمبې ___ هر یو در تنور کښې کښې وۀ
هر سړے په اور کښې وۀ ______ هر بشر تنور کښې وۀ

راغله ستا د نور رڼا ____________ هر در شو رڼا رڼا
هر ځاې کښې شو ظلم ورک ___ هر قدم انصاف انصاف

نمر د زندګۍ شو سور ______ هر نظر ____ سحر سحر
هر ځاې وروروليې شوله ________ هر یو در سحر سحر

لاس شو د یتیم په سر _____ اوښکې لاړې اوچې شوې
نمر د انصاف وځلېد _____________ هره ساه رڼا رڼا

وركې شوې تیارې د ژوند _________ شوه بلها رڼا رڼا
ستا د نومه ځار شمه _________ ستانه پس نبی نشته

وی دې همېشه په مونږ ___________ ستا رڼا رڼا رڼا
دا رڼا رڼا رڼا _____________________ دا رڼا رڼا رڼا

۹_۹_۱۹۹۲ (نوټ _ یو ورک نظم)

یادګیرنه - دې نظم کښې دغه یوه مصرعه په کتاب کښې
نیمګړې چاپ شوې ده . او اصل قلمی دائری ماسره نشته .
نو ځکه مې هم داسې اولیکله . ...... عابد



زړۀ باندې داغونه _____ چې په شمار لرى
مينه کښې هم سوچ ______د کاروبار لرى

څۀ ضدي اشنا مې دے ____ هېڅ نۀ مني
غر کۀ لوے دے ___ بيا هم په سر لار لري

رنګ ئې ________ د خبرې تائيد نۀ کوى
ډېر کۀ مې له مينې نه_______ انکار لرى

خوئ ئې د ازغي دے _______ وفا نۀ لرى
رنګ کۀ ظالم هر څو_________ د بهار لرى

لاس ئې په ژوندون کښې چرته سرۀ نۀ شي
څوک چې د نکريزو________ کاروبار لرى

څۀ عجيبه خوئ_____ زاهد خپل کړې دے
نۀ څۀ کښې مطلب ____ نۀ په چا کار لرى

۳۱_۷_۲۰۰۱...... کچهرۍ مردان



دنیا کۀ لویه ده_____ خو زۀ به دې په زړۀ کښې ساتم
تۀ مې یې ژوند ___ تر ژوندانۀ به دې په زړۀ کښې ساتم

رقیب مې یې ___ خو تا مې خوښې ته سجده کړې ده
کۀ بد دې ډېر دی __ خو دا ښۀ به دې په زړۀ کښې ساتم

نن مې کړې اوښکې ____ چې دنیا دې شی خبر په ظلم
تر کومه دړده ______ اخر زۀ به دې په زړۀ کښې ساتم

تۀ بې پښتو شوې ____ بې وفا شوې _ زۀ دې نۀ یادېږم
زۀ خو یادونه پښتانۀ به دې ______ په زړۀ کښې ساتم

یوه قیصه وه د جنت زاهده __________ ودې خوره
تا سره څۀ دی ____ اخر څۀ به دې په زړۀ کښې ساتم

۲۳_۸_۲۰۰۱...... ۳ بجې مازیګر



کله چې نیت خراب شی ______ قدر بیا د وینې نهٔ وی
بیا څهٔ تعلق د رشتې نهٔ وی ______ زور د مینې نهٔ وی

شوق د منزل چې وی په زړونو کښې _ جذبې ځوانې وی
لارې کهٔ هر څومره اوږدې شی ____ خو سنګینې نهٔ وی

د سپرلی ورځې____ د ځوانۍ موسم کښې ښکلې ښکارې
چې دې مسکا له شوندو اوتختی ______ رنګینې نهٔ وی

د پښتو خاوره کښې کمال دے ______ چې ښکلا وروی
پنجاب کښې هم جینکۍ شته ___ خو ماه جبینې نهٔ وی

څهٔ خو لحاظ سرے لری ________ د ژوند په لار زاهده
خبره ډېره کهٔ ریښتیا شی _____ سترګې سپینې نهٔ وی

۱۳_۱۰_۲۰۰۱...... مردان



کله په یوه ________ کله په بله ځی
پته ده ؟ زاهد چې هلته _____ځله ځی

دومره شی نزدې ___چې ساه هم وانخلي
څوک چې لرے ____ لرے _ له اجله ځی

زړهٔ د لیدو شے نهٔ دے ____ چې اووینې
څنګه ؟ ستا مئین __ ستا له محفله ځی

څو چې وینه زړهٔ ___ کښې د مئینو شته
تل به دې محفل ته______ دیوه بله ځی

ژوند کښې مینه اوس زاهده _ورکه شوه
نن چې بوئ د وینې______ له غزله ځی

۲۴_۱۲_۲۰۰۱....... ماښام کور کښې



زما د شعر شور ته ____ څله کښېني
چې سوزوي ئې _ اور ته څله کښېني

نۀ څۀ رنا لري ____ نۀ رنګ_ ملګرو
فقیران دغه کور ته ____ څله کښېني

ستا د محفل خلقو کښې_ مینه نشته
هسې سرے ___ پېغور ته څله کښېني

په ژوند اتبار____ یوه ذره چې نشته
خلق په طمع____ نور ته څله کښېني

څوک د خبرې جواب ____ نۀ ورکوي
زاهد بیا دغه تور ته___ څله کښېني

۲۹_۱۲_۲۰۰۱...... ماښام کور کښې



ما چې زندګی ____ له خدایه غوښتې ده
دا مې جدایئ ____ له خدایه غوښتې ده

سوال چې د جنت مې__ په خلهٔ نهٔ راځي
ما دې اشنایئ ____ له خدایه غوښتې ده

سوال ستا د دوو سترګو به مې __وهٔ منی
ما کومه خدایئ __ له خدایه غوښتې ده

تل ئې ده ورکړې ________ باچایئ دلته
چا چې بندګي____ له خدایه غوښتې ده

خلق دې زاهده ________ خوښوي غزل
تا جوړ شاعری____ له خدایه غوښتې ده

۱۵_۱_۲۰۰۲....... کور کښې



ژوند راله اشنا ______د ویرانې غواړی
شمع همېش مرګ ____ د پروانې غواړی

هر ځائې ستا د کور د لار __تپوس کوی
زړهٔ مې رانه لوئې ____ استانې غواړی

خبر دې مرور شه _____خو بې وجې نا
مرګ کهٔ حقیقت دے هم___ بانې غواړی

دړد مې د زړهٔ اولید ستا په اوښکو کښې
مخ ته رسېدهٔ دې _____ زمانې غواړی

زړهٔ مې ځان هلک کړو _ په دې تېر عمر
مانه د ځوانۍ هغه _____ کانې غواړی

بل ته ګوته نیسی ___ ځان ته نهٔ ګوری
دا خلق په لاس کښې ___ آئینې غواړی

تول عمر کښې دومره زاهد __ پوهه شو
تندې له د خدایه _____مېخانې غواړی



عشق کښې الزامونه______ په سوونو دی
یاره ___ تهمتونه _______ په سوونو دی

ستا د غم انداز پکښې______ جدا ښکاری
دلته کۀ غمونه _________ په سوونو دی

کوم وکړی _ کوم پرېږدي _ سړے ستړي شی
ژوند لږ دے _______ کارونه په سوونو دی

ستا د سترګو جام ته____ پکښې کوم رسی
هسې خو جامونه _______ په سوونو دی

بیا د چا قضا ده _______ شو بانۀ دې نیغ
چرته خي فوځونه ؟ ______ په سوونو دی

ستا د کوم یو جاله به__ ځان بچ کړی څوک
ستا د ښکار جالونه ______ په سوونو دی

رنګ دے د زاهد د شعر_____ ستا په شان
هسې خو شعرونه_______ په سوونو دی



نۀ مني ___ ماته مې جانان معلوم دے
ماته تقدير د خپل ارمان ___ معلوم دے

په صفتونو د چا _______نۀ تېروځم
زۀ چې څۀ يمه __ ماته ځان معلوم دے

د حق خبره باندې______ پښه راکاږي
ماته د دې خلقو ____ايمان معلوم دے

بې له افته_______ بل څۀ نۀ راکوی
ماته له عمر نه____ اسمان معلوم دے

زاهده ذكر د ايران_______ نۀ كوی
چاته غزل چې د مردان___ معلوم دے

۱۰_۳_۲۰۰۲ ....... ماښام كور كښې



مئین ته ئې ژوند ورکړو ____ کۀ جانان _ ذرې ذرې کړو
هېڅ پوهه پرې څوک نۀ شو _ کۀ چا ځان ذرې ذرې کړو

ما مینه د ځوانۍ د نظر ______ توئې کړه په ګل مخو
ما وې چې به راتول شم ___ خو ما ځان ذرې ذرې کړو

بیا هم پکښې نشاط کوری ____ خو نۀ ورځې په ګوتو
دې بار د زندګۍ څومره ______ انسان ذرې ذرې کړو

اشنا مئین دې څومره ____ په ارمان غواړی له خدایه
چا خیرې کړه لمنه ______ چا ګرېوان ذرې ذرې کړو

ما توئې چې کړلې اوښکې__ دومره پوئې شومه زاهده
پړقا د ستورو څۀ رنګه_______ آسمان ذرې ذرې کړو

۱۸_۵_۲۰۰۲....... ماښام کور



نۀ په ګلونو کښې رنګ شته ______نۀ سحرونو کښې رنګ
تۀ چرته لاړې _ پاتې نۀ شو ______ په ښارونو کښې رنګ

وختونه هاغه دی _ منم ________ خو نظرونه سپور شو
چرته په سترګو کښې رنګ شته __ نۀ په مخونو کښې رنګ

یا خو زما زړۀ هاغه نۀ دے ______ یا ستا خوئ بدل شو
اوس دې وعدو کښې څۀ رنګ شته نۀ په لوظونو کښې رنګ

ویره د مرګ چې د ژوند لارو ته________ په کومه راغله
نۀ ماذیکر کښې مستی شته _____نۀ ماښامونو کښې رنګ

داسې ښکارېږي_____ چې علاج مې د زړۀ پاتې نۀ شو
اوس قیامتونو کښې رنګ ګوری __ _ محشرونو کښې رنګ

څکه خو هر څوک مې رقیب شو____ هر سړے مې دښمن
چې ستا د مخ پشانې نشته _____ _ په رنګونو کښې رنګ

هاغه رنګین سړے خو لاړ زاهده _______ اوس څۀ ګورې
اوس نۀ په ژوند کښې مې رنګ شته دې_ نۀ شعرونو کښې
رنګ

۲۵_۵_۲۰۰۲..... غرمه مقام مندۍ مردان



په اور مې نهٔ وژنی _____ ظالم دے _ په خندا مې وژنی
څومره هوښیار دے ___ _ چې د خلقو نه په غلا مې وژنی

دا برندې وروزې ______ برند بانهٔ ____ د رقیبانو محفل
حېران یم خدایه ! چرته راغلم _____ په چا چا مې وژنی

په دې مې خدائېګو کهٔ څهٔ کار وی _ چې خوش یم کهٔ نا
دا چې خبره پوره نهٔ کوی ________ بس دا مې وژنی

ماته ئې وخندل ______ خو لاړ _____ د رقیبانو څنګ له
کهٔ ابتدا راکوی ژوند __________ خو انتها مې وژنی

نن ئې په داسې نظر وکتل__________ د لارې په سر
ښکاری زاهده ___ مرګ مې راغے __ په ریښتیا مې وژنی

۲۲_۶_۲۰۰۲....... ماذیګر کور کښې



هر یو رنګ د پسرلی دې ___ستا په نوم شی
زما ټوله شاعری دې_____ ستا په نوم شی

هر رنګ د زندګۍ دې___ ستا ښائست شی
د ژوند هره رنګینی دې___ ستا په نوم شی

که ستا ساه پرې اوړېدې شی__ د زړهٔ سره
زما ټوله زندګی دې _____ ستا په نوم شی

چې په مونږه دې پېرزو _____د نظر کېږي
دا شراب او دا مستی_ دې ستا په نوم شی

هر ماښام دې شی زمونږ___ د سیاه بختو
د ژوند ټول مانیګری دې__ ستا په نوم شی

ستا د تندې علاج______ دا ښکاری زاهده
اخری جام د ساقي دې___ ستا په نوم شی

۳_۷_۲۰۰۲...... مانیګر



چاله به خوب ورشی جانانه ______د ازغو په څوکو
ستا نه بغېر ________ زندګی ګرانه د ازغو په څوکو

را دې شی خبر دے _ نن _____ زړکیه ! رقیبانو سره
ساه رانه اخلي په اسانه _________ د ازغو په څوکو

اوښکو کښې دوب ئې وو بانهٔ _ جامې زما هم خوشتې
پټ به څوک څهٔ شی له بارانه _____ د ازغو په څوکو

ویره _ پېغور _ پښتو او رسم _____ د دې کور او کلی
څنګه به راشی بندیوانه _________ د ازغو په څوکو

ماله ئې سوچ د زندګۍ راکړو _______ په نوی انداز
نن راته شنه شوه له خندا نه______ د ازغو په څوکو

ستا د کوڅې نه راواپس شهٔ ________بې دینه زاهد
پرېوتهٔ لاړ _______ سترے ستومانه د ازغو په څوکو

۱۴_۷_۲۰۰۲......... شېخ ملتون تاون مردان

# قسم

ستا په قسم مې دې قسم وی خدایه
مونږ له تاوانه بچ___ کېدلې نهٔ شو

سره د دې___ چې مو ایمان دے په تا
سره د دې___ چې مونږ ګذاره هم یو
سره د دې___ چې مو عمل دے صالح

د ایوب صبر مو ___شېوه چرته ده ؟
د حق اغوستې___ مو جامه چرته ده

مونږ له تاوانه بچ کېدې___ چرته شو
مونږ د جنت په لاره تلې___ چرته شو

۲۴_۷_۲۰۰۲........ غرمه کور



ستا د جمال رنګ دے ___ اشنا ! کۀ د جلال رنګ دے
په يو موسم هم بدل نۀ شو _____ د کمال رنګ دے

هر څو کۀ پټ ئې کړې له مانه _____ خو زۀ تا پېژنم
خدائېګو معلوم راته رقيبه ____ ستا د چال رنګ دے

ستا د لوظونو او وعدو به سرے_____ څۀ کړی ګيلې
په ورخ کښې شل ځله بدلېږي ___ د دېوال رنګ دے

زړۀ مې تراوسه لا سپين نۀ شو __ستا مئين ته د خال
پخپله هر څومره کچه _____ کۀ ستا د خال رنګ دے

د بودۍ تال ته تول واړۀ _______په تماشه وی کنه ؟
هر څوک پسخېړی ورته __ داسې ستا د شال رنګ دے

عمرونه اوشو ________خو پيکه نۀ شو غزل د زاهد
د خلقو زړونو کښې ( ئې) تراوسه لا__ بحال رنګ دے

۲۴_۸_۲۰۰۲...... ۴ بجې ماذيګر



,,چا،، راله په مخ او چا______ په شا څپېړې راکړې
ماله د ژوند لارو کښې______ هر چا څپېړې راکړې

رائې کړل ګلونه ___ وې ________ رقیب دی رالېږلی
نن ئې راله څنګه په خندا ________ _ څپېړې راکړې

څه دومره خو اوشوه __ په کتاب ئې د ژوند پوئې کړم
خیر دے کۀ په مخ راله_________ دنیا څپېړې راکړې

وائی چې مدام کوه ښۀ _________ بد نشته دنیا کښې
ماله خپلو ښو____ خدائېګو ____ بلها څپېړې راکړې

هر چا کۀ رټلم ________»» خو کیله مینه خلۀ نۀ وه
مړ شومه زاهده _________ چې اشنا څپېړې راکړې

۸_۱۲_۲۰۰۲........ د اختر درېمه ورځ کور

وۀ مې کړو بېعت چې_____ د هغۀ په لاس
راغے څۀ مقصد_______ د ژوندانۀ په لاس

دلته کښې د سود او زیان_____ قیصه نشته
دلته کښې سودا کېږی_____ د غلۀ په لاس

ځان مې کړو لاهو _ زړۀ _ چې مې ستا منل
نۀ راله هغه راغے _______ نۀ تۀ په لا س

بیا دې هم شړی _______ ماته معلومه ده
ور. کۀ شي رقیبه _____ چرته سرۀ په لاس

تول عمر دې تېر_____ په دشمنو کښې کړو
د غلۀ زاهده اخر___________ څۀ په لاس

---

نوټ ..د مطلع دوېمه مصرعه د ادائېگی معنې بدلوي . لکه

راغے څۀ مقصد ؟ د ژوندانۀ په لاس
راغے څۀ مقصد د ژوندانۀ په لاس..........زاهد

---

۲۵_۲_۲۰۰۳........ سحر لس بجې



نن د جانان____ د کوڅې خاورو له څم
د خپل ارمان____ د کوڅې خاورو له څم

خدا‌ے دې څوک نۀ کړی اسیر ستا د زلفو
څومره پرېشان__ د کوڅې خاورو له څم

مینه کښې چرته______ سړے فکر کوی
په کهکشان ____د کوڅې خاورو له څم

هر څۀ زاهده ______ په یو ساه اووایه
یمه روان _____ د کوڅې خاورو له څم

۲_۷_۲۰۰۳...... کچهړی مردان
( نیمګړې)



هلته چا په زوره _____ چغې جوړې کړې
مونږ له دغه شوره ____ چغې جوړې کړې

تول خلق وو چپ ____ د زورور مخکښې
هر سړی اوس ګوره ___ چغې جوړې کړې

نۀ مې رسی ________ تاته د زړګی اواز
دیرې مې له ګوره _____ چغې جوړې کړې

توپ ئې کړو دریاب ته __ چې بې کسه وو
لور سره د موره______ چغې جوړې کړې

راغله جنازه د زاهد __________هاغه ده
پېغلو په سرتوره _____ چغې جوړې کړې

۲۰_۱۱_۲۰۰۳........ سحر کچهری مردان



راغلو تر جانانه ______ اوس به څۀ کوو
شوه خبره ګرانه ______ اوس به څۀ کوو

تا خو وی څه مرګ دے _ قیصه ختمه شوه
بچ شوم له قضا نه ____ اوس به څۀ کوو

دا کوم یو مقام ته ______ د دیدن راغلو
ورک شو له خپل ځانه ___اوس به څۀ کوو

را مې غې _____ پوښتنې له په عمر پس
ګرانه شوه اسانه _____ اوس به څۀ کوو

ما درته زاهده وې _____ _ خاموش اوسه
یار دې کړو پرېشانه ___ اوس به څۀ کوو

۳۰_۱_۲۰۰۳........ سحر کچهری



څومره بې درده دی_____ دا خلق _ مینه نۀ پېژني
څومره ناترسه دی_______ اوبۀ او وینه نۀ پېژني

زما د کلی خلق _______تول دی د ګلونو په رنګ
خبره دا ده ________ _ چې خبره سپینه نۀ پېژني

دا څۀ مجنون شو _ چې لېلا کوری د ښار کوڅو کښې
دا څۀ فرهاد شو_____چې د ژوند شیرینه نۀ پېژني

د ازغو کرښې دې په لاسو______ د ګل وینې ښائی
داسې به څوک وي _____ چې لا تا ګلچینه نۀ پېژني

یو ځل ئې مینه___ ,, غنم رنګې ،، سره کړې ده بس
بله د ژوند په لار زاهد ________ حسینه نۀ پېژني

۱۱_۱۰_۲۰۰۳....... ماذیګر



چرته ګلونو مې لار ونيوه________ ازغو پاتې کړم
چرته سرو شوندو ته ايسار شومه ____ بنو پاتې کړم

د زندګۍ ګرانو _______ په لارو ايسار نۀ کړې شومه
څۀ عجيبه ده _____ چې دوه اوښکو پښتنو پاتې کړم

ما د ټول عمر مينه__ ستا مخکښې ښکاره نۀ کړې شوه
پرون مې ډېر درته زړۀ جوړ کړو__ خو سلګو پاتې کړم

دا نه چې وخکې مې د زړۀ نه يې __ هېر کړې مې يې
د کور له وره دې واپس شومه ______ پښتو پاتې کړم

تا راکتلې وو _____ د زړۀ سره ____ نو تلې چرته شوم
ستا د محفل حېرت اخستو ائينو_________ پاتې کړم

۲۰_۴_۲۰۰۳....... ماښام شيخ ملتون مردان ( نيمګړې)



زهٔ منم______ گل د سپرلی یې
خو لوئې شوې_____ په ازغي یې

تهٔ مې سوچ یې ___ تهٔ مې فن یې
تهٔ مې مینه _______ زندگی یې

زما خوښه ده _____ ستا خوښه
خو رقیب مې_______ اذلی یې

چاله ډک جام _____ چاله هېڅ نا
چې دا تهٔ څنګه_____ ساقی یې

څوک به څهٔ درشی_____ زاهده
نهٔ تهٔ خان ______ او نهٔ ولی یې

نوټ .... یو زوړ غزل ،
نېټه ئې نهٔ ده معلومه . زاهد



را دې په وعده نهٔ شې ______ وعده کوه
ستا دروغ مې خوښ دی __ تل دهوکه کوه

بس دې _____نور زما د زړهٔ زور نشته دے
څهٔ چې دې زړهٔ غواړی _____ هم هغه کوه

دې قبر کښې پروت دے__ ستا یو زوړ مئین
کله کله _____ دلته کښې _____ دمه کوه

ژوند به زمونږ_____ تول عمر دوزخ نهٔ وی
هر څهٔ به شی سم _______ تهٔ تماشه کوه

اوس به شی تپوس د زاهد _ څانې شته دے
څومره چې کوې ظلم ________ کوه کوه

۳۰_۴_۲۰۰۳........ مابنام کور



سوال مې نن ظالمه ____د زړهٔ ومنه
مړ به دې په در شم____ ولې څمه نا

هسې تماشې____ له مېخانې ته څم
اووئېل واعظ راته __ څهٔ ښکمه نا

ماله ستا د نوم____ وظیفه ډېره ده
نور ______ نور کتابونه یادومه نا

دغلته د لار په سر____ رقیب اوسی
څکه دې د کور په لاره____ څمه نا

ډېرې مې زاهده____ ستا منلې دی
نوره دې خبره یو ______ منمه نا

سحر کور مردان



کۀ مې د سترګو نظر لاړ شی____ کۀ د زړۀ مې لاړ شی
خو هېرېدې رانه تۀ نۀ شې ____ کۀ هر څۀ مې لاړ شی

دې ته جوړ مینه وائی ________ تاته چې ایله اوګورم
سم قدمونه هم آشنا _______ کاړۀ__ واړۀ مې لاړ شي

زمونږ د دور پېغله وائ ___________ په لاش نۀ ژاړمه
ویرېږم _ هسې نه ____ د سترګو نه رانجۀ مې لاړ شي

ساه به مې اودرېږی ____ وحشت کښې د تیارو له ویرې
کۀ دې یادونه د کندر زړۀ له ________ کالۀ مې لاړ شي

په ژوند خو دلته کښې زاهده ______ بدنام پاتې شومه
د مرګه پس ګورې کۀ نوم چرته کښې__ ښۀ مې لاړ شي

۲۰_۸_۲۰۰۳...... یولس بجې د شپې



ته‌ره به شی هر څۀ چې وی _ څه شپه ده
دېره کۀ سنګینه ده ____ درنه _ شپه ده

اوبه شی دیدن زړکیه ______ ځله مرې
رابه شی اخر _____ لا خو پرته شپه ده

خومره قیامتونه پکښې ____ځی راځی
خدایه _____ د دې کلی عجیبه شپه ده

نور له خدایه څۀ غواړې ؟ ____ دا لږه ده
نن ئې چې زړکیه _____ درسره شپه ده

ځله ! په ورځ __ کرښې کرښې مخ وینو ؟
مونږه کناهګارو له ______ پرده شپه ده

لاره د سحر به راته ________لنده کړی
دېره هم ملګرو______ کۀ اوږده شپه ده

لاړ ___زاهد په تا پسې_____ اوبو یوړو
خلقو ورته دېر اووې راځه ____ شپه ده



داسې خم ___ نۀ داسې خم ____ نۀ داسې خم
هر څۀ چې وی ____ ستا منم زړۀ _ داسې خم

نور پکښې څۀ پاتې شو ______کښېنم څۀ ته
لاړې له محفله چې تۀ _________ داسې خم

ستا نوم مې په شوندو وی ___ ستا درد په زړۀ
داسې خم ___کۀ داسې خم ___ کۀ داسې خم

تلې شمه په هره لار بنۀ ________داسې خم
ماته هم لږ وګوره__________ زۀ داسې خم

پوئې شومه زاهده ____ مینه ( ئې) ورکه شوه
نن ئې راته څان کړو اودۀ _______ داسې خم

۱۲_۴_۲۰۰۳....... مردان



ډېر کورونه په دې زمکه ____مونږ کۀ جوړ کړو
خپل ذړې ذړې زړګی به ______په څۀ جوړ کړو

بیا هم وایو _______چې انصاف کوو په زمکه
حقیقت کښې څۀ وی _ مونږه ترې څۀ جوړ کړو

هر ځائې وایو ______زندګی د لمبو خوب دے
ولې مړو له قبرونه__________ پاښۀ جوړ کړو

خدایه خپلو فیصلو له_______ ستا رنګ ورکړو
مونږ د ښۀ نه بد ______ او بدو نه ښۀ جوړ کړو

ستا خبرې راته مخکښې شی _____ _ در نۀ شو
ګنی شل ځله ______ محفل ته دې زړۀ جوړ کړو

خاورې _خاورې وی زاهده _____ سرۀ زر نۀ وی
دا خو مونږ یو __ چې د خاورو نه سرۀ جوړ کړو

۲۱_۱۱_۲۰۰۳...... مردان



خپل ورته ګوری ______ هم ملګرو پردی پکار دے
یو زړۀ لرم _____ خو هغه هم د هر سړی پکار دے

نۀ څۀ ریښې د کرېوان شته دے __ نۀ د وینو څاڅکی
څۀ اهتمام خو په دې لارو _____ د سپرلی پکار دے

وړه غلطی _______ سرے د لوئې کمر نه وغورځوي
حساب هر څۀ کښې____ د هر چاسره سهی پکار دے

دواړه سره اوسی _ خو د دواړو رنګ او خوئ بدل دے
فکر په ژوند__ هم د ګلاب___ هم د سپرلی پکار دے

ماحول ئې تول راته خراب د مېخانې کړو_____ زاهد
اوس په هر شکل څۀ علاج____ د دې سړی پکار دے

۸_۳_۲۰۰۳........ غرمه کچهری



داسې دې راوکتل _ چې خان دې رانه ورک کړو
ستا په تماشه شومه __جهان دې رانه ورک کړو

ما خو وې په مينه کښې _کافر هم مسلمان شي
عشق دې لېونے کړمه _ ايمان دې رانه ورک کړو

ګله ستا د حسن معجزو_____ ته حېرت يوړم
ورغلم لمن پسې ___ ګرېوان دې رانه ورک کړو

ورک ووم____ د يقين او د ګمان په سرحدونو
ښه شوه لېونتوبه ! چې ګمان دې رانه ورک کړو

دا دې څۀ قيصې زاهده ____ جوړې د جنت کړې
حورو ته دې پرېښودم _ جانان دې رانه ورک کړو

۳۰_۳_۲۰۰۳........ ماښام کور|



څو چې دې سترګو کښې نظر ـــ نۀ شمه
قائل به زۀ په خپل هنرـــــــــــ نۀ شمه

چې ستا په عشق کښې در په درـ نۀ شمه
ستا په کوڅه به چرې درـــــــــــ نۀ شمه

دنیا پرېږدمه ـــــــــــــــــستا لمنه نیسم!
چې ملامتهـــــــــــــــ په محشر نۀ شمه

ورځم ـخو څنګ کښې ئې رقیب وۀ وینم
لاره بدله کړمه ـــــــــــــــــــ ور نۀ شمه

ساقي ورځم ــــــخو نیمې شپې ته ګورم
چرته ذاهد سره ـــــــــــــ په شر نۀ شمه

۲۵_۱۲_۲۰۰۳...... سحر کور



هر څو که موسم دے د سپرلی ______ او هم لطیف دے
بیا مې هم په زړهٔ باندې غمونه دی ______کثیف دے

مینه کوم زهٔ ______ اشنا زما دے ____ څهٔ چې وائی
تهٔ ولې رقیبه ! راته برند شوې ؟ ____ څهٔ تکلیف دے

نن دې کرامت ساقی __________د میو را معلوم شو
وګوره واعظ ته ______ څومره غلې دے_ شریف دے

دا کوم کیفیت دے د ژوند ______ کوم پله روان یو
هر سړے خاموشه دے ______ نن هر اواز نخیف دے

دواړه راته ګران دی ________ قلندر دے کهٔ حمزه دے
یو مې قافیه ده د غزل __________ بل مې ردیف دے

تهٔ پرې هم زاهده _____ خان کړه غلې _ ښه به دا وي
نن دې رقیب غلې دے __ کمزورے دے _ ضعیف دے

۸_۴_۲۰۰۳...... ( قلندر مومند _ حمزه شنواري)



په یادونو دې زۀ پایم ________ ستا غمونه مې غزل دے
چې پیری پرې هم څوانیږی ______ شرابونه مې غزل دے

د مادې محل به څۀ کړو ______ چې روحونه پکښې ژاړی
چې تسکین پکښې ژوند مومی _ وران کورونه مې غزل دے

د ماضی دیوو نه ځار شم ___ چې د حال شپې ئې رنې کړې
د وختونو په بهیر کښې ________ تېر یادونه مې غزل د ے

ستا په زلفو کښې چې اوسم ستا د مخ په شان ئې رنګ دے
شپه د هجر پرې رنیږي. ______ سرۀ ګلونه مې غزل دے

د دوران په غم کښې څۀ دی ؟______ د جانان غمونه وایه
چې روحونه پرې ویښیږی _________ بهارونه مې غزل دے

بیا ریښتینې جذبې چېړم _________ د لفظونو په تارونو
لاس په زړۀ زاهده کېږده ________ قیامتونه مې غزل دے

---

د ۱۹۶۴ یو غزل ، چې د پرخه نه پاتې شوې دے



مینه څهٔ وي ؟ ___درد څهٔ وي؟ __لمبه څهٔ وي
تا راته راؤښودل____________ رشته څهٔ وي

ښکلي دي _____ بس ښکلي په دې نهٔ رسي
زړهٔ څهٔ وي؟ __وفا څهٔ وي؟ ___ وعده څهٔ وي ؟

عشق کهٔ ترې کړو لرې_____ څهٔ به پاتې شي
مونځ څهٔ وي ؟ سجده څهٔ وي؟ کعبه څهٔ وي ؟

لار د مقصد هره ځي ___________ مقتل پله
لارو کښې د ژوند ________ بله خطره څهٔ وي

ستا اواز ته نهٔ رسي __________ د ژوند آواز
ګل څهٔ وي ____سپرلے څهٔ وي ؟ نغمه څهٔ وي

ستا د سترګو يو نظر دے _________ ساه زما
جام څهٔ وي ؟ _شراب څهٔ وي ؟ _ نشه څهٔ وي

عشق زاهده ویره ____________ لالچ نهٔ لري
مرګ څهٔ وي ؟ _جنت څهٔ وي؟__ توبه څهٔ وي

۲۷_۱۲_۲۰۰۳..... ۱۲:۳۰ د شپې خپل کور



په کومه لار ______کومه کوڅه باندې چې یاره لاړې
د خلقو سترګې درېسې________ په هغه لاره لاړې

دا هم یو لویه المیه ده د وطن __________ ملګرو!
چې قافلې د مرګ په لوري________ بې روزګاره لاړې

نهٔ په مېلو کښې زلمي شته _ نهٔ په ګودر کښې پېغلې
هغه مزې اوس اشنایانو!__________ لهٔ بهاره لاړې

اوس له تهٔ چاته ګورې ____ خنګه به دې ژوند تېرېږي
کدې د ښکلو خو زړګیه!________ لهٔ دې ښاره لاړې

مینه دې کمه شوه زاهده _____ کهٔ دې عمر دېر شو
نن چې د یار په کلي_________ تهٔ بې انتظاره لاړې

۲۸_۱_۲۰۰۴ کچهرې مردان



ستا په تماشه شم ______ زړۀ مې وژاړي
ماته آئينه شم ________ زړۀ مې وژاړي

ماته چې رایاده شي ______ځواني خپله
تېره زمانه شم ________ زړۀ مې وژاړي

دېر خۀ مې وي زړۀ کښې _ وۀ دې نۀ وینم
تېر دې په کوخه شم ___ زړۀ مې وژاړي

ځانله د خپل جرم سزا _____ _داسې وي
ستا نه چې خفه شم ____ زړۀ مې وژاړي

وې وئېل زاهد ته ___ خوبښ مې هم نۀ ئې
ستا نه چې ستنه شم ___ زړۀ مې وژاړي



هغې لهٔ مخه چې نقاب______ لرې کړو
لهٔ بلها زړونو ئې______ عذاب لرې کړو

وينې مو توئې کړې___ خو په لاره نهٔ شو
خلقو لهٔ مونږ نه______ انقلاب لرې کړو

ښار کښې قيمت د ګلاپونو______ کم شو
تا چې د زلفو نه_______ ګلاب لرې کړو

اوس هم لا وايو __چې سپوږمى ته خيژو
مونږه د لاسو نه_______ کتاب لرې کړو

کهٔ محبت کوي ________ کوي دې خلق
زاهد لهٔ ژونده______ دغه باب لرې کړو

۲۴_۴_۲۰۰۴ غرمه مردان



ساقي کهٔ مرګ رابخښي هم ____کهٔ زندګي رابخښي
کاسه کښېږ زهر وي کهٔ مئې __ په روڼ تندي رابخښي

باور پرې نهٔ کؤم ____خو زړهٔ مې ترې هم نهٔ صبرېږي
دغه سرے څوک دے ___چې زېرے د سپرلي رابخښي

خداے دې جانان له عمر ورکړي _چې مې عمر شي ډېر
ماته دردونه _ پرېشانۍ د ژوند __ بخښي _ رابخښي

څهٔ ښهٔ انصاف دے د چمن خلقو کښېږ __ څهٔ به وايم
ګلونه نورو له اوړي__________ ماته ازغي رابخښي

تول خلق وائي چې زاهد لهٔ ښکلو______ولې ناوړي
دوي څهٔ خبر دي ___ چې دا ښکلي شاعري رابخښي



زرۀ د لیونتوب په مطلب ________ پوهه شوم
اوس د سړیتوب ______په مطلب پوهه شوم

مرگ مې د نېزدې نه اشنا __________ وۀ لیدۀ
ستا د دید د ژعب په مطلب_______ پوهه شوم

لاسو کښې پیاله د سقراط ________راکړه وخت
مرمه! _____د نرتوب په مطلب_____ پوهه شوم

سترگې مې ایله _ خوږې ستا د خنک کښې شوې
خدائېگو! نن د خوب_____ په مطلب پوهه شوم

لا مې ده څواني زاهده! __________ اوس ایله
زۀ د زلمیتوب په مطلب__________ پوهه شوم

۲۰_۹_۲۰۰۴...... ماذیگر شېخ ملتون مردان



ستا سترګو کښې کۀ ژوند دے خو مرګي پکښې هم شته دے
هوسۍ هسې کاتۀ کوي ______ زمري پکښې هم شته دے

غزل چې مې ملګرو! ______________ آئینه ده د ژوندون
دردونه پکښې ښکاري____. خو مستي پکښې هم شته دے

دا چا وې____ ددې کلي هر سړے چې_____ آدم خور دے
ملګرو! لټون غواړي_______ څو سړي پکښې هم شته دے

زړګیه! په رنګونو یې مئین ___________خو ځان خبر کړه
دا لاړې دي د ګلو ________ خو ازغي پکښې هم شته دے

زاهده! لوئې فهرست لرم _________ په زړۀ کښې د یارانو
شنواري____ افریدي دي ____ بنوڅي پکښې هم شته دے

۱۰_۱۰_۲۰۰۴ د بنوں په لار غرمه



مینه کښې چې کوم سړے ___برباد نۀ شو
چرته د تاریخ پانو کښې_____ یاد نۀ شو

چا وې چې قبلیږي______. دعاګانې تل!
زړۀ کښې مې پوره لا ____ یو مراد نۀ شو

عمر وشو __تا ____ ویران پرې ایښې دے
ښار مې د زړۀ اوس هم ___ لا آباد نۀ شو

خلق ددې زمکې _____ تر سپوږمۍ لاړل
درد له د غربت علاج ______ایجاد نۀ شو

هغه شان زاهد دے ____په خپل ځاے ولاړ
نور خلق ئې ښاد کړل _ خو دې ښاد نۀ شو

۴_۱۰_۲۰۰۴ غرمه کور



ریښې ریښې کړې خپل ګریوان هم _عجیبه خلق دي
نصیب یې ګل نهٔ شي_ مالیان هم _ عجیبه خلق دي

تیارو کښې اوسي _ خو خوبونه ___د رڼا ویني تل
یره! ته ګوره ______دا رندان هم عجیبه خلق دي

ما د جنت په لار بوځي_____ دنیا مې نهٔ ښه کوي
زموږ د کلي واعظان هم ______ عجیبه خلق دي

ازغي زموږ په پند کښې ږدي____ ګلونه بل له لیږي
دا په موږ واړه مئینان هم______ عجیبه خلق دي

مانه خو مینه د زړهٔ غواړي_____ خپله هیڅ نهٔ لري
زموږ د لارې رفیقان هم _______ عجیبه خلق دي

نهٔ پښتو پېژني ___ نهٔ مینه ____ نهٔ د کلي رسم
مئین زموږه په جانان هم _____ عجیبه خلق دي

ګوره! یوه ژبه ورځي ______ او هغه هم د مینې
زاهده___ ستاسو د مردان هم___ عجیبه خلق دي

۱ ۱۱ ۲۰۰۴ غرمه کوړ



چې لمحه _ لمحه _ د ژوند عذاب شي
نو علاج ئې وايه څهٔ ___ بې له شراب شي

د ملګرو! هر آواز _____ ساتي په زړهٔ کښې
اوازونه هم پيش رفت _____ د انقلاب شي

مونږه جام کښې ساقي نهٔ کورو _چې څهٔ دي
ورته لاس کړو چې پېرزو __ څهٔ د جناب شي

دېر ويرېږو _______ د واعظ له ګناهونو
هسې نهٔ چرته کښې مونږ پسې __حساب شي

څهٔ خو ووايه زاهد ته _____دېر خاموش يې
چې زينت يې هر يو لفظ ستا__ د کتاب شي

۵_۱۱_۲۰۰۴ مازيګر



د ژوند لار کښې چې ملګرو څوک بدنام دي
دغه خلق ټول ______قابل د احترام دي

تورو شپو کښې _ ستا د مخ په تکل ګرځي
ستا مئين نهٔ په سحر____ نهٔ په مابنام دي

واعظ څومره لوئې دروغ _په ممبر وهٔ وائ
شراب هلته کښې حلال___ دلته حرام دي

داسې چم کښې_ مو د ژوند لمحې تېرېږي
چې ئې خلق نهٔ په میم دی _نهٔ په لام دي

دا زاهده! هم اعجاز_____ د هغه مخ دے
چې بلها خلق قائل ______ دې د کلام دي

۱۹_۱۱_۲۰۰۴ مابنام



بس دے دیوه مره کړه اوس څوک نهٔ راځي
پورې د دروازه کړه__ اوس څوک نهٔ راځي

ښکلي به څو سرے _____ د انتظار وينې
هېره ئې نامه کړه___ اوس څوک نهٔ راځي

تشې شوې کاسې واعظه! ___ نشته کوټ!
څه بس دے_ توبه کړه اوس څوک نهٔ راځي

او_او_نا_شو پاتې_ زمونږ مينځ کښې زړهٔ
ساه دې په دمه کړه __ اوس څوک نهٔ راځي

ما او تا شو پاتې ساقي ______ شوه رڼا
بنده مېکده کړه____ اوس څوک نهٔ راځي

چا د پاره يه زاهده________ کوړې مخ!
ماته ائينه کړه_____ اوس څوک نهٔ راځي

۲۵_۱۱_۲۰۰۴..... مابنام



پټ رقيبان ناست دي ____له تا نه وروستو
تپوس مې وکړه ______خو جانانه وروستو

په ځان پوئې نۀ شومه_ رخصت مې درکړو!
هېڅ خبر نۀ شومه _____ له ځانه وروستو

ور دې هغوي له کړل _____ ساقي ظلم دے
څوک چې راغلي وو ______ لمانه وروستو

وره خبره وه ________خو تۀ مې بائيللې!
د تپوس پاتې نۀ شوم ګرانه_____ وروستو

اول مې وۀ اوژنې ______ دا څۀ ظالم ئې
سهي خبره کړې________ جانانه وروستو

زاهده! زۀ وم ورته________ سپک د بنې
محفل کښې څنګه شو____ پرېشانه وروستو



نشته دے وفا ______د دې غاښلو په کتاب کښې!
څۀ کورې زاهده! ______تۀ د ښکلو په کتاب کښې

هسې سيپارې راته__ واعظ وائي ____ وزګار دے!
چرته سزا ليک نۀ ده د څښکلو ____په کتاب کښې

خلقو پټ کړل پانو کښې _ انداز ئې د عشق کوره!
څۀ به زندګي وې__ ددې ګلو_____ په کتاب کښې

چا چې تر پرونه ______ځارول رانه____ ځانونه
نن مې جرم کورې د وژلو ______ په کتاب کښې

تاته هسې ځان به _______ معتبر ښکارې زاهده
تۀ ئې نۀ د لسو_______ نۀ د شلو په کتاب کښې



د محفل خلقو ته په مړو سترګو کاتهٔ_____ مهٔ کوه
پړده به واخلي د ساقي د میئو! ______ تهٔ مهٔ کوه

اوس محبت_ معامله د زړونو ___ مېنځ کښې نهٔ ده
اوس تجارت شو _ درته وایمه چې زړهٔ ___ مهٔ کوه

کومې خبرې______ چې تول عمر په لېمو شویدي
هغه خبرې د زړهٔ سره!______ تهٔ په خلهٔ مهٔ کوه

هر څهٔ د زړهٔ مني _چې عقل یې تعویز کښې بند وي
چرته د داسې خلقو مینځ کښې __وهٔ سېده مهٔ کوه

الله ګواه دے __چې مې زړهٔ کښې چاته بد نهٔ راځي
زاهده خلق راته ډېر وایي ______ چې ښهٔ مهٔ کوه

۸_۱۲_۲۰۰۴.... مردان



نهٔ مو چم وهٔ شو لا تراوسه____ نهٔ محلت کيږي
ستا او زما مينځ کښې به څنګه ____محبت کيږي

چرته کښې ويره د دوزخ _____چرته لالچ د جنت
هر ځاے کښې مونږ سره خالقه ___سياست کيږي

واعظ هم ختمه خاموشي نهٔ کړه _د وعظ په زور
ساقي کهٔ وهٔ غواړي__ دا هر څهٔ په يو ست کيږي

دومره را اوښودل د ښکلو____ د تول عمر مينې
ځينې کارونه _____نهٔ په پت نهٔ په دولت کيږي

چرته کښې زهٔ _چرته د ښکلو__ دا محفل زاهده!
هر څهٔ چې کيږي___ بس هم ستا په برکت کيږي

۵_۱_۲۰۰۵ دولس بجې د شپې
شيخ ملتون مردان



د فکرونو زاویې ________بدلؤل غواړي
د ژوندون دا ورځې شپې___ بدلؤل غواړي

د ژوند ________ هره پېمانه شوله بدله !
د ساقي دا پېمانې ______ بدلؤل غواړي

یو لمحه د ژوند____ ولاړه په ځائې نهٔ ده
د تاریخ پاڼې زړې _______ بدلول غواړی

د عمر او خالد__ یو کار کښې شک نیشته
د دې وشوې زمانې______ بدلؤل غواړي

یو انداز د محبت _____اوس هغه نهٔ دے
د مئینو روېې________ بدلؤل غواړي

د مجنون دور_____ بیا نهٔ راځي زاهده !
د اختر په ورځ____ جامې بدلؤل غواړي

۷_۱_۲۰۰۷ مازیګر
شېخ ملتون مردان



جانان په خپله لاره ځي ________لار بدلؤل نهٔ غواړي
جوړ د رحمان سره عزيز ________ کلے کؤل نهٔ غواړي

په خلهٔ د هر چا دي ________ ملګرو دا هوښيار مخي
خو ولې کلے د زړهٔ ________چا سره ساتل نهٔ غواړي

داسې يو دړد مې دے سينه کښې_ چې مې وژني هم نهٔ
داسې يو دړد دے__ چې ژوندے مې هم ساتل نهٔ غواړي

خداے خبر څهٔ چل دے__ محفل کښې ماته نهٔ ګوري نن
قاتل د سترګو جنګ________ زما سره کؤل نهٔ غواړي

زما د زړهٔ د هر يو لفظ په معنا ________ ښهٔ پوهيږي
خداے خبر ولې دا کتاب______ اشنا لوستل نهٔ غواړي

راغے زاهده! _____ ولې سترګو کښې يې اوښکې نهٔ وې
جوړې په قبر مې ديوې هم________ بلؤل نهٔ غواړي

۱۲_۱_۲۰۰۵ شيخ ملتون مردان



څۀ په هنر ځان____ ښائي په خلقو کښې
ماته رقيبان ستائي______ په خلقو کښې

دا ئې کوم انداز________ د ستم وۀ ګنم
نن زما ديوان_____ وائي په خلقو کښې

چا چې__________ تر پرونه پېژندمه نۀ
نن مې په څۀ شان بيائي _ په خلقو کښې

مرۀ يې کړم پخپله پرون ______ ګوره تۀ
نن مې په ارمان__ ستائي په خلقو کښې

ځکه خو زاهده_____. شو بې زوره مونږ
ختم شو____ _ ايمان وائي په خلقو کښې

۳_۳_۲۰۰۵...... مردان



ځان مې خفه کړو___ خو ملګري مې خفه نۀ کړے شو
ما سازشونه__ چې د ژوند په لارو __ زده نۀ کړے شو

خدایه ځادر دې د شپې _____ هم د مطلبونو ډک دے
ځینې کارونه دې بندیانو ____ چې ښکاره نۀ کړے شو

خفګان دې څۀ وۀ__ هر یو زړه درسره لاړو___ مړ شۀ
بل چراغونه بېګا چا _______ په مېخانه نۀ کړے شو

مئین د زلفو دې بس _______ هسې د رڼا نه تښتي
داسې هم نۀ ده ____چې دې بله یو ډیوه نۀ کړے شو

ستا د نظر پرخې ته کوري____ دومره پوئې شو زاهد
د زړۀ په وینو یې______ ګلونه هم تازه نۀ کړے شو

۲۱_۳_۲۰۰۵...... مردان



فيفي دې رانه ـــــــــواخېستو راهي خو راته پرېږده
خالقه! څۀ نا څۀ ـــــــــدا شاعري___ خو راته پرېږده

د ګلو آبيارۍ کښې ده __________ زمونږ وينه شامله
ظالمه يو دوه ګله________ د سپرلي خو راته پرېږده

نۀ تاج سره مو کار دے______ نۀ د تخت لړو خواهش
دا ناسته په دې زمکه د پوزي ______ خو راته پرېږده

اے وخته خپل احساس د تنهائۍ به مې پرې نۀ ږدي
تول خپل دې رانه واخېستل__ پردي خو راته پرېږده

غمونه د خومانو راله____________ مۀ کوه زاهده!
يو دوه ګوټه په جام کښې د ساقي _ خو راته پرېږده

---

نوټ ! د فيضي صاحب د مرګ په خبرېدو فوري رد عمل ،

۳.۲۰۰۵...... مردان



زړهٔ یواځې نهٔ ئې تهٔ ___ پرېشان ګورے بلها دي
دلته پټ مئین دي په جانان ___ ګورے بلها دي

وهٔ نهٔ کړئ قېصې د عقل ___ چاته چې ملګرو!
دلته کښې د عقل دښمنان___ ګورے بلها دي

چرته کښې رهبر_ چرته قاتل __ چرته رهذن دي
دلته کښې رنګونه د انسان___ ګورے بلها دي

ته خو په هر چا باندې___ ایمان راوړې زړګیه!
خیال کوه___ بېمانه د جهان ګورے بلها دي

دا ښهٔ ده چې دلته د هغهٔ پشان ___ځوک نیشته
ستا په شان زاهده___ زاهدان ګورے بلها دي

۲۶_۴_۲۰۰۵ مازیګر مردان



نهٔ درزېدهٔ مې زړهٔ پرېږدي ___او نهٔ سهي درزيږي
تهٔ رانه څهٔ لاړې ____ په ځان لوبې کوي درزيږي

څوک چې معنا د زندګۍ ګوري نو وا دې وري دا
زړهٔ زندګي ده __څو چې ساه زمونږه وي درزيږي

ماته راغاړه وت پرون______ ناڅاپه لاړو په شا
وې په سينه کښې دا څهٔ شے _ ددې سرې درزيږي

ستا په ناڅاپه راتلو څهٔ مې وي __ حالت د زړګي
لکه د نيمې شپې څوک ور _چې درزوي _درزيږي

څهٔ راپېښېږي___ چې زاهده زړهٔ مې غلے نهٔ شو!
نن چې بې واره په موسم کښې د سپرلي درزيږي

۲۵_۴_۲۰۰۵ ماښام کور

# دوه شعرونه

چې درد خوړلي شي ___عذاب ښکے شي
هغوي زمونږ سره ____ شراب ښکے شي

ساقي__ چې ست ورته د ښکو او نۀ کړي
زاهد ظالم ______خانه خراب ښکے شي

۳_۵_۲۰۰۵ ماښام کور



د زړۀ دردونه مو تر اوسه___ په قلاره ____ نۀ شو
په هېڅ حالت کښې^هم^جدا_____ له خپله یاره نۀ شو

تا کۀ بلها قیصې واعظه ______ د جنت جوړې کړې
ولې هېڅ څوک د مېخانې نه ___ستا په لاره نۀ شو

تۀ په یوه وعده هم مۀ راځه __ چې زړۀ دې نۀ دے
مئین دې سترې په یو لار______ له انتظاره نۀ شو

مینه به څۀ وکړو ____ مونږ ښکلو ته به څۀ وګورو
مونږ لحظه هم چې اوزګار____ چرې له کاره نۀ شو

ستا انتخاب دے منفرد __ ستا عشق دے هم منفرد
ځکه زاهده ستا د یار مئین _____ بې شماره نۀ شو

۲۳_۹_۲۰۰۳...... غرمه کچهری



ټا رانیوله ______ خو کاسه شوه ماته پاتې نهٔ شوه
کیله به څنګه کرم ساقی ____کهٔ ما ته پاتې نهٔ شوه

د دیوې لږ عمر_________ زمونږ د مینې عمر ډېر کړو
په نیمه شپه کښې شوله مړه __ سبا ته پاتې نهٔ شوه

ما چې په عمر کښې کړه جوړه _ تا لحظه کښې ماته
هغه رشته مو_____ اوس سلام دعا ته پاتې نهٔ شوه

څهٔ قرآنونه __________ د دروغو به دې ماته خوړل
بنه شوه وعده چې دې اشنا___ سبا ته پاتې نهٔ شوه

دیوان مې خېر دے کهٔ زاهده _______ اشنا اوسېزلو
خفه په دې یم _____ اثاثه مې چا ته پاتې نهٔ شوه

۲۲_۱۰_۲۰۰۳...... ۴ بجې ماذیګر
شیخ ملتون تاون مردان



دېر کۀ تنها یم ____ خو بیا هم څوک راته ګوری شته دے
د دېوالونو په شا ________ بره یو څو ستوري شته دے

د جدای احساس _________ د غم چپې _ د زړۀ دردونه
دغه څو نخښې د یارۍ________ لا ستا د لوری شته دے

وفا _ پښتو __ مینه ____ خلوص_ پت __ احترام د مېلمه
د زړۀ کتاب کښې مې موجود_____ لا دغه توری شته دے

ما وې _ څه __ هر څۀ رقیب پرېښودل ____ اشنا زما شو
خو نا _ په زړۀ کښې ئې څۀ ماته _ چې راګوری _ شته دے

په کومه خلۀ د امن نوم اخلو __________ _ زاهده دلته
اوس هم لا جنګ______ د زورورو او د کمزوری شته دے

۵_۵_۲۰۰۵...... ماسپښین کور



وتې ترینه شم چرته _ په وعده کښې دې راګېر کړم
ظالمه دا په کومه_____ دائره کښې دې راګېر کړم

د ژوند په هره لاره خیال د یار _____ راته ځلیږي
رقیبه ! کومه لار_ کومه کوڅه کښې دې راګېر کړم

تا کرښه راته راخکه __ د پښتو او مینې مېنځ کښې
اشنا ____ لکه تصویر په آئینه کښې دې راګېر کړم

ما وې چې زمونږ مینه ابدی ده ______ د زړهٔ سره
دا څهٔ د _ او _ او نا _ په کشاله کښې دې راګېر کړم

زاهده ما په تا باندې بائیللې ده _________ منمه
په بله رانه اوځې ___ چې یوه کښې دې راګېر کړم

۲_۶_۲۰۰۵....... مابنام کور



ستا هغه وعدې_____ راته رایادې شوې
تېرې زمانې ________ راته رایادې شوې

ستا د سترګو رنګ __ د نشو رقص پکښې
کومې مېخانې _____ _ راته رایادې شوې

هر وخت د راتلو قسم _____ او نهٔ راتلهٔ
نن دې بهانې راته _______ رایادې شوې

ستا وعده __ د ژمی شپه _ او خوشې ښار
خپلې حوصلې _____ _ راته رایادې شوې

ستا زلفې _ قامت ___ شوندې او خوږ نظر
څومره خزانې راته _______ رایادې شوې

مینه د زاهد ____ ورسره ستا ____ نفرت
کومې ورځې شپې____ راته رایادې شوې

,,س ب `` سلیم په مرګ

د هر چا زړهٔ کښې اوسېدهٔ ______ هغه سړے داسې وهٔ
په دړد د هر چا دردېدهٔ ________ هغه سړے داسې وهٔ

بلها غمونه ئې پند کړی وو __________ د ژوند په لارو
هره لمحه به موسېدهٔ __________ هغه سړے داسې وهٔ

رنګ ئې د ګل _ خوئی ئې د ګل _ خندا ئې هم د ګل وه
د ازغو مېنځ کښې اوسېدهٔ _____ هغه سړے داسې وهٔ

زړهٔ کښې نفرت ئې چرته نهٔ وهٔ ______ تشه مینه مینه
لکه ګلاب به غوړېدهٔ__________ هغه سړے داسې وهٔ

کمال ئې دا وهٔ چې رقیب ئې هم په مېنځ کښې نهٔ وهٔ
په هر ښکلی مړ کېدهٔ __________ هغه سړے داسې وهٔ

د چا کهٔ مینه ورسره وه __________او کهٔ نا __ زاهده
د هر سړی نه ځارېدهٔ __________ هغه سړے داسې وهٔ

ماښام کور

---

د دې نظم عنوان په چاپ کتاب کښې ( س .ب.سلیم په مرګ ) دے. خو زما دا غالب امکان دے چې دا به ( س.ر.سلیم ) یعنی سېف الرحمن سلیم وی .

# څهره

ښې نظر ________ ښې خبرې _ ښې رنګ داسې وي
چې د سړی په زړۀ کښې ښخ شی _ بیا ترې نۀ شي وتې

عمرونه تېر شي ______ صدۍ واوړی _ خو ناڅاپه چرته
هم هاغه سترګې _ هاغه رنګ ____ هاغه څهره یاده شی

داسې یو ځل مې وې لیدلې_____ د ژوندون مېله کښې
اوس مې هم زړۀ کښې لا اوسېږې _ لا وتې ترې نۀ شې
د زړۀ لمن کښې مې محفوظ یې ___ پرېوتې ترې نۀ شې

۷_۷_۲۰۰۵..... مردان



چا درسره مینه وکړه ______ چا په زړۀ کښې ځائې کړې
ما درسره مینه وکړه ________ ما په زړۀ کښې ځائې کړې

بیا به دې لوئې والې خلق_____________ اووینی پخپله
ګوره کۀ هر راز_____ _ لکه صحرا په زړۀ کښې ځائې کړې

ستا محفل کښې ناست ووم _ خو څوک پوئې راباندې نۀ شو
اوښکې مې د سترګو _____ څۀ بلها په زړۀ کښې ځائې کړې

هېڅ به ترې جوړ نۀ کړې _____ ستا کردار به د رقیب وی
ډېر کۀ داستانونه _______ _ د دنیا په زړۀ کښې ځائې کړې

هسې به زاهده ____________ درته ځان وړوکے ښکاری
هر څوک دې مئین په فن ____ دنیا په زړۀ کښې ځائې کړې

۲۴_۷_۲۰۰۵....... ماذیګر کور



هر څوک په ځان شو_____ سم اشنا _قیامت وۀ
راتلۀ محفل ته دې بیګا___________ قیامت وۀ

دوب شوم خولو کښې ___شوه بې کوره مې ساه
دا ناڅاپي دیدن دې __________ لا قیامت وۀ

چې د محشر په ورخ مې _____ شوې تر سترګو
په ما اختر شۀ __________ په دنیا قیامت وۀ

دا سې انداز دې ____________ ما لیدلے نۀ وۀ
پټ په خندا کښې دې والله _______قیامت وۀ

راتلو دې ځان سره _________ سپرلي راوستل
تلۀ د رقیب سره دې بیا __________قیامت وۀ

زاهد چې یاد کړې _________ محبت د ځوانۍ
ابتدا مرګ وۀ ____________ انتها قیامت وۀ

۹_۸_۲۰۰۵......... مردان



دیر غوارمه ______ خو ځان د دې عذابه ویستے نشم
جانانه ________ ستا د لاس ګل لۀ کتابه ویستے نشم

پښتو چې راشي مینځ ته _بیا سرے شي _ بې اختیاره
رقیبه ! تۀ کۀ مرې_____ تا لۀ دریابه ____ ویستے نشم

یو ځل دې راکتلي وو ______ عمرونه پکښې تیر شو!
ستا یاد لا د زړګي ________ خانه خرابه ویستے نشم

ستا ستر ګو کښې غوښتنې __بې حسابه شوې اوس ګله
شم مړ به پکښې _ ځان له دې ګردابه ____ ویستے نشم

هر څوک کۀ دې عمل راته_____ معلوم دے خو زاهده !
دے جبر لا د وخت ______ تا لۀ محرابه ویستې نشم

۲۰_۱۰_۲۰۰۵ ماښام کور



دې ښار کښې خو څوک نۀ کوي _ هيچا ته _ دعا ګانې
دا څنګه خلق تاته کړي ________هم ماته دعاګانې

تاريخ کښې چرته نشته دا _____ پريکړې فيصلې !
حسين په زړۀ کښې ځائې کړې ___کربلا ته دعا ګانې

يو تۀ يې _چې په ژوند کښې دې نوستلې دي رنګونه
شي ماته دې ښېرې _______ خو ولې تاته دعاګانې

دا څنګه په لمحو کښې شو _ سپور والے په ژوند خور
هر زړۀ کوي ته ګوره! ______ ستا خندا ته دعا ګانې

زمونږه د ښار خلق چې مئين أوس____ په تيارو شو!
زاهد ولي په کانو _ نور ______ هر چا ته دعاګانې

۲_۱۱_۲۰۰۵ مازيګر کور



دروغ وایي بې شانه ________ آئینه زمونږ د کلي
وهٔ نهٔ ګوري جانانه ________ آئینه زمونږ د کلي

ما اېښې ده صندوق کښې _په دې خیال _ اے د زړه سره
غلا وهٔ نکړي لتانه ________ آئینه زمونږ د کلي

تا دیر چې ورکتل ________ لرې کولې ئې________ له ځانه
اوس دېره ده ________ پریشانه ________ آئینه زمونږ د کلي

پخواه خو داسې نهٔ وه ________په هر حال ئې وې ریښتیا !
اوس دېره شوه بېمانه ________آئینه زمونږ د کلي

یو ځل چې ورکتلي دي چا ________بیا( ئې) راخېستې نهٔ ده
بې مخه ده بې شانه________ آئینه زمونږ د کلي

په زړه کښې ئې یوه وي ________په خلهٔ بله _منافق دے
زاهد ته شوه حېرانه ________ آئینه زمونږ د کلي

( ۲۸_۱۲_۲۰۰۵ ) کچهری مردان



تهٔ مانه بې درکه شوې ___________ زهٔ ستا نه بې درکه
د ژوند په لارو _ هر څوک شو ______ جانانه بې درکه

دا درد چې چا لیدلے وي _________ کړي داسې دعاګانې
خدا ے مهٔ کړه یو اشنا ____ د بل اشنا نه _____ بې درکه

جادو دې د وعدو راباندې ___ داسې لوبې وهٔ کړې اوکړې
ولاړ د ژوند په لاره یم _________ پریشانه ___ بې درکه

اوس لاره د خپل کور هم ______ راته نور خلق راښائي
خدا ے مهٔ کړه څوک زما هسې ______ له ځانه بې درکه

زاهد به خنګه هیر کړې __________ دا اختر د زندګۍ
یوازې کټ کښې پروت دے ______ لهٔ دنیا نه بې درکه

۱۱_۱_۲۰۰۶ د لوئې اختر په ورځ



ما ډیر کۀ کتل تاته ________ولې توان د کتو نۀ وۀ
رقیب دې وۀ_ په سترګو کښې بېمان ___ دکتو نۀ وۀ

قیصه د محبت وه_____ ځکه هر سرې کړه خوښه
یقین وکړئ ملګرو ________چې عنوان د کتو نۀ وۀ

تا ځان پکښې لیدۀ______ ځکه دې سترګې واړولې
جانانه زما سترګو کښې طوفان ______د کتو نۀ وۀ

ستا ګرد پکښې د پښو وو __زمانه( ئې) په تماشه وه
جانانه ! ګنې هسې________ کهکشان د کتو نۀ وه

دا ښه شوه زولنو ئې نوم _____د ښار د دروازې کړو
ګنې دغه د زلفو بندیوان ____________ د کتو نۀ وۀ

یو ګل ئې کړو په عمر کښې پېدا_چې ستا په رنګ وۀ
ګنې بغیر د دې نه __________ ګلستان د کتو نۀ وۀ

دا ښهٔ شوه رقيبانو هم پښتو زده کړه____ سړي شو
کنې د دغه خلقو______ نوم نشان ___ د کتو نهٔ وهٔ

زاهده مونږ ملګرو ______ کړو رنګين د فن په وينو
مردان په نوم مردان وهٔ ___ خو مردان د کتو نهٔ وهٔ

١٥_٢_٢٠٠٦ کور مردان



ما د سترګو اور ته _____ زړهٔ نیولےدے
تل مې هر پېغور ته زړهٔ____ نیولے دے

هر څهٔ چې کوي ____ ورسره څهٔ اوکړم
ما د ښکلو کور ته _____ زړهٔ نیولے دے

ګورے کهٔ آواز پکښې_____ ستا واورمه
ما د دنیا شور ته _______ زړهٔ نیولے دے

مینه کوؤل هم_____ د صراط پل ښکاري
دا مې کوم یو_____کور ته زړهٔ نیولے دے

ستا زړهٔ هم زاهده !____ د کتو شے دے
تا د دنیا زور ته _______زړهٔ نیولے دے

۱۴_۳_۲۰۰۶ مردان

# قطعه

کله هغهٔ  پسې مړ کیږې__________ کله دهٔ پسې مرې
چرته کښې تا هم یادوي څوک کنه____ تهٔ پسې مرې

زاهده! خداے خبر چې تهٔ _د کومې خاورې جوړې یې
چرته کښې څهٔ  پسې مړ کیږې __چرته څهٔ پسې مرې

(01-01-07) ماښام کور



عمر مو تېر شو _په غرمو _____چرته پرې سیورے نشو
بیا هم خواهش د زندګۍ زمونږ_______ کمزورے نشو

مخ دې اشنا رانه څه واړوۀ_______ هر څه واوړېدل
پټ په وریځو کښې ښکاره د قسمت _____ ستورے نشو

منم! چې ډېر څۀ دې رقیب ته ____ یوه ساه کښې اووې
چې دې خندل محفل کښې پوئې په ستغې سپورے نشو

ستا په یوه خبره مات شو _____ کۀ په هېڅ هم نۀ وۀ
پېوند تراوسه مې زړګے ________راشه که ګورے نشو

ئې به د خپلو ګنهګار__________ هم د پردو زاهده!
ښۀ ده چې تور د محبت دربانډې _______پورے نشو

۲۰_۳_۲۰۰۶..... د ګل ورخ کور کښې



ځان ئې مړ کوهٔ چې په پښتو _____ څهٔ پته نهٔ لګی
تلهٔ چې په دې لارو_______ د هغو څهٔ پته نهٔ لګی

خدای زده انتظام ساقی___ د چا لاسو ته پرېښودهٔ
هر څهٔ بې درکه_________ د کاسو څهٔ پته نهٔ لګی

هسې شپه کړم تېره ____د یقین او د ګمان په مېنځ
نهٔ راځې اشنا ___ ستا د وعدو ____څهٔ پته نهٔ لګی

خدایه د ژوندون __ لویه مېره کښې مرم له تندې نه
هر ځائې سرابونه ________ د اوبو څهٔ پته نهٔ لګی

تش ګلونه پاتې شو___ چمن کښې لارې جوړې شوې
منع رقیبان وو ________په ازغو _ څهٔ پته نهٔ لګی

نهٔ ورکوم لاس زاهده_____ زړهٔ ئې چې زما نهٔ وی
دلته د مخونو ____ د څهرو _____ څهٔ پته نهٔ لګی

۱۹_۱۰_۲۰۰۶..... کچهری مردان



لاړې بدلول هم ______ سرے سترے کړی
تا پله درتلل ______هم سرے سترے کړی

درد چې_ کوم په زړهٔ کښې وی ورکېږي نا
تول عمر دا ښکل هم_ سرے سترے کړی

هر وخت آذیت ____ دردونه _ زړهٔ خوړل
بار د ژوند اوړل هم ____سرے سترے کړی

دا د سپړلی ورځې___ دا وحشت __خدایه
تل ګرېوان شلول___ هم سرے سترے کړی

هر وخت د قیامت____ او د سزا__ ویره
وعظ اورېدل هم ____ سرے سترے کړی

مهٔ وایه زاهده__________ غزل مهٔ وایه
تا ته کېناستل هم ____ سرے سترے کړی

۲۰_۱۰_۲۰۰۶..... کچهری مردان



نن خو دې په شوندو خندا___ پاتې کړه
دے موسم د ګلو _____ _ اشنا پاتې کړه

خلې به د دې خلقو ______ بندوې څنګه
شپې خو دې پرده د ګناه_____ پاتې کړه

راغله چې په عمر پس___ وئېل مې زړهٔ
پاتې کړه ___ دا پاتې کړه _ _ دا پاتې کړه

مرګ څومره ظالم دے ___څومره زور لرې
ساه د زندګۍ دلته_______ چا پاتې کړه

تا ___ چې څهٔ په خلهٔ درتلل نو اودې وې
یو ګیله مې زړهٔ کښې وه ___ ما پاتې کړه

دا د تیارو خلق _________ رڼا نهٔ غواړی
مونږ څکه په زړهٔ کښې رڼا____ پاتې کړه

څومره مصلحت ______ زاهده دلته دے
هر سړی خبره____ ریښتیا ____ پاتې کړه



اشنا ته نهٔ وایم________ چې ما سره یاری دې کوي
یوه رشته خو به وی ___ _ خبر دے _ دشمني دې کوی

دا رویه د کوم یو عشق ده__________ اے ساده زړګیه
له یاره لرې ___ سرے کښېنی __ اسوېلی دې __ کوی

وی همېشه به مې ملګری _____ _ د زړهٔ کور کښې دېره
کهٔ ګل پاشی نهٔ کړی __ په ما _ نو سنګ زنی دې کوی

ځان په تا وژنی _ او ژوند غواړی_ راته داسې ښکاری
روژې دې نهٔ نیسی سړے_______ او پېشمنی دې کوی

ارام طلبه دې زاهد بېخی _______ ملګرو _____ منم
چې هېڅ هم نهٔ کوی __ څه خبر دے شاعری دې کوی

۳_۱۱_۲۰۰۶..... ماسخوتن کور



ښومره رنګ او بو___ چې په بهار کښې دے
دې نه یو په شل__ ستا په رخسار کښې دے

ستا د اقرار ورځ به وی______ د مرګ زېرے
ژوند زما_____ اشنا ستا په انکار کښې دے

مۀ څه ____ له دې کلی کورے ورک به شې
کله__ هر چالاک سړے___ په ښار کښې دے

دې نه به بل___ جبر ژوند کښې څۀ شے وی
خدایه _ کوم یو شے مې په اختیار کښې دے

بیا دې هم لیدل دی_____ د قیامت په ورځ
هر څو کۀ ستا کور____ زما په لار کښې دے

ژوند کښې شوه زاهده______ دلکشی ختمه
هر سړے_______ د مرګ په انتظار کښې دے

۱۹_۹_۲۰۰۶..... کچهری مردان



ګرځي په تيارۀ کښې _____ رنا پېژني
مانه لرې تښتي _____کۀ ما ___ پېژني

نوره معجزه د شعر _______ څۀ منعا؟
نۀ (ئې )پېژنم زۀ ____ ولې ما پېژني

بيا به ملګرتيا_______ د يذيد نۀ کوي
څوک هم چې حسېن __کربلا _ پېژني

ماته يو قدم ___ رانېزدې کيږي___ نا
ډېره کۀ جفا _____او وفا ___ پيژني

هر مئين خويونه ______ د پتنګ لري
څکه پتګان مې بلها _________ پېژني

دغه خلق پېژني______ معنا د ژوند
څوک چې ابتدا _____انتها __ پېژني

هسې کړي زاهد____ د دانشور دعوې
خدائېګو کۀ دروغ __ او ريښتيا پېژني

۶_۵_۲۰۰۶ مانېام



اوس مې هم زړه رپېږي ـــــاوس مې هم ځيګر رپېږي
ځواني د دوارو لاړه ـــــــــــــــ بيا مې هم نظر رپېږي

اشنا د رعب به دې څهٔ وايم د ښائست ـــــــپه حقله
مئين چې کله هم ــــــ در مخ شي نو اکثرــــ رپېږي

نور به ملګرو درته څهٔ ليکمه ــــــــــــــــ حال د چمن
ده هره پاڼه ـــــ ځانله ـــ ځانله در په درــــــ رپېږي

د خپل نظر د زور پوښتنهــــ راشهـــــــ مانه وهٔ کړه
پرېوتے نهٔ شي ـ ماښامي کښې ـــــــ اشنا نمر رپېږي

اوس دې زاهد هغه شان نهٔ دے ـــ کوم چې تا به ليدهٔ
يواځې کرځيــــ همېش ــــــځان سره په شرـــــ رپېږي

۱۵_۴_۲۰۰۶ د خالي ورخ ماښام کور

Scanned with CamScanner



أور دې کړو راپورې نظر ______مړ دې کړم
نۀ وينم په سترګو ګودر ______ مړ دې کړم

ما خو وې چې مينه ده______ مزې به وي
دومره بوج دې راکړو په سر ___ مړ دې کړم

جام کښې دې ساقي څۀ وۀ__ پوئې نۀ شومه
شومه د جامو نه بهر______ مړ دې کړم

سترګې وې ريباره ______ ستا په لور کړې
رادې وړو دا خنګه خبر ______ مړ دې کړم

نۀ راځي منزل په نظر______ شل شومه
خدايه چې دے څومره سفر____ مړ دې کړم

شپې مې د ژوند ___ خدايه هسې روڼې کړې
کلے دې په ما کړو خبر______ مړ دې کړم

دغه یو اسره مې وه _______ د ژوند په لار
پورې چې دې ماته کړو ور_____ مړ دې کړم

وخته نور به څومره _______ پښتانهٔ وژنې
زړهٔ مې سورے ____ ژوبل خیکر مړ دې کړم

یه واعظ!_________دا هاغه انصاف ؤ ستا
سورے دې کړو خپل _زهٔ په نمر_ مړ دې کړم

ستا د بنو زور ته مې ______ زور چرته وهٔ
رادې وستو دومره لښکر______ مړ دې کړم

یه زاهده _______ ښکل دې راله زهر کړل
کلے دې په ما کړو خبر_______ مړ دې کړم

۲۳_۵_۲۰۰۶...... مردان



ستا نه دې په شا شم ____اشنا گرانه ده
گرانه ده ___دا گرانه ده ___ دا گرانه ده

ژوند هم د دروغو جامې ___ واغوستې
دلته اوس خبره _____ ربښتیا گرانه ده

اوس یې شو گردان____ د سبا هم ختم
اوس ورته وعده _____ د سبا گرانه ده

چرته دې رقیبه ______ د جرگو نه ځم
ماته کۀ شرطونه ږدې____ بیا گرانه ده

خلقو دیوې مرې کړې سترگې(یې)پټې کړې
دلته کښې راتلۀ _______ د رڼا گرانه ده

هر څۀ چې کوي _____ ولې د ور په شا
جام سره زاهده ته گدا ______ گرانه ده



خان ته جانان به رانېزدې ______ څنګه کړو
لرې اسمان به________ رانېزدې څنګه کړو

خوب کښې چې زېړے_____ راکوي د سپرلي
دا مهربان به رانېزدې __________ څنګه کړو

دې کښې شک نشته___ تهٔ مو زړهٔ کښې اوسې
خدايه___ انسان به رانېزدې _____څنګه کړو

سحر يوه ____________ او ماښام بله وائي!
رقيب بېمان ________ به رانېزدې څنګه کړو

چې کړې سرسبزه _____ شاړې مزکې زمونږ
د غړهٔ باران ________ به رانېزدې څنګه کړو

زاهده ذکر د قيامت ____________ او ويره
دا امتحان به _________ رانېزدې څنګه کړو

۳۰_۶_۲۰۰۶ ماښام کور



چرته چې ژوند نشته. ______ بیا هم په هغه لوري ځمه
لۀ دار د سره مې ملګري راته ______ ګوري___ ځمه

ستا د وعدې نشه هم __________ کمه د شرابو نۀ ده
شپه مې په سترګو کښې شی تېره ورک شي ستوري ځمه

څۀ عجیبه دي خواهشتونه________ ددې وخت زړګیه
خلقو قبضه په کوم هنر کړل_____ د ژوند سوري ___ځمه

ملګرو خپل دي کۀ پردي ____انصاف په چا کښې نشته
تول زورور دي ______لۀ دې کلي مونږه زوري__ ځمه

زاهده تیک ده________ بې تاوانه مې څۀ او نۀ موندل
بیا هم په مرسته همېشه _________د هر کمزوري ځمه

۲۲_۸_۲۰۰۶ کچهری مردان



ښنګه به زړه شمه ____بې غمه ________ غمه
راسره څې____ په غر او سمه______ غمه

څکه مې ښکلی زړه کښې______ نهٔ تینګېږي
د زړهٔ په کور کښې دې________ ساتمه غمه

پرېرکو_______________ بلها رنګونه راوړل
په وزرونو_____ له کوم چمه ________ غمه

په مرګ او ژوند کښې وه ______ بلها فاصله
خداے خبر ښنګه دې کړه_________ کمه غمه

د ژوند په هر کټ پېر__ کښې ستا سپورے دے
په کومه لاره __________چې ورځمه غمه

بې پښتو کار_________ به زاهد ښنګه کوی
په نیمه لار به دې_______ پرېږدمه__؟ غمه

۸_۱۱_۲۰۰۶..... ماسخوتن کور



خطونه تول راته ________ د نورو په لاسونو لیکی
د زړۀ خبرې____ لېونی په دېوالونو______ لیکی

پته قیصه وه____ د محفل خلق پرې هم پوهه شو
هر څوک ئې لولې_ چې قیصې څوک په مخونو لیکی

زما نامه ئې چرته______ هېره باندې هم ناخسته
اوس په نکریزو مې نومونه _____ په لاسونو لیکی

د مینې لار کښې دومره ویره__ د قیامت نخښې دی
مئین سلام هم___ په پرزو___ په کاغذونو __لیکی

چې ئې پښتو له همېشه ______نیلام د وینو اوکړو
دی څومره خلق_____ چې په هغه داستانونه لیکی

چې دې په تول عمر کښې__ یو ځل هم ور او نۀ کتل
زاهد قصدن ____ ستا په وعدو او په لوظونو لیکی

۱۰_۱۱_۲۰۰۶........ ماښام کور



جمات کۀ ترېنه لرې شی ــــــــحجرې کۀ ترېنه اوځی
پښتو کښې به څۀ پاتې شی___ جرګې کۀ ترېنه اوځی

منم چې ده توکره ـــــــ ـ خو کائېنات پکښې ځائېږي
اسمان زمکه به یو کړی ـ زرۀ ـ ښېرې کۀ ترېنه اوځی

لېواله د منزل______ چرته اودرېږی___ په ظلمونو
اورونه کۀ پرې بل شی_____ او لمبې کۀ ترېنه _اوځی

منم چې محبت یوه جذبه ده____________ مقدسه
پیکه پیکه به پاتې شی_____ وعدې کۀ ترېنه اوځی

دا ښکلې زندګی به__ یو قیامت شی __یو محشر شی
پې مخی کۀ ترې لاړ شی ___ مېخانې کۀ ترېنه اوځی

زاهد ته عذاب خبرې_________ وخت خرابول دی
د حق خبرې خدائے خبر___ په دې _ کۀ ترېنه اوځی

۷_۱۱_۲۰۰۷....... ماښام کور



مونږه جنت چې دے پرې ایښې______ په غنم زاهده
اوس به په کومو سترګو______ بیا ورله ورځم زاهده

نۀ د چا خیال ساتې_____ او نۀ د چا په درد دردیږې
تۀ به شې څۀ ______هردلعزیز______ او محترم زاهده

چې د تعلق قابل هم نۀ وو_ ما په زړۀ کښې ځائې کړل
ښۀ مې دا خلق پیژندل_____ پرې پوهېدم___ زاهده

مونږه دیوه د ژوند__________ په وینو بله وساتله
تا عمر تېر کړو______ په تعویز___ کله په دم زاهده

اوس نۀ خبرېږې ___نۀ راتلې شې__ ستا د زړۀ مئېنان
اوس ئې ځان مۀ وژنه_____ په نښو_ په قدم زاهده

کله د چا کوې تعریف__________ کله د چا قصیدې
هېڅ دې زده نۀ کړو _____ احترام د خپل قلم زاهده

۸_۱_۲۰۰۸......غرمه کچهرۍ مردان



زۀ ګل ورکوم خلقو له_______ ګلونه ترېنه غواړم
بس مينه عام کؤل غواړمه_____ زړونه ترېنه غواړم

وخت کله راکوے شي هاغه څۀ _____چې ما ورکړي
ځواني ترينه زۀ غواړم _____سحرونه ترينه غواړم

ملګري رانه بيل شو ______ بس په دې يوه خبره
لستوني مې پکار نۀ دي_____ لاسونه ترينه غواړم

دي رونه مې کتاب کښې _____دا منمه خو ما وژني
خپل کور چې ترېنه غواړم _خپل حقونه ترينه غواړم

دنيا ده څوک به تخت او څوک به تاج غواړي زاهده
شاعر يمه____ شعرونو کښې دردونه__ ترېنه غواړم

۷_۴_۲۰۰۷ مانبام کور

د ژوند په لارو کښې څه نهٔ وو؟____ اذیت مې خوښ کړو
په زړهٔ مې ډیرې غنې راښکې _____محبت مې خوښ کړو

دلته مې هم ګوره هېر نهٔ کړے شوې____ چې ساه وې زما
اړخونه ډېر دي کهٔ د فن _____ خو نزاکت مې خوښ کړو

داسې هم نهٔ ده__________ چې زما پکښې څهٔ قدر کیږي
ګله! بس تهٔ پکښې اوسېږې____ ستا محلت مې خوښ کړو

خلقو د سرو غرونه په سر کړل______ چې قلم یې نهٔ وهٔ
زهٔ د قلم د قبیلې ووم_________ قناعت مې خوښ کړو

ځان مې په زور باندې محرومه ____لهٔ هر شي کړو ساقي
دا څهٔ کم عقل وم _چې ستا د سترګو ست مې خوښ کړو

هره نشه یې رانه هېره کړه _______ هر غم مې ورک شو
غم کهٔ دې ډېر وزن لري___ خو قت په قت مې خوښ کړو

دا چې وعده وکړې___ قسم وخورې _____ او نهٔ راځې بیا
ستا لهٔ بې شماره عادتونو______ دا عادت مې خوښ کړو

سودا مې او نهٔ کړه________ ګنې د وخت باچا به وومه
زهٔ د پښتو په لاره تلے وم _______ نو پت مې خوښ کړو

هر څهٔ کهٔ وي_________ خو د انصاف تله به نهٔ ککیږي
مرګ کهٔ مې خوښ نهٔ دے زاهده خو قیامت مې خوښ کړو



د چانه لارې شوې خطا_______ د چا کورونه هېر شو
دا څۀ چل وشو_____ چې د خلقو نه ځانونه هېر شو

دا کوم ظالم د مینې لارو کښې _____ خوره کړه ویره
منګي شو پاتې _ پیغلې ورکې _____ګودرونه هېر شو

یا داسې وخت وۀ __چې یاران مې وو__ د سترګو نظر
یا داسې وخت شو___چې لۀ ما نه یې مخونه هېر شو

مینه _پښتو _ وفا _______ نیکي او د غېرت تصور
د وخت طوفان کښې څۀ _ بلها بلها __ څېزونه هېر شو

دا کوم یو نسل ته شو پاتې______ کوم یو دور راغے
لۀ پښتنو نه پټکي پاتې_______ څادرونه __ هېر شو

چاته به څنګه څوک نېزدې شي _ او تپوس به ئې وکړي
دلته د خلقو نه زاهده!_________ احسانونه هېر شو

۲۳_۳_۲۰۰۷ غرمه



 څهٔ بختور وي ______ چې قلار کښېني
هله کښېنو مونږ _____ چې سرکار کښېنی

د وخت ګردونو راله_______ مخ بدل کړو
پېژنو يو بل_________ چې غبار کښېنی

ځي چې منزل ته ____ نو په غر هم خېژي
څوک چې کښېني ____په لويه لار کښېني

په مېخانه کښې چې شو __جام په سجدو!
څښکو ته په کوم دليل___ مېخوار کښېني

مرهٔ شي ___ خو ګل د سپرلي وهٔ نهٔ ويني
هسې په طمع د بهار_________ کښېني

زړونه له يو بل شو مارهٔ _______ زاهده
څوک به د چا په انتظار_______ کښېنی



د سر په بیعه ئې____ دیدار هم ګران دے
ګراني ده____ هر شے د بازار هم ګران دے

ښهٔ پوئې یم_____ ماسره په لاره نهٔ ځي
بیا هم څهٔ چل دے_ په ما یار هم ګران دے

یقین مې نشته_____ شېخه ستا په بیان!
ستا د خبرو نه_______ انکار هم ګران دے

دلته د هر سړي شو_________ دېر مخونه
ژوند کهٔ سوچ وکړې نو د ښار_ هم ګران دے

تیک دي زاهده!______ ستا قیصې د جنت
خو تر قیامته انتظار هم ______ګران دے

۳۱_۳_۲۰۰۷...... مردان



خلقو! د لار په خلقو ________ څۀ چل وشو ؟
ورک شو اعتبار____ په خلقو څۀ چل وشو ؟

مزاحمت نۀ کړي _________ له ژونده وېزار !
خيژي په دار______ په خلقو څۀ چل وشو ؟

سرخي د مخ ئې ________ هوا چرته يوړه !
ښکاري بيمار______ په خلقو څۀ چل وشو ؟

داسې پرکاله شو ____ چې شور يې ورک شو
دے څۀ ازار؟______ په خلقو څۀ چل وشو؟

د کلو لارې________________ د راهزنو دکې
خو په انکار_______په خلقو څۀ چل وشو؟

زاهده! مينه ترينه___________ چرته لاړه ؟
زما د ښار په خلقو ________ څۀ چل وشو ؟

۱۴_۰۷_۰۴ ماښام کور



وعدې راليږې__________ تصويرونه راته هم راليږي
كله نا كله خپل شعرونه راته__________ هم راليږي

بوج ئې څوک چرته شي اوړے______ د ستمنو د زور
چې مې ژوندے ساتي ګلونه________ راته هم راليږي

خوا کښې مې اوسي___ خو زما د كور په لار نۀ راځي
ياد مې ساتي_______ پردي خطونه راته هم راليږي

په هر يو خط کښې به ئې نوم ___ د رقيب خامخا وي
پټ په لفظونو کښې دردونه_______ راته هم راليږي

وائي زاهد ښۀ دے____ خو دا عادت يې نۀ خوښوم
سلام سره چې خپل لوظونه راته _______ هم راليږي

۰۶_۰۵_۲۰۰۷ مازيګر كور



دزرۀ وینې به نچوړ کړو ______خپل سرونه به ګانه کړو
په څۀ چل به مونږ اباده ______ساقي تاله مېخانه کړو

د یقین او ګمان مینځ کښې _____سرابونو کښې راګېر یو
په کوم شي مو اختیار شته دے کوم یو شے به فېصله کړو

دا زمونږه د ژوند لارې______ څۀ زړۀ سترې دي ملګرو
په سلګو سلګو روان یو______ په قدم قدم دمه کړو

دلته کلے په اسانه ______ په هېڅ شکل ممکن نۀ دے
څوک لۀ مونږه مرور شي _____لۀ چا مونږه ځان خفه کړو

دا یو کړ د زندګۍ مو_____ په شپېته کاله کښې زده کړو
چاته ځان هوښیار کړو _چاته ځان ساده کړو

دلته هر سړے زاهده ______د ژوند بار اوړي په خپله
هېچا او نۀ کتل مونږ ته______ کۀ دې بار زره زره کړو

۱۹_۰۶_۲۰۰۷ سحر کور

# شعرونه

خلق ئې ورک کړل ______خو د ژوند لاره به سمه نهٔ شي
څوک دې هم دلته کښې اشنا_____ د چا په طمعه نهٔ شي

دا به قیامت وي ____ کهٔ په زړونو کښې درد پاتې نهٔ شو
خدایه د چا سترګې دې اوچې______ او بې غمه نهٔ شي

زاهده نیت دې کړه صفا ______ چې فاصلې ختمې شي
ګني نو لار به دوه قدمه ____________دوه قدمه نهٔ شي



خېر دے_____ کهٔ په بند کتاب کښې_______ توري یو
خلقو له رنا ورکؤ ______________________ ستوري یو

هسې رقیب مونږه ______________________ زورور ګڼو
څوک زورور نشته _________________مونږ کمزوري یو



د سکه ورنو د لاسه_________________ چې برباد شي
دا سرے به د ژوند لارو کښې__________ ښاد شي

د خدا ے کور کښې چې تول یو شان ______ انسانان دي
دلته ولې څوک فرعون__________ او څوک شداد شي

۳۰ ۶ ۲۰۰۷ کچهرۍ مردان



ملګرو خبر دے_______ کۀ مې ساه لاړه شي
خو چې د زړۀ نه مې_______ سودا لاړه شي

زلفو کښې _____مخ دې راته_____ لاره ښائي
تيارۀ چې راشي ___________ او رڼا لاړه شي

ورکړه واعظ له ______ ساقي څۀ چې غواړي
خو په څۀ چل چې______ دا بلا____ لاړه شي

پوئې شم چې زور مې شته _نظر کښې د عشق
چپه په مخ دې ___________د حيا لاړه شي

زاهده مۀ ژاړه_________ تش لاس ده ځواني
د چا دنيا ________د چا خندا _____ لاړه شي

۱۳_۰۸_۲۰۰۷ مازيګر کور



مرګ مې قبول کړو ــــــ ولې ستا سترګې مې ښکته نهٔ کړې
خلقو غوښتل ــــــــــــــــ خو اشنا تهٔ مې ملامته نهٔ کړې

پوئې شه ــــ چې اوښکو کښې دې درد نشته ــــ زره مئينه
د اسمان ستوري چې پرې زمکې ته ــــــ راښکته نهٔ کړې

ژوند به د اور يو سمندر شي ــــــــ څوک به پاتې نهٔ شي
خدايه خالي د هېچا زړهٔ ــــــــــــــــ له محبته نهٔ کړې

بيا به د ګلو قتل عام شي ــــــــــــ مخ نيوے به نهٔ وي
خدايه ازغي د چمن چرته کښې ــــــــــ بې پته نهٔ کړې

دغه سپېرهٔ زاهد چې ګوټ هم ــــــــــ درنه وهٔ نهٔ څکې
هېڅ څوک محرومه نور ساقي ــــــــــ لهٔ دې لذته نهٔ کړې

۳۱_۰۸_۲۰۰۷ غرمه کچهرۍ



د ژوند په لارو کښې شوم پاتې ـــــــــ چې دوکې نهٔ راځي
یاران لمانه لرې لاړل ـــــــــــــــــــــ اوس نزدې نهٔ راځي

هاغه چې زړهٔ ته کوزېدل به ــــــــــــــــــــ د نظره سره
اوس په دې لارو ـــــــــــــــــ د کل مخو قافلې نهٔ راځي

سپرلي هم کوره ستا رنګ واخستو ستا خوئي ئې خپل کړو
راشي تر دغې ــــــــــــــــــ خو زمونږه تر کوځې نهٔ راځي

هسې مې اوڅارلې لارې ــــــــــــ هسې مړ مې کړو ځان
ښکلی په هاغه لاره ځی ــــــــــــــــ ولې په دې نهٔ راځي

یا ستا لیدو کښې شو زور کم ــــــــــــــ یا زما مینه کمه
ستا په لیدو مې اوس په زړهٔ کښې ـــــــ زلزلې نهٔ راځي

زاهده هسې دې ځان مړ کړو ــــــــــــــ د ریا په سجدو!
کوره د هر سړي تندي له ــــــــــــــــــ خو کعبې نهٔ راځي

۱۸_۹_۲۰۰۷ غرمه کچهری مردان



نسکور جامونه مو ساقي____ پرېښودل
مونږه هم څښل د پسرلي____ پرېښودل

د حجرو ناسته_____ وروروليي او مینه
خلقو قدرونه _____ پخواني پرېښودل

د آزادۍ احساس پېدا شو _____ خلقو
موتو کښې بند پرېرکي_____ پرېښودل

هسې ویرېږو _____ چې منزل مو نشته
کني خاپونه لاروي________ پرېښودل

دومره د مرګ ویره____ خوره شوه دلته
خلقو کورونه __دا دے خي__ پرېښودل

زاهده دومره شو______ بدل وختونه
ورو کوڅو کښې_____ برندي پرېښودل

۲۴_۱۰_۲۰۰۷ مازیګر کور



ملګرو ښهٔ شتهٔ من یم______ څهٔ نهٔ لرم
خو دومره ده ______ د کاني زړهٔ نهٔ لرم

جناب _________د میني لېونے یمه بس
زر او وزرې_______ دواړه ___زهٔ نهٔ لرم

خدایه دنیا دې _____ماته ښکارې نقطه!
چې پکښې لیشت زمکه_____ کالهٔ نهٔ لرم

درته چې ډېر وګورم ____ ورک شي رانه
لکه چې ړوند شمه_______ لېمه نهٔ لرم

زاهده بیا به منافق__________ یادېدم
ښهٔ ده چې ستا پشان خو زړهٔ____ نهٔ لرم

۲۸_۱۰_۲۰۰۷ ماښام کور



ستا نظر مې زړهٔ کښې ځائې کړو ، ستا خندا کې زړهٔ کښې ځائې کړه
یو محشر مې زړهٔ کښې ځائې کړو، یو پرېښنا مې زړهٔ کښې ځائې کړه

باچاهي مې هم غوښتے شوه________ خو ستا مخکې راته هېڅ وه
تهٔ مې خوښ وې د زړهٔ سره________ ستا ادا مې زړهٔ کښې ځائې کړه

د خندا خلق خو لاړل________________چرته بل ځائې کښې اباد شو
ژوند مې ټول د ویرې ډک شو ________چې ژړا مې زړهٔ کښې ځائې کړه

ستا د زلفو په مثال وې___________ خو تیارې مې خوښې نهٔ کړې
همېش ځان سره په جنګ یم________ خو رڼا مې زړهٔ کښې ځائې کړه

خدائے دې رنګ ورک کړه زاهده! ______په یو دوه کښې دې حېران کړم
نهٔ په لاره د جنت شوم___________ نهٔ دنیا مې زړهٔ کښې ځائې کړه

۲۱_۲_۲۰۰۸ سحر کور



تهٔ ځهٔ خفه شوې___ چې هر چا مې په نوم کرښې راښکې
بیخې یوازې شوم______ دنیا مې په نوم کرښې راښکې

هر څو رشته کهٔ مو د نوم وه______ نور تعلق مو نهٔ وهٔ
څه په سلګو___ او په ژړا مې___ په نوم کرښې راښکې

دا چې اوس راغے _________تماشه مې د ساه ګانو کوې
ظالم خبر شو_____ چې بېګاه مې په نوم کرښې راښکې

لهٔ زړهٔ دې ویستې وم ____ د ژونده دې اوس هم بهر کړم
د رقیب مخکښې نن چې تا مې___ په نوم کرښې راښکې

ما چې په زړهٔ کښې ځایول ______ او ما پرې فخر کوهٔ
زاهده! وګوره _____چا__ چا__ مې په نوم کرښې راښکې

(یو شعر)

خلق دې زاهده________ په ایمان باندې اوس شک کوې
څومره موده اوشوه ________چې قبلې ته دې شا کړېده

۱۳_۳_۲۰۰۸ ماښام کور



ستا د نظر أور کښې مې _____ځان وۀ سېزو
څۀ د امن کور کښې_____ مې ځان وۀ سېزو

لاره د مقصد پکښې___________ یوه نۀ وه
خدایه په کوم شور کښې___ مې ځان وۀ سېزو

نۀ مې مړ کوي _________ او نۀ مړ کیږي أور
دا په کوم پېغور کښې____ مې ځان وۀ سېزو

نۀ دې شوم ګلاب د زلفو________ نۀ دې خال
یاره! په کوم تور کښې مې____ ځان وۀ سېزو

تیک ده چې زاهده ______ خوشحال نۀ شومه
بیا هم رتنهمبور کښې مې_____ ځان وۀ سېزو

۳۰_۳_۲۰۰۸ مابنام کور



وینې زما ئې په دېوال ـــــــــــلکه اوبه توئې کړې
خدایه د رحم ئې اوبۀ ــــــچرته په زړۀ_ توئې کړې

نۀ څۀ مقصد په ګوتو راغے ــــــ نۀ منزل د ژوندون
وخته ــبې وخته دې زمونږ وینې په څۀ_ توئې کړې

ما وې جوړ ستوري د اسمان شوــــ راګزار په زمکه
ښېګاه اوبۀ چې دې په ما ــــــد تنارۀــــــ توئې کړې

نۀ مو نشې پله خیال ځيـــــ نۀ مو کاسې ته فکر
ساقيــ لۀ سترګو نه نشې چې راته تۀــــ توئې کړې

زاهده بیا به درته ګران شي پښتونخوا کښې ژوندون
کۀ دې رقیب ته چرته اوښکې ــــــ د لیمۀ توئې کړې

۳۰_۶_۲۰۰۸ ماښام کور



یوه مصره ده زندګي__________ چرته غزل به نهٔ شي
د خواهشونو دے امبار ____ زاهده ________حل به نهٔ شي

مئینو څومره اوښکې توئې کړې څومره ئې وینې توئې کړې
ولې داستان د محبت دې __________ مکمل به نهٔ شي

هر یو محاذ دې د ذلت __________هر یو محاذ د شکست!
څهٔ عجیبه تقدیر لرو________ خدایه بدل ____ به نهٔ شي

ژوند د مئینو چې پرېشانه __________ تر قیامته غواړي
په اوږو خور لري ____راتول ئې دا وربل______ به نهٔ شي

هر څهٔ به وکړي__________ خو وفا به ورله چرته ګوري
د اوبو مینځ کښې دا چراغ زاهده________ بل به نهٔ شي

# قطعې

لاسو کښې ستوري د سپرلي ____غواړي
څۀ په اسانه__________ زندګي غواړي

زاهده تا چا سره _________ ښۀ کړي دي
ښنګه لۀ خلقو نه _________نیکي غواړي



ځکه خو ځان ته _________نېزدې کېږمه نا
چې لۀ یارانو نه__________ زۀ لرې نۀ شم

زړۀ کۀ مې لوئې دے خوئ مې هم ساهو دے
ولې اوړي ګورے___________ خبرې نۀ شم



د ژوند لمنه کښې بې شمېره _______ خنداګانې شته دے
هرې خندا سره تړلې ___________ ژړاګانې شتنه دے

ویره چې ورکه شي_______ او قدر د قانون ختم شي
جرمونه ډېر شي _____ کۀ بې شمېره سزاګانې شته دے

مری به_ مری وي ____ زړګیه خو مردان ____ مردان دے
مړي ژوندي کړي ______ دلته داسې هواګانې شته دے

حوصله نۀ ماتوي خلق__________ د تیارو په مخکښې
ملګرو ژوند له خو ______ بې شمېره رڼاګانې شته دے

د ژوند تصویر_________ په مصنوعي خبرو نۀ ورانیږي
شکر دے دلته لا بلها شے_________ښکلاګانې شته دے

ځومره ښکاره دے_ اوچت سر ئې د کوفیانو مېنځ کښې
ښکاري زاهد سره______ د مور پلار دعاګانې شته دے

۲۰_۷_۲۰۰۸..... مردان



غوارم_____ چې وختونه په ځائې وډریږي
ستا دا قدمونه _________په ځائې وډریږي

وې دې چې راتلهٔ______ تل د رقیب په لار
خدائے زده چې دړدونه___ په ځائې وډریږي

تاسو کهٔ پې مخو__________ خندا پرېښوده
خدائېګو ___چې دا زړونه _په ځائې وډریږي

جام دې په ګردش کښې ____ساقي او ساته!
هسې نهٔ نبضونه_______ په ځائې وډریږي

اوښکې چې زاهده_____ څي لهٔ سترګو نه
څهٔ به بارانونه_________ په ځائې وډریږي

نوټ
دا وړومبے شعر مې د خپل مشر څوي
اعجاز زاهد کوهاټ ته تلو په موقع اولیکو
(زاهد)

۲۴_۰۷_۲۰۰۸ کور مابښام

*حمد*

هر سحر____ په هره شپه کښې___ تهٔ ځلیږې
هر یو غر ______هره چینه کښې تهٔ ځلیږې

په هر ګل او هره پانه کښې ____ستا نوم دے
د شبنم هره قطره کښې _______ تهٔ ځلیږې

د هر ستوري په پړقا کښې ____ تهٔ ښکاریږې
د سپوږمۍ په پلوشه کښې_____ تهٔ ځلیږې

د اوبو په ساز کښې____ ستا وجود ښکاریږي
په چپه _چپه_ چپه کښې_____ تهٔ ځلیږې

د نظر خلقو ته هر څهٔ کښې ____ ښکاره یې
هر یو وخت_ هره لمحه کښې____ تهٔ ځلیږې

د دنیا کهٔ ګناهګار دے _______ لویه خدایه
د زاهد هره مصرعه کښې______ تهٔ ځلیږې

۲۳_۸_۲۰۰۸ کچهري مردان

تل يې چې ابښې وه______ سينه په ازغو
قلندر_____نۀ کېښوده پښه ______په ازغو

ستا په ښو کښې _____ اوښکې داسې ښکاري
لکه چې پرخه وي _________ پرته په ازغو

ما وې ___جوړ ښکته کهکشان____ راکوز شو
پاڼې وه ستا نه________ لوېته په ازغو

زړۀ لۀ هغو غواړې ________ چې زړۀ نۀ لري
چا بله کړې ده__________ ډيوه په ازغو

رقيبه _____زۀ دې کړم جدا______ لۀ کله
خداے خو دې تول عمر کړه ____شپه په ازغو

د خپل په ضد ____پردي ____دې خپل زړګيه
دومره تکيه ښه نۀ ده___ ښه____ په ازغو

خدايه شوخې له ژونده ______ چرته لاړې
شوه هره ساه ____ هره لمحه____ په ازغو

زاهده دلته ______ سپرلي نۀ راځي اوس
بس دے نور مۀ کړځه ____ راځه__ په ازغو

نوټ! (زۀ په لاره قدم نۀ ږدمه سينه ږدم)
*قلندر مومند*
۱۲_۱۲_۲۰۰۸ سحر



غواړي زاهد_____ چې د ژوند لار کښې په قلاره نشي
ظالم ضدي دے__________ۀ تر قیامته به لاره نشي

مونږه د زړۀ وینې شاملې کړې __ ستا جام کښې ساقي
چې مېخانه__ چرته خالي دې _____لۀ مېخواره نشي

رقیب هم لاره د طالب ______ خوښه کړه روغه نکړي
یاره کوڅه به دې لۀ شره_______ اوس وزګاره نشي

منم چې هره لار کښې(ئې)ویره! هر کټ پیر کښې لمبې
زړه به مې موړ د خپل مردان ___ لۀ یو بازاره _ نۀ شي

یار ته ولاړ دي__________ خو خبره قدرې نشي کوې
لکه زاهد دې څوک___ عاجز د خپل اظهاره _____نشي

---

نوټ دریم شعر کښې (طالبان تحریک) ته اشاره ده
۲۲_۸_۲۰۰۸ ماسپښین کور



د رندو ښار کښې___ ائینې کرځول _____هم کرانه شي
زاهده ځان ته________ زمانې کرځول هم کرانه شي

ما خو وې دا به سرے اوکړې شي __ چې ځان نفي کړي
خو نا ____تندي ته د کعبې کرځول____ هم کرانه شي

مشران وايي _____د میږي دشمني هم____ نۀ ده ښۀ
ټول عمر غشي او لینده کرځول_____ هم کرانه شي

د مئین توب روايت اوس کوم دے __ د ښار خلقو کښې
يار ته بوجونه____ د وعدې کرځول____ هم کرانه شي

زاهد به څو پورې نازونه ________ د دې خلقو وړي
بوج په اوږه _______ د يارانې کرځول هم کرانه شي

---

نوټ! دريم شعر کښې زما خپل شعر ته اشاره ده.

*انسانه خپل تندي له دې کعبې راواړه وه*
(زاهد)
۳۱_۸_۲۰۰۸ مازیکر کور



مینه غواړو ______ زړهٔ غواړو ___ یاري غواړو
تږي یو ______لهٔ زانو کتوري ______ غواړو

بس چې ځان لهٔ ناست یو __ څوک مو نهٔ چیړي
نوره مونږه څهٔ _______ لهٔ چا خدائي غواړو

خلق به مو غواړي اخر ________ ولې مرګ
مونږه خو د هر چا _________زندګي غواړو

داسې غریبي خو خدایه _________ کفر دے
مینه چې لهٔ ښکلو_____ خبراتي _____ غواړو

وایي__________ تجربې غلطېدې_ نهٔ شي
ځو مخکښې ___ وختونه پخواني ___غواړو

هېڅ نیشته زاهده _______ ستا د ژوند په لار
ځو لږ مېخانې پله_________ ځواني غواړو

۴_۱_۲۰۰۸ مازیګر کور



زما د سترګو چې بهيږي ــــــــزما زړهٔ ته راځي
اوښکې چې هر څنګه توئيږي ــــزما زړهٔ ته راځي

تولې د ښکلو قافلې ــــــــ په هره لاره چې ځي
چرته چې ستړې دمه کيږي ــــ زما زړهٔ ته راځي

هغه يادونه د ځوانۍ ــــــ ستا د الفت د کوڅې
اوس هم چې الوځي ـــ تيريږي ـ زما زړهٔ ته راځي

نن يې راوکتل ــــ په داسې نظر ـــ مړ يې کړمه
زور يې د ظلم جوړ کميږي ــــ زما زړهٔ ته راځي

ما ورته پورې دروازه کړه د زړهٔ ـ خوښ مې نهٔ دے
زاهد د خلقو نه پټيږي ــــــــ زما زړهٔ ته راځي

(۱۹_۱۲_۲۰۰۸) ۱۲ بجې کور



اور له راغلې وۀ _____د کوره نۀ ځي
څۀ عجيبه ميلمه دے___ ګوره نۀ ځي

ما د نظره ________لوپته جوړه کړه
پښتنه پيغله ده ____ سرتوره نۀ ځي

خلق کانه شو______ د بازار لۀ شوره
لېونے زړۀ مې ____لۀ دې شوره نۀ ځي

ما وې چې کور به مې_ د زړۀ اباد شي
تر سترګو راغله ___ولې نوره _ نۀ ځي

زاهده ښکلو_________ سره مينه کوه
دا بلاګانې دي ____په زوره__ نۀ ځي

۰۷_۱_۲۰۰۹ غرمه کور



زړۀ مې څۀ پاګل دے __په پردي سرې____ ځان وژني
روغ مئين په ژوند وي____ ليوني سرې __ ځان وژني

دا خو خپل انداز دے________ د فکرونو د سوچونو
چاته چې ګل ګران وي___ په ازغي سرې___ ځان وژني

کلي کښې سوونه خلق ____ اوسي څوک ئې څۀ کړي
دا خو د زړۀ سره ____په سرې___ سرې____ ځان وژني

دا خو يو سرے وي________ چې سبب د انقلاب شي
هسې خو ډېر خلق___ ځي راځي___ سرې ځان وژني

ستا او زما ژوند خو__________ اذيت دے اے زاهده
څه چې ورله ورشو_____ قيمتي سرې ___ ځان وژني

۲۲_۰۱_۲۰۰۹...... مردان



يو ځل چې لاړه شي ځواني______ بیا واپس کله راځي
سرے کۀ ډېر شي___ ارماني بیا_____ واپس کله راځي

د ښار په لارو کښې_____ بلها شوکمار د زړونو ناست وي
سرے لۀ ښاره ارماني_____ بیا واپس _____کله راځي

د ځوانۍ ورځې___ لیونتوب___ او زړه ورتوب د مینې
د ژوند په لارو _____ناداني______ بیا واپس کله راځي

مرغۍ د لاسو ___ قېده شوې___ چې یو ځل___ والوځي
لاړه شي ډېره اسماني__________ بیا واپس کله راځي

دآئینو ژوند ________ خو لحظه کښې رنګ اړوي
اشنا چې لاړه حېراني _______ بیا واپس__ کله راځي

دا خو زاهده د دیدن لمحه وه____________ لاړه لړې
په ژوند کښې داسې اساني______ بیا واپس کله راځي

۱۰_۲_۲۰۰۹ سحر کچهری مردان



وائي هوښياران چې تجربه ______نۀ غلطيږي
مانه تر قيامته ______ ستا کوڅه نۀ غلطيږي

هغه ده ښکاريږي ________ د ديۏو په رڼاګانو
دېره کۀ وي شپه ___ خو مېخانه__ نۀ غلطيږي

زړۀ مې ددې خلقو____ ړۏيو دومره هوښيار کړو
اوس د چا په ژبه____ او جامه___ نۀ غلطيږي

داسې مې په شوندو ستا نامه_____ اوري آسانه
څنګ چې د سړي نه کليمه ______نۀ غلطيږي

دېره کۀ ماتيږي_______ په لحظه لحظه زاهده
مانه په هر ګوټ پسې توبه______ نۀ غلطيږي

۱۵_۹_۲۰۰۹ سحر کور



رنګ د یارۍ دې دومره پوخ دے___ چې له زړونو نۀ ځي
تر اوسه برېښي___ د مئینو په مخونو ______ نۀ ځي

رقیبه مۀ راکاږه کرښې_________ د مئینو مېنځ کښې
دغه یو رنګ___ د دشمنۍ_____ بیا په کالونو نۀ ځي

سینه کښې زړۀ نۀ لرې_____ تول دلته بې درده اوسي
د کانو خلق دي________ په لاره د ګلونو____ نۀ ځي

کوم یو کافر به معجزې_________ د محبت نۀ مني
عمرونه اوشو ______خوشبوۍ دې له خطونو نۀ ځي

خدایه په زړۀ کښې مې کوم رنګ دے چې د ښکلو خوښ دے
یو ځل چې راشي دلته________ بیا په قرآنونو نۀ ځي

زاهده لاړې___________ د پنځوسو نه هم واوړېدلې
ولې رنګونه د ځوانۍ دې______ له شعرونو نۀ ځي

۲_۱۲_۲۰۰۶........کچهرۍ مردان



چې بې له سره دې___ په در را نۀ شي
نو د مقتله________ معتبر را نۀ شي

ځکه مې لر کړل_____ دېوالونه د کور
کورے اشنا کۀ مې په ور___ را نۀ شي

خبر دے کۀ مړ شم__ د پښتو په کربښه
خو چې بهر مې چرته سر___ را نۀ شي

په کومه لار چې ورته ____زۀ اودرېږم
ظالم په هاغه لار_____ اکثر را نۀ شي

لاړ ئې شي ژوند ___ دلته په نوم د رنا
ولې په ژوند کښې ئې سحر_را نۀ شي

زاهده تول عمر ____ چپ پاتې شومه
د زړۀ خبره ______ چې بهر را نۀ شي

۵_۱_۲۰۰۷....... ماذیگر کور



ستا د ___یوې__ یوې ادا _____تفسیر اسان خو نهٔ دے
د خضر عمر غواړی______ دا تصویر اسان خو نهٔ دے

ستا د ښایست ثانی ____ منم د ژوند په لار کښې نشته
ولې اشنا ___زما د عشق نظیر _____ اسان خو نهٔ دے

دا شب پرست خلق به ( ئې) ځنګه __بې له مرګه پرېږدي
جوړېدل دلته____ د رنا سفیر _____ اسان خو نهٔ دے

خامخا ځهٔ نه ځهٔ تدبیر ______ به ورله هم ګورې زړهٔ
تش په دعا___ دې شی بدل تقدیر ____اسان خو نهٔ دے

تهٔ خو باچا یې____ د هیڅ شی نه خبر نهٔ ( ئې) زاهده
دغه سفر د ژوند______ د زړهٔ په ویر اسان خو نهٔ دے

۱۲_۲_۲۰۰۷...... غرمه کور



ستا کوڅه د تلو وه_____ خو ما پرېښوده
دکه د سرو وه________ خو ما پرېښوده

ما وې لوپته ده_______ لرې نۀ شی تلې
ښه د رانیوو وه_______ خو ما پرېښوده

هر یو شے چې عام شی_ زما خوښ نۀ وی
لاره کۀ د تلو وه_______ خو ما پرېښوده

ما وې د دیوې مرۀ کول _____ ژوند نۀ دے
دېره په سلګو وه ______ خو ما پرېښوده

دغلته زاهد سره مې __________نۀ لګي
لار د تماشو وه ________خو ما پرېښوده

۱۵_۱۱_۲۰۰۷........ سحر کور لس بجې



څۀ ناقلاره زړۀ ______ لرم سينه کښې
يو بې روزګاره___ زړۀ لرم سينه کښې

چې بې بلنې شی ___ جنت هم پرېږدم
خومره خودداره __زړۀ لرم سينه کښې

فرشته نۀ يم _____ چې خفګان نۀ لرم
انسان يم_ ياره___ زړۀ لرم سينه کښې

هلته نۀ درد شته دے نۀ مينه شته دے
راغلم له ښاره ____زړۀ لرم سينه کښې

ملګرو تش د نوم _____زاهد خو نۀ يم
ښۀ پرهېزګاره___ زړۀ لرم سينه کښې

۴_۱_۲۰۰۸...... ماښام کور



اول ئې خوښ وهٔ ______ اوس زما د انتخابه تښتي
زما رقیب__________ د محبت لهٔ انقلابه___ تښتي

هېڅ د دې خلقو________ په نظر او ایمان نهٔ پوهېږو
مخکې ئې جنگ وهٔ په محراب_ اوس لهٔ محرابه تښتي

د ښار د خلقو په نظر کښې____ ظلم___ زور پېدا کړو
کهٔ په نقاب کښې دي څوک هم___ کهٔ بې نقابه _ تښتي

اوس د عمرونو حسابونه _______ په لحظو کښې کوه
ما درته وې چې دې یاران زړگیه _____شابه ___تښتي

زما د دور په طالب چې خدایه_______ څهٔ چل وشو
پرون یې شر وو په کتاب_______ نن د کتابه تښتي

څهٔ پر اسراره بنیادم دے______ څوک پرې نهٔ پوهېږي
هر سړے دلته لهٔ زاهد__________خانه خرابه تښتي

۱۱_۲_۲۰۰۹ ماښام کور



په دې موسم کښې ____ شاعري ملګرو چرته کېږي
دومره ګراني ده ____ چې ياري _ ملګرو چرته کېږي

ساقي هم غلے __ لړې ناست _تندے يې کربښې کربښې
ياران هم نشته _____ مېخواري ملګرو چرته کېږي

سر مې دې لاړ شي __ خو پښتو به څنګه دوبه کړمه
مانه د ژوند سوال او زاري ____ ملګرو چرته کېږي

چې په کلونو هم تپوس ____ د يو بل نشي کوے
د داسې خلقو اشنائي ______ ملګرو چرته کېږي

رقيب د دې خاورې پېدا__ زاهد به معاف څنګه کړي
په رقابت کښې سرکوزي _____ ملګرو چرته کېږي

١١_٣_٢٠٠٩ مازيګر کور



ما کهٔ مړ کوې ____ کهٔ مې ژوندے ساتې
خدائے دې همېشه __ ښهٔ دا سړے _ ساتې

سود نې چې په بل نهٔ ده _____ زما مینه
ګوته کښې مې بند _____ لکه غمے ساتې

دلته د کلونو رواج __________ ختم شهٔ
هر سړے په لاسو کښې_____ ازغے ساتې

چاته چې ور اوکورې____ نو خپل نې شې
خدائے زده په نظر کښې چې څهٔ شے ساتې

لاس کښې د زاهد وې_____ همېشه تسبې
سر ته د بالخت لاندې_____ بنګړے ساتې

۳_۴_۲۰۰۹ کور ماښام

# ویره

خدایه اقدار دې د ژوند_____ تول بدل شو
خپل رانه لرې_________ او پردي نېږدې شو
ریا مو خپله کړه ____ستا در ___مو پرېښود

اوس مو د رزق _______ وسیلې نورې شوې
سجدې کوو ________ ولې کعبې نورې شوې

خلقو ته مرګ او ژوند __ اوس یو شان ښکاري
نهٔ ورته ځان یاد دے ________ نهٔ تا یادوي
په هره ساه کښې بس ________ دنیا یادوي

اوس روزانه مرګ دے ____ چې بل خوا لاړو
اوس د قیامت ویره مو ____ زړهٔ کښې نشته
دلته هم اُور دے _______ په اُور سوي کرځو
رنګ مو تک تور دے ____ په اُور سوي کرځو

تهٔ راته هم کندې _______ د اُور ___ یادوې
دوي راته هم اور ________ د دوزخ یادوي

جنت ئې هېر دے ______ د خپل ځان د پاره
خپل ورونه وژنو _________ د جهان د پاره



مینه اشنا کله کېدے شي________ لهٔ شبابه بغېر
تراخهٔ د ژوند کمېدے نشي_______ لهٔ شرابه بغېر

هر سړي پند دے په سر کړے_____ د دردونو نه ډک
زندگي کوم ده _______ په دې زمکه لهٔ عذابه بغېر

سپوږمۍ ته خیژو___ وسیلې مو په نظر کښې نهٔ دي
یاري هر چا سره کوُو_________ مونږ د کتابه بغېر

څهٔ مې پوښتې_____ چې زندگي مې بې لتا څنګه ده
لکه مهے چې زندگي کړي_________ لهٔ دریابه بغېر

زاهد ښهٔ پېژنمه _______ ماته ئې پایو معلوم دے
څېنې کار نهٔ کیږي________ ددې خانه خرابه بغېر

۲۶_۰۷_۲۰۰۹ مازیګر کور



پښتو ئې هېره کړه_____ دې خلقو چې پردې ماتې کړې
دا په کوم طرز_____ د عمرونو ئې رشتې_____ ماتې کړې

هر څۀ مې هېر وو ____ بس سودا ستا د راتلو ورے ووم
د کلي خلقو___ بلها وخت وشو ______ روژې ماتې کړې

مکین پکښې وۀ _____ خو لۀ ویرې( ئې) آواز نۀ راختو
ما په وهلو د کورونو____________ دروازې ماتې کړې

ما خو د هېچا سره کاني لاس کښې _______ او نۀ لیدۀ
په کوم هنر ئې د ښار تولې________ دروازې ماتې کړې

ساقي څۀ واچؤل په جام کښې _ څوک پرې پوهه نۀ شو
رندان خو پرېږده ____واعظانو هم توبې____ ماتې کړې

اوس خو زاهد ته د ژوندون معنا _______معلومه نۀ ده
دلته په نۀ څۀ مې یارانو __________ یارانې ماتې کړې

۱۴_۷_۲۰۰۹ مازیګر کور



په هغه لاره کۀ ورځو ________کۀ په دې لاره ورځو
د رقیبانو په کورونو __________ تر دلداره ورځو

د "اناالحق" نعره یوازې ________ د منصور خو نۀ وه
دلته خو مونږه روزانه________ په دغه لاره ___ورځو

نۀ د جرګې ضرورت شته ______ نۀ ده منت پاتې شو
جانان منکر شو _________ اشنایانو له انکاره _ورځو

چرته سقراط پیاله په لاس _____ چرته فرهاد کني غر
د عشق مېله ده لړېدلې _________ خو تر ښاره ورځو

د مړ ژوندي پته ئې نۀ لګی _________ عمرونه اوشو
نن د زاهد خانه خراب تپوس له ________یاره ورځو

۲۷_۸_۲۰۰۹ سحر کور



چاله کۀ لاس ورکوې هم ______ چاله کۀ زړۀ ورکوې
زاهده مینه پکښې شرط دے ____ چې هر څۀ ورکوې

ښکاري دنیا دې شوه جوړ ویښه ___ د ظلمونو نه پس
اشنا جواب د محبت__________ اودۀ اودۀ ورکوې

هغه یو زړه دې وۀ _____ هغه دې هم توټې توټې کړو
اوس به زاهده نورو ښکلو له ______تۀ څۀ_ ورکوې

دوي په دې هیله بیا د مینې په جامو کښې ځائې کړې
چې هر سړي له د خوږو په ځائې_____ تراخۀ ورکوې

تاته به روغ څنگه څوک وایي ______ هدو تۀ ووایه
چې دې زاهده زندگي_________ په یو کاتۀ ورکوې

۱۰_۹_۲۰۰۹ سحر



دلته په تول عمر کښې ____ کور چرته آباد کړي سړے
د سترګو رپ کښې ورله ____څۀ رنګه برباد کړي سړے

نۀ په نفرت ئې مونږ پوهيږو ______نۀ په عشق زړګيه
په يو ساعت کښې مرده باد ___ او زنده باد کړي سړے

هر يو سړے سودا اخستے دے ______پرېشانه ګرځي
په دې حالاتو کښې به يو بل ____ څنګه ياد کړي سړے

چرته د زلفو زولنے _________ چرته زنځير د يذيد
د کوم يو قېده به خان____ دلته کښې ازاد کړي سړے

پرون مې وۀ ليدۀ _____ همسا په لاس زاهد روان وۀ
د زمانې بادونه____ څۀ رنګه برباد کړي_____ سړے

۴_۱_۲۰۱۰ سحر کور



نۀ د چا مخ ته کوري دوي______ نۀ د چا زړۀ ته کوري
مطلب پرست دی____ کۀ خاتۀ _ کۀ نمر خاتۀ ته کوري

بې د ریا نه__________ د واعظ سره څۀ شے پاتې دے
حېرت اخستے یم_____ چې ولې خلق دۀ تۀ _ کوري

څۀ معجزه ده_____ د ساقي سترګو کښې پوهه نۀ یم
کۀ بلها خلق دي محفل کښې _______خلق دۀ ته کوري

اوس دلته هر څوک خود پسنده شو__ رشتې ختمې شوې
دلته کښې څوک د چا خاطر _____ نۀ د چا زړۀ ته کوري

زاهد برستن د خانه تاؤ کړه ____ چې څۀ کار نې نیشته
د چا چې کار وي____ نۀ ګرمۍ_ او نۀ ساړۀ ته__ کوري

۲۴_۱_۲۰۱۰ مانښام کور



د ژوند په کشالو کښې ______ ورکېوتے دے انسان
والله د خپل معراجه ______ راپرېوتے دے انسان

تر اوسه يې لا زړۀ ______ لۀ غنم رنگو نه موړ نۀ دے
جنت نه د غنم په سر ______ راوتے دے انسان

ژوندون رنا رنا دے______ خو د کاني دور ښکاري
تيارو کښې د غارونو______ ننوتے دے انسان

نۀ مرگ يې د مرضۍ دے ___ نۀ د ژوند په معنیٰ رسي
د ژوند له کرښو لرې______ چرته وتے دے سړے

په مزکه اوس هم خلق______ د دوډۍ په سر وژل کړي
منم چې نن سپوږمۍ ته______ کۀ ورختے دے انسان

هر څو کۀ ځان خاوند______ د کائنات گڼي زاهده
مغروره د تقدير لاسو کښې______ چتے دے انسان

۶_۲_۲۰۱۰ مازيگر ۳ بجې کور



ژوند يو هنګامه ده ______ څوک پرې نۀ رسي
ګونجې کشاله ده ______ څوک پرې نۀ رسي

يو زړۀ مې خبر دے ______ چې تۀ نۀ راځې
ستا د خلې وعده ده ______ څوک پرې نۀ رسي

عشق د صراط پل دے ______ پر اسراره دے
ماته يې تخته ده ______ څوک پرې نۀ رسي

کورې چې مېله د ژوند ______ زرګونه دي
داسې تماشه ده ______ څوک پرې نۀ رسي

هسې د تک لارې ______ کۀ بې شمېره دي
لار د زړۀ يوه ده ______ څوک پرې نۀ رسي

شعر د زاهد نه ______ دي راغوند خلق
ګرانه معمه ده ______ څوک پرې نۀ رسي

۶_۲_۲۰۱۰........ مردان



زما په لارو کښې______ ازغي___ ازغي دي
څه مې د خپلو______ څۀ پردي ازغي دي

زمکې ته گورم ________ پیمانه دې اخلم
ستا په نظر کښې خو ساقي_____ ازغي دي

بې لۀ ازمېښته مې___ په زړۀ کښې ځائې کړل
یاران مې وژني________ خونړي ازغي دي

دیدن دې یاره________ څۀ اسان خو نۀ دے
په هره لاره چې درځي_________ ازغي دي

کۀ ورله وینه څوک________ د زړۀ ورکوي
بیا ورله هم لاس خوکوي________ ازغي دي

زاهده نېغ__________ په رقیبانو ورځه
ویرېږه مه ترې________ کاغزي ازغي دي



زما او ستا په مینځ کښې دي_____ بې شماره فاصلې
کمیږي نا __________دېریږي زما یاره_____ فاصلې

ختے شي د غرهٔ سر ته_____ کهٔ بارونه یې په سر وي
وهلے کلي وال نهٔ شي__________ تر ښاره فاصلې

دا زړونه__________ به رڼا نهٔ شي نیتونه به__ صفا
تر څو چې دی موجودې ________پراسراره فاصلې

مقصد د زندګۍ چې_______ د چا مخکښې وي زاهده
هغوي ته هدو ښکاري نا__________ تر داره فاصلې

۱۱_۲_۲۰۱۰....... مردان ( نیمګړې)



چې عادت دې_____ د سرو سترګو په نشو کړم
طوافونه اوس اشنا__________ د مېکدو کړم

ماته پته ده ______ چې هېڅ دې رښتیا نۀ دي
مجبوري مې ده ______ اتبار دې په وعدو کړم

زړۀ زما درته معلوم دے__________ آئینه ده
منافق ____خدایه! د خلقو رویو_______ کړم

په درنه سترګه مې نۀ کتل________ ساقي ته
خپل غرور څنګه محتاجه_______ د اوبو کړم

د ګلونو زمانې__________ تېرې شوې لارې
ستا په یاد کښې اوس خوبونه____ په لمبو کړم

ښۀ په نېغه لار __________ روان وومه زاهده
دا بې لارې_______ ستا بې لارو مسلو___ کړم



تهٔ مې تماشه کړې________ تماشه شومه
هر ځائې کښې رسوا ______زره زره شومه

څوک چې راته ګوري___ پکښې ځان ویني
زړهٔ کښې مې ستا مینه_____ آئینه شومه

وژني هواکانې مې________ سلګۍ وهم
نن چې د تیارو په ضد_____ دیوه شومه

تهٔ ظلمونو ورک کړې___ کهٔ ښکاره وې دېر
زهٔ لکه د نمر هسې_______ ښکاره شومه

خدایه تصور د مینې __________ ختم شو
ویره مې لهٔ ځانه شوه _______ خفه شومه

وئ وئېل زاهد ته ______راشه وڅښکه نن
ستا د پاره__________ توله مېکده شومه

۶_۴_۱۰ ماښام



دېرې وې پرېشانه ________ پړقېدې راپړقېدې
اوښکې وې نادانې ________ پړقېدې راپړقېدې

لاړې ضابطې د ژوند ________ بدلې شوې زړګیه
نن خو فقیرانې ________ پړقېدې راپړقېدې

څومره قافلې د آرمانونو وې ________ چې لاړې
تاپسې روانې ________ پړقېدې راپړقېدې

ستا د یاد دېوې وې ________ مړې کېدې نۀ په اسانه
زړۀ کښې بندیوانې ________ پړقېدې راپړقېدې

څو چې په محفل کښې وۀ ____موجود هغه زاهده
دېرې رڼاګانې ________ پړقېدې راپړقېدې

۱۲_۷_۲۰۱۰ سحر کچهری مردان



لار کښې مېخانو نه_____ به په کومه ځې
زړهٔ _______ د ډوبېدو نه به په کومه ځې

زلفې (ئې) راخورې کړلې ____ په مخ باندې
وې___ د زولنو نه به_____ په کومه ځې

لارې به د ژوند بلها_________ بدلې کړې
وایه د پښتو نه_______ به په کومه ځې

پوهه یم_______ چې ځان رسوې زلفو له
ګله______ د ازغو نه به ___ په کومه ځې

چم ته د یار تهٔ _________ رقیبه ولې تلې
اوس د لیونو نه به_______ په کومه ځې

سوچ دې د جنت ______ زاهده هم ښهٔ دے
دې _____,, پرپرکو `` نه به___ په کومه ځې



خپل مې وو ______ پردي شو ____ اشنا ستا په سر
تول ازغي ______ ازغي شو ___ اشنا ستا په سر

راغلې چې محفل ته ______ شراب توئې کړل مونږ
بدي د ساقي شو ______ اشنا ستا په سر

دېر کۀ رانه لرې وو ______ نېزدی شو اوس
خپل مې بنوخي شو ______ اشنا ستا په سر

اوس دې هم نظر کښې ______ معجزې شته دے
دېر خلق سړي شو ______ اشنا ستا په سر

دېر کۀ دانشور وو ______ د زاهد هسې
دلته ليوني شو ______ اشنا ستا په سر

۰۳_۰۸_۲۰۱۰ کچهری مردان



د محبت لاره وه لنډه______ ما او تا اوږده کړه
چا په جفا باندې اوږده____ چا په وفا اوږده کړه

ستا احترام راباندې ګران وۀ_ بېګاني محفل کښې
ډېره وه لنډه__ د رقيب مخکې مې ساه اوږده کړه

وړه خبره وه ______د "او" "نا" ___د هغه د لوري
رېباره هسې دې خبره_____ په بيا بيا اوږده کړه

ما وې کوځه کښې دې رقيب اوسي___ په بله لاړم
ځان ته مې هسې __ستا د کور لاره اشنا اوږده کړه

خداے دې د ښکلو د خندا انداز_نور هم ښکلے کړي
چې د مئينو زندګي يې______ په خندا اوږده کړه

چې ئې نصيب د ډوبېدو وۀ __ زاهد لاړو ډوب شو
ګڼې هغې خو لوپټه خپله بلها_______ اوږده کړه

۲۷_۲_۲۰۱۱........ مردان



جوارګر شومه ملګرو__________ سحرونه مې لاهو کړل
اوس هېر شو رانه هر څۀ ______ تول یادونه مې لاهو کړل

لار د مینې مې اوس پرېښوه __ ګله دومره شوم اوس ستړې
زړۀ مې اونیو لمبو ته_________  ستا خطونه مې لاهو کړل

چې د ژوند لمبو ستي کړم_ هوش مې اوس ایله په ځائې شو
ستا وعدې مې کړلې هېرې______ ستا لوظونه مې لاهو کړل

تېښته نۀ منم لۀ ژونده__________ نۀ مایوسه یم ملګرو
رویو کړمه بې لارې_________ خپل فکرونه مې لاهو کړل

چې ئې قدر چرته نشته _________شاعري یو عیاشي ده
خپل دردونه مې لاهو کړل_____ خپل شعرونه مې لاهو کړل

۲۷_۲_۲۰۱۱ کور



څومره سیپارې مې_____ په تا ولوستې
هېڅ هم په لاس رانغلهٔ_____ ما ولوستې

پوئې به شې زما د ژوند_____ په درد هله
کاش چې په ملګرو کښې ___ چا ولوستې

سترګې دې مسکې ____ راته رايادې شوې
نن مې چې لږ ډېر په ژړا _____ ولوستې

نن د سمندر په څپو. _______پوهه شوم
سترګې مې چې ستا ____ په رڼا ولوستې

خدائېګو کهٔ دې څهٔ __ په ايمان پوهه شوم
تهٔ کهٔ مې زاهده __________بلها ولوستې

۱۰_۱۰_۲۰۱۱ سحر کچهری مردان



چې شراب پرېږدي____ صراحي پرېږدي
سړے به څنګه زندګي ______ پرېږدي

نوې انداز د رشتو ______ دې له راغے
خپلو ته ور بند کړي____ پردي___ پرېږدي

د ګل ياري ______ دومره اسانه نۀ ده
څوک به په سترګو کښې___ ازغي پرېږدي

تۀ ئې په سيوري___ يو لحظه خو کښېنه
زړۀ به لمن د هر سړي________ پرېږدي

عجيبه خلق شو ________ زاهده دلته
خبره هېڅ نۀ وي _____ خپلوي پرېږدي

۴_۱۱_۱۱ سحر پېښور ائيرپورټ



کله په یوه ________ کله په بله باندې راشم
لارې دې ژوند دېرې دې_ اکثر پکښې خطا شم

مانه د قیامت د ورځ_____ پوښتنه کوې څله
دغه دے قیامت_چې ته زما شې او زۀ ستا شم

دغه مې د ژوند__ د ناکامۍ یو لوئې سبب دے
هره یو خبره کښې____ بې وخته انتها__ شم

ستا او زما مینځ کښې___ دغه فرق دے رقیبه
تۀ نۀ خطا کیږې_____ ولې زۀ اکثر خطا شم

بیا به هم زاهده _____د شعرونو انتخاب کرم
زۀ لکه غالب___ کۀ په شعرونو کښې رسوا شم

۱۱_۱۱_۱۱ کچهری مردان



د خپلو بدو ____ د پردو ____ په لار کړم
ذکر همېش اوس د ازغو _____ په لار کړم

د محبت شراب ئې______ راکړل په زور
څوک چې بې لارې وو ____ هغو په لار کړم

د واعظ شور_______ رانه کړې لارې خطا
د ژوند د لارو حادثو ________ په لار کړم

ما نه دې هېر کړل______ تول غمونه اشنا
زۀ دې د ژوند د رنګينو_______ په لار کړم

زاهده____ خپله چې پښتو______ نۀ لرم
ياران به څنګه______ د پښتو په لار کړم

۷_۵_۲۰۱۱...... مردان



زما د زړۀ _____ژبې تر مینځه _____ فاصله نشته
د منافقو سره څکه مې __________ رشته نشته

ددې نه لویه المیه _____ به نوره څۀ وي د وخت
د طالب لاسو کښې وسله ده ___ سیپاره__ نشته

زړونه د یو بله ماره شو____ رشتې پاتې نۀ شوې
د ژوند په لارو کښې سکون_____ یوه زره نشته

د ژوند مېلو کښې دي زړګیه_____ څۀ بلها مخونه
هاغه چې تۀ وریسې مرې _____ هغه څهره نشته

هاغه زاهد______ چې د رنا په تکل مرګ له لاړۀ
اوس ئې په قبر بله شوې ______ یو ډیوه نشته

۲۵_۱_۲۰۱۲ کچهری مردان



اوس کورو چې راځي ______ په دې طرف او کنه نا
جامونه د ساقي__________ په دې طرف او کنه نا

مئين دې د کوڅو چې شو رامات ____ ما ورته نۀ وې
بې شماره ليوني _________په دې طرف او کنه نا

بې وخته بارانونو مو ______ کچه کورونه وران کړل
بندونه څوک تړي______ په دې طرف____ او کنه نا

وختونو لار خطا کړه_______ د هر چانه د ژوندون
څوک را به شي سري_______ په دې طرف او کنه نا

څوانی ورته زاهده ___مونږ زړې کړې__ شو بې زوره
چې رابه شي سپرلي ______ په دې طرف او کنه نا

۱۶_۷_۲۰۱۲ کچهری مردان

---

دا غزل زاهد چاچا د مرګه دوه ورځې مخکښې ليکلې دے
د هغوی د مرګ نېټه . ۱۸ جولايي ۲۰۱۲ء

# قانون

کله چې د ظلم غلبه شي______ او ساه دوبه شي
کله چې ماحول تیارهٔ تیارهٔ شي __ رڼا دوبه شي

کله چې تمیز د انصاف ختم شي___ څوک ښکاري نا
کله چې سلګۍ سلګۍ ماحول شي _ خندا دوبه شي

کله چې د ژوند په مخ_____ نوکارې د ظلمونو شي
کله چې د ژوند د ښکلاګانو ادا ________ دوبه شي

کله چې ظالم او مظلوم ____ یو شي تمیز ختم شي
کله چې ښېرې ښېرې نعرې شي_____ دعا دوبه شي

کله چې باچا هم د انصاف په زنځیر_______ بد کني
کله چې د اوښکو قیمت ورک شي___ خندا دوبه شي

هلته به حسین راپېدا کیږي_______ دا قانون دے
هلته به ظلمونه تول ورکیږي_______ دا قانون دے

---

۱۷ جولایي ۲۰۱۲ء
دا نظم زاهد چاچا د خپل مرګ په شپه لیکلې دے .ماښام ژوندے وهٔ او چې سحر شو نو د مرګ اعلان ئې وشو .

عبدالروف زاهد د شاعرئ ابتدا د څلورم جماعت نه کړې وه
چې د بشیر زار صېب وېنا ( چې عبدالروف زاهد پېدائېشی
شاعر وهٔ. او شاعری هغهٔ ته ورایت شوې وه ) صحیح
ثابتوي , او چې عمر ئې شلو کالو ته رسېدهٔ نو ځان له ئې په
ادبی دنیا کښې یو واضحه مقام پېدا کړې وهٔ . دا هاغه وخت
وهٔ چې کله حمزه بابا او  قلندر مومند غوندې لوئې شاعران
په خپل عروج کښې وو . خو زاهد ( مرحوم) په دغه وخت
کښې د خپل قلم زور ښودلې وهٔ او هم دغه وجه وه چې د
حمزه بابا خیال  ئې ځان ته راکرخولې وهٔ .
د زاهد (مرحوم) په شاعرئ کښې هاغه ټول پاړونه واضحه
ښکاری ، کوم چې د زاهد صېب د ژوند سره تړلی دی ، او
هغهٔ د ژوند هره مسله ، هر غم ، هره خوشحالی ، ناکامی ،
کامیابی ، دشمني ، دوستی ، مینه ، درد ، وفا ، جفا ، پښتو ،
روزګار او د رشتو مقام په خپل غزل کښې ډېر په منفرد انداز
ځاې کړی دی .
عبدالروف زاهد د غزل په مزاج پوهه شاعر وهٔ ، او د هغهٔ
شاعرئ د هغهٔ د تجربو ، مشاهدو او د مطالعې هنداره ده ،
زاهد ( مرحوم) په خپل غزل کښې نوې نوې تجربې کړی دی
خو د غزل مزاج ئې نهٔ دے مجروح کړې . بلکې دغه جدت او
انفرادیت د هغهٔ د غزل ښائست نور هم سېوا کړې دے او نن
هغه د پښتو ادب یو معتبر نوم دے .

نبیله زاهد
( اېم اے جرنلزم)